# كشف البارى

عمافى

# صحيح البخارى

تاليف ← صدر وفاق المدارس مولانا سليم الله خان شيخ الحديث

جامعه فاروقيه كراچئ

# كتاب الصلاة

**خصوصيات**

جلد (٢٠)

- ← داحاديثو تخريج
- ← د تعليقات بخارى تخريج
- ← داسماء الرجال مختصر تعارف
- ← د گرانو لغاتو لغوى صرفى اونحوى حل
- ← ماقبل باب سره د ربط پوره تحقيق
- ← دشرحي دهرې خبرې لاندې په حاشيه كښې حواله
- ← د ترجمة الباب مقصد بيانولو كښې پوره تحقيق
- ← د مختلفو مذاهبو تحقيقى بيان اوبيا د مذهب حنفى ترجيح
- ← د بخارى د احاديثو اطراف خودل

خورونكى: ← فيصل كتب خانه محله جنگى پيښور

موبائل:- ٠٣٢١٩٠٩١٨٣٥........٠٣١٥٩٥٩٥٧١٧

دکتاب نوم:- کشف الباری عما فی صحیح البخاری

شارح:- صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان

شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچۍ

د ملاویدو پتې: د فیصل کتب خانه پېښور څخه علاوه

- رحیمی کتب خانه خوست -- ۰۷۹۹۱۶۱۳۱۳
- اسلامی کتب خانه خوست --
- دیوبند کتب خانه خوست -- ۰۷۹۹۸۸۶۶۸۰
- روغانیول کتب خانه جلال آباد
- دعوت کتب خانه جلال آباد -- ۰۷۷۶۰۹۷۹۶۵
- رشیدیه جدید کتب خانه کابل
- انتشارات نعمانیه کابل
- انتشارات علامه تفتازانی کابل -- ۰۷۷۷۴۹۰۵۰۰
- قدرت کتب خانه کابل --
- واحدی کتب خانه خوست
- صداقت کتب خانه کابل -- ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷
- مکتبة القرآن والسنة کابل
- مکتبه صدیقیه غزنی
- مکتبه فریدیه خوست
- مسلم کتب خانه جلال اباد -- ۰۷۷۶۰۰۶۴۱۶
- غزنوی کتب خانه غزنی -- ۰۷۴۸۵۷۵۱۹۹

خورونکی: ← فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵ ........ ۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

بسم الله الرحمن الرحيم

# مقدمه

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ أرشد حبيبه ونبيه إلى هذه الكلمات التي يقولها النبي صلى الله عليه وسلم في آخر وتره: ،،اللهم إني أعوذ برضاك من سخطك، وأعوذ بمعافاتك من عقوبتك، وأعوذ بك منك، لا أحصي ثناء عليك أنت كما أثنيت على نفسك،،.

وصل وسلم وبارك على سيدنا ومولانا محمد المصطفى ،وعلى أشياعه وأتباعه وأنصاره وإخوانه من النبيين، وصل على أهل طاعتك أجمعين من أهل السماوات والأرضين.

اما بعد: د كوم وخت څخه چې الله تعالى چې هميشه دپاره دې دعلم ذريعه قلم گرځولې دې.نوهم د هغه وخت څخه د الله تعالى په توفيق سره د الله تعالى د دې وينا مطابق ((علم الانسان مالم يعلم)) د قلم صاحبانو (ليكوالو) د خپل وس مطابق خپل کوششونه کړې دی اود قلم د ميوو څخه ئې امت محمدی على صاحبها الف الف صلوات ته فائدې رسولې دی.اولکه څنگه چې دا مبارکه سلسله تراوسه پورې روانه ده.نو دغه شان به د الله الله ويونکو(مسلمانانو) د آخرى کس د باقى پاتې کيدو (ژوندی پاتې کيدو) پورې جارى اوروانه وی.

ډير مبارک دی هغه پاک نفسونه چا چې په خپلو سينو کښې د الله تعالى دامانت لوې بوج محفوظ کړې دې او د نبی کريم صلی الله عليه وسلم ارشاداتو اود صحابه کرامو رضوان الله عنهم اجمعين اقوالو په رڼا کښې ئې ډيرې قيمتى ملغلرې ډيرې په ښکلې طريقې سره د غمو پشان کاغذ ته د سپارلو لوې سعادت حاصل کړې دې او کاميابيږی.

زه د لوئې الله چې احسانات يې عام دی د بيشميره احساناتو څخه د دې لوئې احسان شکر اداکولو څخه خپله جولئ خالى گنړم چې زما يې د خپل دين خدمت سره واسطه پيدا کړې ده.چې هغه کريم او رحيم ذات د خپل محبوب اوخوږ پيغمبر صلی الله عليه وسلم د پاک ذات د پاکې ژبې څخه وتلى ارشاداتو د تشريح او وضاحت خدمت دپاره قبول کړم.چې په خپلو نااهليانو،کوتاهيانو اونالائقيانو باندې مې سترگې اولگی نو زما سترگې ښکته طرف ته پريوځی.خو قربان شم د هغه غفار ،ستار اوحليم ذات څخه چې هغه زمونږ د نالائق توب په وجه مونږ نه محرومه کوی بلکه هغه خو په ورکولو کښې بې مثاله دې.الله - جل وعلا - دې مونږ ته شکر گذار اوقدردان جوړيدو توفيق راکړی.آمين

د تخصص فی الفقه الاسلامی د دويم کال په آخر کښې دشعبان په مياشت کښې شيخی ومربی واستاذی المکرم حضرت اقدس مولانا محمد يوسف افشانی صاحب زيدت معاليه ومحاسنه اوفرمائيل ،، استاذ المحدثين ،شيخ المشائخ ، صدر وفاق المدارس حضرت اقدس مولانا سليم الله خان صاحب دامت برکاتهم العاليه فرمائيلی دی چې د دې کال په متخصصينو کښې دې د منتخبو طالبانوسره په دارالتصنيف کښې په ،،کشف البارى عما فی صحيح البخاری ،،باندې دکار کولو په باره خبره اوکړې شی.نو ستا استاذانو په خپل مينځ کښې په مشوره سره ستا د نورو درې ملگروسره ستا انتخاب هم کړې دې.بنده د حضرت اقدس وړاندې د خپلې کم استعدادئ اونا اهلئ ښکاره والې اوکړو.نوحضرت زيد

مجده اوفرمائل ،، کوم الله چې ستا د استاذانو په زړونو کښې ستا انتخاب اچولې دې.نو هغه به استعداد هم پیدا کړې او هغه ډیر ښه مدد ګار اومعین دې.په دې باندې بنده دا لوئې سعادت د خپل دنیوی اواخروی مستقبل د خیر وسیله اوګڼله اولبیک اوسعدیک یې اووئیل او ملا یې ورته اوتړله.ددې څخه پس استاذالمحدثین ،شیخ المشائخ، صدر وفاق المدارس حضرت اقدس مولانا سلیم الله خان صاحب دامت برکاتهم العالیه مونږ راجمع کړو اود تقسیم کار سره یې په خپل لاس مبارک لیکلې هدایت نامه هم راکړه کومه چې د کار کولو په اصولو اوضوابطو باندې مشتمله وه.اوډیرې دعاګانې یې راته اوکړې اوبیه کار دشروع کولو یې راته اوفرمائیل.

نو صلاة حاجت مې اوکړل اود الله تعالی څخه مې مدد اوغښتل او په کار مې شروع اوکړه.او قدم په قدم به مکرم اومحترم حضرت مولانا نور البشرصاحب دامت برکاتهم ، حضرت مولانا عزیز الرحمن صاحب، حضرت مولانا مفتی مزمل سلاوټ صاحب،اوحضرت مولانا حبیب الله زکریا صاحب حفظهم الله په مشورو او تجویزونو سره وړاندې روان ووم. فجزاهم الله احسن الجزاء .

بنده ته د ،،کتاب الصلاة،، کار حواله شو.الحمد لله تقریباً د درې کالو په موده کښې د یو جلد کار مکمل شو.او ستاسو وړاندې راغلل،په دې جلد کښې اتلس بابونه یو کم دیرش احادیث اودشلو تعلیقات تشریح ،توضیح او تحقیق شامل دې.د دې مجموعې ډیره حصه قابل قدر مکرم اومحترم حضرت مولانا نور البشرصاحب دامت برکاتهم اوزیاتې حصې استاذالمحدثین ،شیخ المشائخ، صدر وفاق المدارس حضرت اقدس سلیم الله خان صاحب دامت برکاتهم العالیه د خپل بوډاتوب،زیاتو مرضونو، زیاتو مصروفیاتو، او قسما قسم ذمه واریانو پوره کولو سره سره بالاستیعاب اوکتل،اوقابل اصلاح څیزونه یې راته په ګوته کړل.اوکوم مباحث چې پوره نه وو د هغې د تکمیل طرف ته یې متوجه کړم.اود کومو امورو د وضاحت چې ضرورت وو د هغې د وضاحت حکم یې راته راکړل.الحمدلله په ټولو حکمونو عمل اوشو.د ،،کشف الباری عما فی صحیح البخاری،، ددې مجموعې په ترتیب ،مراجعت،اوتحقیق کښې چې کومه طریقه حضرت شیخ الحدیث صاحب زیدمجدهم العالیه په حکم سره د حضرت مولانا نورالبشر مد ظله په واسطه زمونږ دپاره مقرر کړې شوې وه د هغې نمونه لاندې لیکلې شی.

۱- د ترجمة الباب مقصد / مقاصد وضاحت اوتراجم ابواب باندې سیر حاصل بحث کول

۲- ربط د بابونو اود مناسبت ذکر کول

۳- د حدیث الباب ترجمه کول

۴- د حدیث الباب دامهات سته څخه تخریج کول

۵- د حدیث د راویانو جامع پیژند ګلو ، خاص کر د هغوی د تعدیلا تواوتوثیقاتو ذکر کول دغه شان که په هغوی باندې د امامانو کلام وی نو د هغې ذکر کول، که بلا تکلف اوتعصب دفاع کیدې شی نو دفاع، ګنی بیا کم از کم په صحیح بخاری کښې د داسې متکلم فیه راوی د راوړلو عذر بیانول

۶- د حدیث په سند باندې محدثانه کلام کول

۷- د حدیث په شرح کښې چې د کومو څیزونو خیال ساتلې شوې دې هغه دا دی.

الف: د حدیث په نورو طرقو کښې وارد شوې مختلف الفاظ نقل کول اود هغې تشریح کول

ب: نحوی،صرفی، بلاغی،لغوی اواعرابی حیثیت سره تشریح او تحقیق کول

ت: د فقهی مذاهبو(د اصحاب المذاهب د کتابونو څخه) تنقیح او حواله ورکول

ث: د فقهي دلائلو التزام
۹- د حديث الباب د ترجمة الباب سره مطابقت بيانول
۱۰- د بخاري د متابعاتو او شواهدو تشريحات
دا خبره دې ياده وي چې په متابعاتو او شواهدو كښې د لانديني خبرو خاص طور سره خيال ساتلې شوې دې.
الف: د حديث د كتابونو حواله چې د صفحاتو سره ور كړې شي، نو هلته ورسره د كتاب او باب دغه شان د رقم الحديث ذكر ضرور او كړې شي.
ب: د حديث الباب تخريج خاص كر د امهات سته نه چې او كړې شي كه امام بخاري په هغې كښې منفرد وي نو د معتمد مصنف حواله دې ضرور ور كړې شي. او په دې سلسله كښې د فتح الباري، عمدة القاري سره سره د تحفة الاشراف نه هم مدد واخستې شي.
ت: په متن كښې چې د حديث د كوم كتاب حواله ور كړې شوې وي كه هغه كتاب په دار التصنيف كښې موجود وي يا په آسانتيا سره ملاويدې شي نو هغې طرف ته مراجعت كول او حواله ور كول دې وي او كه نه وي نو د مجبورئ په وجه ثانوي مراجع مثلاً فتح الباري وغيره حواله دې ور كړې شي.
ث: د تعليقات بخاري په سلسله كښې دې خامخا د تعليق التعليق نه استفاده او كړې شي.
ج: د راوياتو په باره كښې د عامو شروحاتو د حوالې په ځائې دې د اسماء الرجال د معتبرو كتابونو حواله ور كړې شي.
ح: د لغوى تحقيقاتو د پاره دې د لغات الحديث او عام طور د لغت لويو كتابونو مثلاً تاج العروس، لسان العرب، بالمصباح المنير او المغرب وغيره ته ترجيح ور كړې شي.
خ: د اعرابي، نحوى، او صرفي تحقيقاتو د پاره (د نحو او صرف خاص كر) د حديثو شروحاتو نه استفاده واخستې شي.
د: د فقهي مباحثو او د هغې د دلائلو د پاره د هر مكتب فكر كتابونو ته دې رجوع او كړې شي.
ذ: د حديثي مباحثو او محدثانه كلام د پاره د شروحاتو سره د علل حديث كتابونو ته هم رجوع دى.
ر: په معاصرو تقريرونو باندې خو به د سرسري استفادې حده پورې اعتماد وي خو د حوالې اعتماد به پرې هيڅ كله نشى كولې.
ز: كوم ځه چې د حديث نه استفاده كولې شي نو هغه به د حديث د شارحينو د كلام په رنړا كښې وى.
س: دغه شان په يو حديث باندې فقهي او كلامي مباحث به هم مكرر نشى ليكلى مگر دا چې سخت ضرورت وى نو په هغه وخت كښې به د اولني ځائې حواله هم ور كولې شى.
ش: د حديث چې كوم مباحث ذكر كول وى د هغې تعين به د اكابرينو شروحات او تقريرونه وړاندې كيخودلى شى او مرتب كولى شى.
بحمده وبفضله بنده د دې منهج مطابق كار كولو ښه پوره كوشش كړې دې د كومې په نتيجه كښې چې په نظر د راتلونكې ترتيب، او تحقيق سهراد استاذ المحدثين، شيخ المشائخ، صدر وفاق المدارس حضرت اقدس مولانا سليم الله خان صاحب دامت بركاتهم العاليه سر دې. يقينى ده چې دا هرڅه د هغوى د سرپرستئ او اشراف ثبوت دې او په ترتيب او تحقيق كښې چې په لاعلمئ سره كومې كوتاهيانې شوې دى د هغې نسبت به بنده ته كولې شى ځكه چې دا خالص علمى، تحقيقى كار په قسما قسم علومو او فنونو

كښې د كوم مهارت، قابليت او صلاحيت تقاضا كوى بنده د هغې څخه خالى دې هم د دې وجې د اهل علم حضراتو په خدمت كښې خواست دې چې د مطالعى په دوران كښې كومې غلطيانې په نظر ورشى نو د هغې څخه دې مونږ ضرور خبر كړى چې د هغې تصحيح اوكړې شى.

بنده د جامعه فاروقيه كراچۍ د شعبه دار التصنيف ناظم اعلى حضرت اقدس مولانا عبيد الله خالد صاحب دامت بركاتهم العاليه ډير شكر گذار دې چې حضرت اقدس مدظله العالى د جامعه د دې عظيمې شعبې د ترقۍ دپاره د شپې او ورځې كوشش كونكونكې او ليواله اوسيږى د دارالتصنيف دپاره د كتابونو لويه ذخيره او د دارالتصنيف د ملگرو دپاره د تربيتى اومشاورتى مجلسونو مقرر كول د حضرت اقدس مدظله العالى د شعبه تصنيف سره د محبت ښكاره ثبوت دې.

په دې كار كښې چې د كومو كومو حضرات استاذانو، او نورو اهل علم حضراتو او مدد كونكو او احسان كونكو حفظهم الله تعالى سرپرستى ، مشاورت، راهنمائى او معاونت راسره پاتې شوې دې د دې ټولو حضراتو دپاره د الله تعالى په دربار كښې دعا كونكې يم چې هغه دې ورته د خپل شان مطابق جزاء خير وركړى.

د كمپوزنگ په ټولو مرحلو ورور عرفان مغل ډير د مدد مظاهره كړې ده.او په نورو انتظامى كارونو كښې ورور يوسف رانا صاحب (انچارج شعبه كمپيوټر اداره الفاروق) ښه مدد راته حاصل وو.الله تعالى دې دې ټولو حضراتو ته جزاء خير وركړى فجزاهم الله أفضل ما يجزى الواصلين من أرحامهم، الموفين بعهودهم فهما أنس من الأشياء، فلست أنسى برهم وصلتهم، وحسن جائزتهم.

په آخر كښې زه د ټولو لوستونكو په خدمت كښې خواست كوم.چې د حضرت اقدس مولانا سليم الله خان صاحب دامت بركاتهم العاليه د صحت او عافيت دپاره ښې ډيرې دعاگانې كوى چې الله تعالى رب العزت حضرت ته صحت كامله وركړى او د دوى د مهربانۍ سيورې دې زمونږ په سرونو باندې تر ډيره وخته پورې په عافيت سره قائم او دائم وى او مونږ كمزورو ته دې د زياتې نه زياته فائدې اخستلو توفيق راكړى.

دغه شان د بنده دپاره هم دعا كوئ چې الله تعالى راته دا كار آسان كړى او زر تر زره راته د پوره كولو توفيق راكړى او په خپل دربار كښې ورته د قبوليت شرف وركړى او زما دپاره زما د استاذانو د مور پلار او متعلقينو دپاره دې د نجات ذريعه اوگرځوى.آمين.

**وأقول :اللهم تقبل منى مساعى ترتيب هذا الكتاب وتحقيقه والتعليق عليه واجعله ذخرا وسببا للنجاة واحشرنا فى زمرة محمد صلى الله عليه وسلم المصطفى الذى إنتخبته واعترته وجعلته الشافع لأوليائك المقدم على جميع أصفيائك الذى جعلت زمرته آمنة من الروعات.**

مفتى محمد راشد ډسكوى

د شعبه تصنيف وتاليف ملگرې او استاذ جامعه فاروقيه كراچۍ

۱۰ رجب المرجب ۱۴۳۵ هجرى

## فهرست مضامین

| عنوانات | صفحه |
|---|---|

| عنوانات | صفحه |
|---|---|

| صفحه | عنوانات |
|---|---|
| ١٨٩ | د شيخ الحديث رحمة الله عليه رائي |
| ١٨٩ | دكافرانو جوړشوي لباس دَ استعمال حكم |
| ١٩٠ | دكافرانو دَ استعمال شوو كپړو حكم |
| ١٩٠ | دكافرانو مشابهت اختيارولوحكم |
| ١٩٠ | دَ شبه تعريف |
| ١٩١ | تشبه بالكفار سره متعلق دَ حضورپاك ارشادات |
| ١٩٢ | دَتشبه باره كښې دَ صحابه كرامو او تابعين آثار |
| ١٩٥ | دَتشبه بالكفار مفاسد |
| ١٩٦ | دَتشبه په فقهي اعتبار سره مرتبې |
| ١٩٦ | په اضطراري امورو كښې دَتشبه اختيارولوحكم |
| ١٩٧ | په اختياري امورو كښې دَتشبه اختيارولوحكم |
| ١٩٧ | په مذهبي امورو كښې دَتشبه حكم |
| ١٩٧ | په عادي اومعاشرتي امورو كښې دَتشبه حكم |
| ١٩٧ | په قبيح بالذات امورو كښې دَتشبه حكم |
| ١٩٨ | په مباح بالذات امورو كښې دَتشبه حكم |
| ١٩٨ | دَغير قومونو په شعائركښې مشابهت |
| ١٩٨ | مطلقًا دَ غيرو په افعال كښې دَمشابهت حكم |
| ١٩٨ | په ذي بدل څيزونو كښې دَ غيرو دَمشابهت اختيارولوحكم |
| ١٩٨ | په غير ذي بدل څيزونو كښې دَ غيرو دَمشابهت حكم |
| ١٩٩ | دَ كلام خلاصه |
| ١٩٩ | دَحضرت كشميري رحمة الله عليه تحقيق |
| ٢٠٠ | قوله: وقال الحسن في الثياب ينسجها المجوسي لم ير بها بأسًا |
| ٢٠٠ | قوله: الحسن: |
| ٢٠٠ | قوله: ينسجها: |
| ٢٠٠ | قوله: المجوسي: |
| ٢٠٠ | قوله: لم ير |
| ٢٠٠ | دَ مذكوره جملې تخريج |
| ٢٠٠ | قوله: وقال معمر: رأيت الزهري يلبس من ثياب اليمن ما صبغ بالبول: |
| ٢٠٠ | معمر |
| ٢٠٠ | زهري |
| ٢٠١ | دَ اثر تخريج |
| ٢٠١ | ماصبغ بالبول |
| ٢٠١ | دَماكول اللحم حيواناتو دَ ابوالوسره متعلق دَامام زهري رحمة الله عليه مسلك |

| عنوانات | صفحه |
| --- | --- |

| عنوانات | صفحه |
|---|---|

| صفحه | عنوانات |
|---|---|
| ۲۲۳ | قوله::حتى إذا كان بالطريق |
| ۲۲۳ | دَ الطريق نه څه مراد دې؟ |
| ۲۲۴ | قوله::سد الصهباء |
| ۲۲۴ | قوله::جهزتها له أم سليم |
| ۲۲۴ | قوله::أم سليم |
| ۲۲۴ | قوله::فأهدتها له من الليل |
| ۲۲۵ | قوله::فأصبح النبى صلى الله عليه وسلم عَروساً |
| ۲۲۵ | قوله::فقال:من كان عنده شىء فليجىء به |
| ۲۲۵ | آیا دَ نورو په مال باندې ولیمه کولې شی؟ |
| ۲۲۶ | قوله::وبسط نِطَعاً |
| ۲۲۶ | قوله::فجعل الرجل يجىء بالتمر وجعل الرجل يجىء بالسمن |
| ۲۲۷ | قوله::قال:وأحسِبُه قد ذكر السويق |
| ۲۲۷ | قوله::فحاسوا حيساً |
| ۲۲۷ | قوله::فكانت وليمة رسول الله صلى الله عليه وسلم |
| ۲۲۷ | قوله::وليمة |
| ۲۲۸ | دَ حدیث مبارک نه مستفاد امور |
| ۲۲۸ | دَ روایت ترجمة الباب سره مناسبت |
| ۲۲۹ | ۳-باب:فِي كَمْ تُصَلِّي الْمَرْأَةُ مِنَ الثِّيَابِ |
| ۲۲۹ | دَترجمة الباب مقصد |
| ۲۲۹ | تعليق:وقال عكرمة:لووارت جسدها فى ثوبٍ لأجزته |
| ۲۲۹ | دَ تعلیق تخریج |
| ۲۷۰ | قوله::لووارت جسدها |
| ۲۷۰ | قوله::لأجزته |
| ۲۷۰ | عكرمة |
| ۲۷۰ | دَ تعلیق ترجمة الباب سره مناسبت |
| ۲۷۱ | ترجمه |
| ۲۷۱ | تراجم رجال |
| ۲۷۱ | أبواليمان |
| ۲۷۱ | شعیب |
| ۲۷۱ | زهري |
| ۲۷۱ | عروة |
| ۲۷۱ | عائشة |

| عنوانات | صفحه |
|---|---|

# فهرست اسماء الرجال المترجم لهم على ترتيب حروف الهجاء

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# ٨-كتاب الصلوة

**د كتاب الصلوة ماقبل سره ربط:** دكتاب الطهارة نه دفارغيدونه پس امام بخاري رحمه الله په كتاب الصلوة باندې شروع فرمائي. دمونځ د حكمونونه دپاكۍ حكمونه ځكه وړاندې كړې شو چې طهارت د مونځ دپاره دشرط حيثيت لري او مونځ د مشروط په مقام دي. او دابنكاره خبره ده چې شرط د مشروط نه وړاندې وي نو ددې نه دشرط (طهارت) دتفصيلي حكمونود ذكركولونه پس د مشروط (مونځ) تفصيلي حكمونه بيانولې شي[1].

بله دا چې مونځ مقصود او پاكي (طهارت) ددې دپاره وسيله ده. او دا خبره ښكاره ده چې وسيله د مقصود نه وړاندې وي او مقصود ترې نه وروستو وي[2].

ددې نه علاوه پاكي (طهارت) د ظاهري او د جسماني پاكۍ حاصلولو نوم دې او مونځ د باطني او روحاني پاكۍ حاصلولو ذريعه ده، او دا خبره خو ښكاره ده چې د باطن د پاكۍ حاصلولو دپاره ظاهر پاكي بنيادي حيثيت لري، ددې وجې نه هم د طهارت حكمونه وړاندې ذكر كړې شو او د مونځ حكمونه وروستو ذكر كيږي[3].

**دلفظ (صلوة) لغوي معنى:** د صلوة په لغوي معنى كښې ډير قولونه دي، مثلا ① په لغت كښې د صلوة معنى (دعا) ده[4]، لكه څنګه چې د الله ﷻ قول دې، «وَصَلِّ عَلَيْهِمْ»[5] او درسول الله ﷺ فرمان هم دې، «و ان كان صائما فليصل»[6] اي فليدع لهم بالخير والبركة»[7]. امام نووي رحمه الله فرمائي چې د جمهورو اهل عربو او د فقهاؤ هم دا قول دې[8].

② د صلاة معنى په (تعظيم) سره هم كولې شي[9]، څنګه چې دا خبره معلومه ده چې په مونځ كښې د الله ﷻ تعظيم كولې شي نو ددې وجې نه دې مونځ ته هم (صلاة) وئيلې شي، د «اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ» معنى (اَللّٰهُمَّ عَظِّمْهُ فِي الدُّنْيَا بِاِعْلَاءِ ذِكْرِهٖ وَاِظْهَارِ دَعْوَتِهٖ وَاِبْقَاءِ شَرِيْعَتِهٖ وَفِي الْاٰخِرَةِ بِتَشْفِيْعِهٖ فِيْ اُمَّتِهٖ وَتَضْعِيْفِ اَجْرِهٖ وَمَثُوْبَتِهٖ) سره كولې شي[10]، ددې مفهوم دا دې چې اې الله نبي كريم ﷺ له په دنيا كښې د هغوى د ذكر په اوچتولو

---

([1]): عمدة القاري، كتاب الصلوة: ٥٨\٤ دارلكتب العلميه.

([2]): فتح الباري: كتاب الصلوة: ٥٩٤\١. دارالمعرفة.

([3]): انوارالباري، كتاب الصلوة: ١\١١.

([4]): لسان العرب، مادة، ص ل ى: ٣٩٧\٧ معجم الصحاح، ص: ٥٩٦. التعريفات، ص: ١٧٥

([5]): التوبة: ١٠٣

([6]): سنن ابي داود، كتاب الصوم، باب في الصائم يدعى الى وليمة، رقم الحديث: ٢٤٦٥ ـ

([7]): بذل المجهود، كتاب الصلوة: ٥\١٣.

([8]): شرح النووي على صحيح مسلم، كتاب الصلوة: ٢٩٧\٤، المجموع شرح المهذب، كتاب الصلوة: ٢\١٣

([9]): لسان العرب: ٣٩٧\٧.

([10]): النهاية في غريب الحديث والأثر: ٥٠\١٣

سره،او د هغوی د دعوت په عام کولو سره،او د هغوی شریعت له تر قیامته پورې په باقي ساتلو سره عظمت ورکړې،او په آخرت کښې د هغوی د امت په حق کښې د هغوی د شفاعت په قبلولو سره او د هغوی د اجر او د ثواب په زیاتولو سره عظمت ورکړې.

④ دځنې علماؤ قول دې چې صلوة د(مُصَلّي)نه اخستې شوېدې،او(مُصَلّي)هغه اس ته ونیلې شي،چې د منډې په میدان کښې د(مُجَلّي)نه وروستو وي،یعنی(مُجَلّي)اس د اسونو د منډې په مقابله کښې د ټولونه وړاندې وي،او(مُصَلّي)هغې پسې وروستو وي،هم دغه رنګې مونځ(ثانیة الایمان)دې،ځکه چې د ایمان نه پس د مونځ نمبر دې،یعنی څنګه چې د(مصلی)نمبرد(مُجلی)نه وروستو وي هم دغه شان د(صلوة)نمبر د(ایمان)نه پس وي،هم په دې مناسبت سره مونځ ته صلوة وائي.([1])

④ ځنې علماء فرمائي چې د(صلاة)معنی(رحمت)دې،لهذا عبادات مخصوصه ته صلاة ځکه وائي چې په دې کښې د الله رب العزت رحمت د ځان ارخ ته راښکل وي.([2]).

⑤ بعضې حضراتو ونیلې دی چې دا د(الصلا)نه اخستې شوې دې،او(صلا)هغه هډوکې ته وائي چې په کوم باندې دواړه کوناټې وي،کوم چې د مونځ کولو په وخت کښې د رکوع او د سجدو په وخت کښې خوزی([3]).

⑥ بعضو اهل لغتو ونیلې دی چې(صلیت العصا بالنار)نه ماخوذ دې،دا جمله په هغه وخت کښې ونیلې شي چې لرګې په اور باندې د ګرمولونه پس پستولې،نرمولې شي،دې دپاره چې دغه لرګې نیغ کړې شي([4])لهذا مونځ ته صلاة هم ددې وجې نه وائي چې ددې په ذریعې سره انسان خپل نفسی کوږوالې لرې کوی.③

**په ذکرکړې شوې معنی باندې دوه اشکالونه اودهغې جوابونه**:دصلوة پدې معنی باندې دوه اشکاله پیدا کیږي.① لفظی ② معنوی.

① په لفظی اعتبار سره په دې معنی باندې امام نووي رحمه الله دا اشکال وړاندې کړې دې چې(صَلَيْتُ العُوْدَ) کښې صَلَّيْتُ ماخوذ دې (صَلّي)نه،چې دا ناقص یایي دې،او(صلوة)ناقص واوي دې،نو بیا دا اشتقاق څنګه صحیح کیدې شي؟([5])

② معنوی اشکال په کښې دا کیږي،چې ډیر خلق د کلونو راسې لګیا دی مونځونه کوی خو ولې بیا هم د هغوی د نفس کوږ والې نۀ لرې کیږي،مونځونه هم کوی او لونې،کبیره،ګناهونه هم کوی،او د منع کړې شوو کارونو نه هم نۀ منع کیږي.

**د وړومبی اشکال جواب**.د امام نووي رحمه الله له ارخه د وړومبی اشکال جواب دادې چې دا اشکال په هغه وخت کښې صحیح کیدې شي چې هرکله(اشتقاق صغیر)وي.او حال دا چې دلته(اشتقاق صغیر)نۀ دې([1])لهذا دا اشکال دلته نۀ صحیح کیږي.

([1]):بذل المجهود:۶/۱۳،معجم الصحاح،ص:۵۹۶،لسان العرب :۳۹۶/۷—

([2]):لسان العرب:۳۹۷/۷،المعجم الوسیط،ص:۵۲۲،معجم الصحاح،ص:۵۹۶—

([3]):المغرب:۴۷۹/۱

([4]):معجم الصحاح،ص ۵۹۶

([5]):المجموع شرح المهذب:۲/۱۳.

د جواب تفصيل دادې چې د صرفو د قوانينو په لحاظ ساتلو د يوې كلمې نه د بلې كلمې جوړولو ته (اشتقاق)ونيلې شي(٢)، ددې اشتقاق بيا درې قسمه دى ① اشتقاق صغير ② اشتقاق كبير ③ اشتقاق اكبر،چې د دوو كلمو تر مينځه په حروفو كښې هم مناسبت وي او په ترتيب كښې ئې هم مناسبت وى نو دې ته اشتقاق صغير ونيلې شي،لكه ضرب چې د ضَرْب نه مشتق دې،اوكه چرې د دوو كلمو تر مينځه په حروفو كښې خو مناسبت شته خو ولې په ترتيب كښې ئې مناسبت نشته دې نو دې ته اشتقاق كبير ونيلې شي،لكه چې جَبَذَ د جَذَبَ نه مشتق دې،او كه چرې د دوو كلمو ترمينځه نۀ په حروفو كښې مناسبت شته دې او نۀ ئې په ترتيب كښې مناسبت شته دې خو ولې د دواړو كلمو ترمينځه دحروفو په مخارجو كښې تناسب وى نو دې ته اشتقاق اكبر وائى لكه نَعَقَ د نَهَقَ نه (٣) ، لهذا د صليت العود على النار نه ماخوذ كيدل اشتقاق صغير نۀ دې،بلكه اشتقاق اكبر دې.

**د دويم اشكال جواب:** د دويم اشكال جواب دادې چې د مونځ مونځ ګذار لره منع كول او د هغۀ نه كوږ والې لرې كول دا په هغه وخت كښې دى چې مونځ په حقيقى معنو كښې مونځ وى،لكه څنګه چې په قرآن مجيد كښې ددې دپاره د اقامت صلٰوة الفاظ استعمال كړې شوې دى.او د اقامت صلوة مفهوم دادې چې د مونځ ټول ظاهرى او باطنى اداب په داسې توګه ادا كړې شى لكه څنګه چې رسول الله ﷺ په خپله په عملى توګه په اداكولو سره ښودلې دى،لهذا د رسول الله ﷺ په سنتو كښې په ظاهرى آدابو كښې د بدن،جامو،او د مونځ د ځائې پوره پاكوالې.جمعې سره د مونځ كولو پابندى،او د مونځ ټول عملونه د سنتو مطابق ادا كول) شامل دى.او د مونځ په باطنى آدابو كښې په پوره عاجزئ او انكسارئ سره د الله ﷻ په وړاندې داسې اودريدل لكه چې دې د الله ﷻ سره راز او نياز كوى شامل دى،اقامت صلوة كوونكى ته په خپله د الله ﷻ له اړخه د نيكو عملونو توفيق هم وركولې كيږى،او دغه شان د هر قسمه ګناه نه د بچ كيدلو توفيق ورته هم وركولې شى.او كوم سړې چې د مونځ كولو باوجود د ګناهونو نه نۀ خلاصيږى نو دا خبره يقينى ده چې د هغۀ په مونځ كښې كمې دى(٤).

حضرت تهانوى رحمه الله په بيان القرآن كښې ددې اشكال حل په دې الفاظو سره بيان فرمائيلې دې چې بې شكه مونځ د خپلې وضعې په اعتبار سره د بې حيايئ او د ناروا كارونو نه منع كول كوى،يعنى په لسانِ حال سره دا خبره كوى چې د كوم معبود تۀ دومره تعظيم كوې نو د فحش كارونو او د ګناهونو په كولو سره د هغۀ بې تعظيمى كول ډير زيات ناروا دى(٥).

دځنى علماؤ وينا ده چې آيت ﴿إِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ﴾ كښې خبر د امر په معنى دې،نو په دې صورت كښې به ئې مطلب دا وى چې مونځ ګذار له پكار دى چې هغۀ د فحش او د ګناه د كارونو نه ځان اوساتى خلاصه د كلام دا شوه چې مونځ په خپله د لاس نه نيول او د ګناه نه منع كول نۀ

---

(١):عمدة القارى:٨٤١٤

(٢):المعجم الوسيط ص :٤٨٩.

(٣):جامع الدروس العربية:١٥٦١١،كشاف اصطلاحات فنون:٧٦٦١١

(٤):معارف القرآن:٦٩٦١٦،الجامع لاحكام القرآن:٢٢٦١١٣.

(٥):بيان القرآن:١١٣١٣

كوي،بلكه دا د بدئ نه د منع كيدلو دپاره يو سبب گرځي (١).

هم په دې حقله مفتي محمد شفيع رحمه الله ليكلي دي چې د ګڼرو مفسرينو په نيز(تحقيقي قول)دا دې چې په مونځ كښې په خاصه توګه دا اثر وي چې مونځ كوونكى ته اكثر د ګناهونو نه د بچ كيدو توفيق ترلاسه شي،اوچا ته چې د مونځ كولو باوجود د ګناه نه د بچ كيدلو توفيق ترلاسه نۀ شو نو په غور او فكر كولو سره به دا خبره ثابته شي چې ددۀ په مونځ كښې څۀ كمې وو ،او دې سړى د اقامت صلوة حق نه دې ادا كړى.(٢)

اوځنې حضراتو دا جواب هم وركړې دې چې څو پورې مونځ ګذاره په مونځ كښې اخته وى هغه وخته پورې هغه د ګناه د كارونو نه بچ وى،او ددې آيت مباركه هم دا مطلب دې.(٣)

او دا جواب هم وركړې شوې دې چې مونځ ګذار د مونځ نۀ كوونكى سړى په نسبت په ګناهونو كښې كم اخته وى.

**د(صلوة)اصطلاحي معنى:** معهودو اركانو او مخصوصو افعالو ته په اصطلاح د شرعې كښې(صلوة) وائى(٤).

لفظ دصلوة دلغوى معنې نه شرعى معنې ارخ ته منتقل كړې شوېدې اوكۀ نه دامجازاً استعماليږي؟

ددې جواب په دې توګه وركړې شوې دې چې كه وړومبې صورت وى نو(صلوة)په معنى د اركان مخصوصه كښې حقيقت شرعيه دې او د دعا په معنى كښې مجاز شرعى دې،او كه چرې دويم صورت وى نو صلوة د اركان مخصوصه دپاره استعمالول مجاز شرعى او د دعا په معنى كښې به ددې استعمال بيا په معنى حقيقي سره وى(٥).

**په(كتاب الصلوة)كښې د امام بخارى رحمه الله طرز:** حافظ ابن حجر رحمه الله د كتاب الصلوة لاندې چې كوم بابونه ذكركړې دى نود هغې بابونو په خپل مينځ كښې ئې مناسبت او ترتيب ذكر كړې دې. لهذا، حافظ صاحب رحمه الله فرمائى(هر كله چې ما په كتاب الصلوة كښې غوراوكړونو مادا كتاب د شل (٢٠)، نه زياتو قسمونو بيامونډوباندې مشتمل بيامونډ.لهذا زۀ به ددې بابونو ترمينځه ترتيب او مناسبت ذكر كوم الخ)د بابونو ترمينځه د حافظ صاحب رحمه الله ذكر كړې شوې مناسبت لاندې ذكر كولې شي د مونځ څلور شرطونه دى:طهارت يعنى پاكى،ستر د عورت،قبلې ته مخ كول،او وخت.څنګه چې معلومه ده چې د طهارت مسئلې ډير زياتې دى،نو ددې وجې نه مؤلفين رحمهم الله په خپلو كتابونو كښې دا ځان له مستقل ذكر كوى،امام بخارى رحمه الله هم داسې اوكړل او باقى پاتې شرطونه ئې په كتاب الصلوة كښې ذكر كړل،بيا په دې شرطونو كښې څنګه چې معلومه ده چې(ستر د عورت)يوازې د مونځ سره خاص مسئله نۀ ده،نو ددې د عام كيدلو د وجې نه ئې دا د ټولو نه وړاندې راوړله.ددې نه پس ئې قبلې ته د مخ كول ذكركړې دى څكه چې دا قبلې ته د مخ كولو مسئله د بو څومخصوصو مونځونو(لكه:د ويرې مونځ اود سفر په دوران كښې نفلونه كول)او د عذر د حالت نه ماسوا د فرضو

(١):الجامع لاحكام القرآن :٢٢٦\١٣.
(٢):معارف القرآن:٦٩٧\٦.
(٣):روح المعانى:٣٦٧\١٠
(٤):الكوثر الجارى:٢٧\٢ عمدة القارى:٣\٤،الموسوعة الفقهية:٥١\٢٧،البناية:٤\٢.
(٥):تفسير البيضاوى:١٨٥\١،معارف السنن:٢\٢،فتح الملهم:١٣٣\٣.

او د نفلو ټولو مونځونو دپاره ضروري ده.او استقبال د قبلې(يعنى قبلې ته مخ کول)مکان غواړى . نو ددې وجې نه ئې ددې نه پس د ابواب مساجد ذکر کړې دى،او بعضې وخت کښې د جمات د نشت والى په وجه باندې د يو داسې ځائې ضرورت پېښيږى چې هلته ځانله والې وى.او د ځانله والى حاصليدل دا په سترې سره کيږى،ددې وجې نه ئې د ابواب مساجد نه پس د سترې ابواب ذکر کړې دى،بيا ددې شرطونو نه د اوزګاريدلو نه پس ئې د آخرى شرط چې مواقيت د صلوة(يعنى د مونځ وختونه)دى هغه ئې ذکر کړې دى،او څنګه چې معلومه ده چې د وختونو دپاره د خبرولو او د اعلان ضرورت وى او ددې وجې نه ئې اذان ذکر کړې دې،او اذان د مسلمانانو د اجتماع دپاره وى ددې وجې نه ئې د اذان نه پس جماعت ذکر کړې دې،او د وړوکى نه وړوکى جماعت د يو امام او د يو مقتدى نه جوړيږى،نو ددې وجې نه ئې د جماعت نه پس د امامت ذکر کړې دې،بيا هر کله چې د مونځ د شرطونو او ددې د توابعو نه فارغ شو نو د صفة الصلوة بابونه ئې ذکر کړې دى.او څنګه چې معلومه ده چې د جمعې مونځ کله کله مخصوص وخت او مخصوص شکل سره ادا کولې شى،نو ددې مناسبت د وجې نه ئې د صلوة الجمعه او صلوة الخوف ددې نه پس ذکر کړې دى،او په دې دواړو کښې ئې هم صلوة الجمعه څکه وړاندې ذکر کړې دې چې دا صلوة الجمعه د صلوة الخوف په نسبت سره ډير زيات واقع کيږى،ددې نه پس څنګه چې معلومه ده چې د فرضو نه علاوه هم د جمعې مونځ کيږى نو ددې وجې نه امام بخارى رحمه الله ددې نه پس د اخترونو.د وترو.د استسقاء او د صلوة الکسوف ذکر کړې دې،بيا په صلوة الکسوف کښې(د حافظ صاحب رحمه الله د تحقيق مطابق)رکوع زياته وى نو ددې وجې نه ئې ددې نه پس د تلاوت د سجدو بابونه ذکر فرمائيلې دى،څکه چې دا په څنې وختونو کښې په مونځ کښې هم واقع شى،او ددې وجې نه په مونځ کښې يو يا دوه سجدې زياتې شى،په کومو مونځونو کښې چې سجدې يا رکوع زياتې وى ددې مونځونو د ذکرکولو نه پس امام بخارى رحمه الله د داسې مونځونو ذکرفرمائيلې دې په کومو کښې چې نقصان يعنى د رکعات کمې واقع شوې وى،يعنى د سفر مونځ،او بيا هر کله چې امام بخارى رحمه الله د هغې مونځونو نه فارغ شو په کوم کښې چې جماعت مشروع وو نو د داسې مونځونو ذکر ئې اوفرمائيلو چې په هغې کښې جماعت مشروع نهٔ دې.لکه نفلونه.بيا څنګه چې معلومه ده چې په مونځ کښې څهٔ شرطونه داسې هم دى چې هغهٔ د مونځ د شروع کيدلو نه پس وى لکه خبرې اترې پريښودل،د مونځ نه خارج زياتى کارونه پريښودل،او خوراک څښاک پريښودل.نوددې وجې نه ددې په مناسبت سره ئې تراجم او . بابونه قائم کړل،بيا د مونځ باطل کيدل کله کله په قصد سره وى او کله په خطا (سهواً) وى. نو ددې وجې نه ددې نه پس ئې د سهوې احکام ذکر اوفرمائيل.ددې نه پس په دې خبره ځان پوهول پکار دى چې اوسه پورې ټول حکمونه د داسې مونځونو وو چې دا مونځونه د رکوع او سجدې والا وو .لهذا ددې نه پس امام بخارى رحمه الله د داسې مونځونو احکام ذکر اوفرمائيل چې په هغې کښې نهٔ رکوع شته او نهٔ سجدې لکه د جنازې مونځ[1].

**د علامه عينى رحمه الله په دې حقله خپل طرز:** د کتاب الصلوة د بابونو په خپل مينځ کښې د مناسبت او د ترتيب په حقله علامه عينى رحمه الله فرمائى،چې په دې بابونو کښې د هرو دوو بابونو په خپل مينځ کښې مناسبت به ددې بابونو په خپل خپل مقام باندې ذکر کولې شى.او داسې مناسبت به د هغه

[1]: فتح البارى:١١/٥٩٤.

مناسبت ذكر كولو په مقابله كښې ډير غوره وى كوم چې حافظ صاحب رحمه الله ذكر كړې دې او بله دا چې داسې قسمه مناسبت به په ذهن كښې ډير زر خائې نيونكى هم وى(١).

**د حضرت شيخ الحديث رحمه الله تحقيق**:شيخ الحديث حضرت مولانا محمد زكريا كاندهلوى رحمه الله فرمائى چې د كتاب الصلوة د بابونو ترمينځه چې كوم مناسبت حافظ صاحب رحمه الله ذكر فرمائيلې دې، هغه ډير غوره او اعلى دې،خو ددې باوجود په ځنى خايونوكښې كه په ژور نظر سره اوكتلې شى نو ددې نه هم زيات مناسبت ظاهر كيدې شى(٢).

①:مختصراً دهغې نه يومناسبت هغه هم دې كوم چې حافظ صاحب رحمه الله د ابواب السهو په حقله ذكر فرمائيلې دې،حافظ صاحب رحمه الله ذكر كړې دى چې امام بخارى رحمه الله هركله د ابواب العمل فى الصلوة نه فارغ شونو،(د مونځ د باطليدلو په حقله په اختيارى اسبابو كښې د اخته كيدلو په صورت كښې د سهو احكام كوم كوم پكار دى؟نو ددې د ښودنې دپاره ئې د سهو د احكامو بابونه راوړې وو)

حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چې په دې حقله ډيره زياته غوره توجيه دا ده چې(په كتاب الصلوة كښې د ابواب العمل فى الصلوة د تكميل دپاره ئې د سهو ابواب ذكر كړل دا نه چې د ابواب العمل فى الصلوة نه د فارغيدو نه پس ئې د سهو بابونه ذكر اوفرمائيل)ددې خبرې دليل دادې چې امام بخارى رحمه الله هر كله په(ابواب العمل فى الصلوة)كښې شروع اوكړه نو په اوله كښې ئې ظاهرى اعمال او په آخره كښې ئې اعمال قلب ذكر اوفرمائيل د كوم دپاره ئې چې د(باب تفكر الرجل الشئ فى الصلوة)په نوم سره ترجمه قائمه كړه ،بيا ځنگه چې معلومه ده چې د تفكر په وجه باندې كله كله سهو اوشى نو ددې دپاره ئې د سهوې احكام ذكر اوفرمائيل،لهذا ابواب د سهوې ځان له د مستقل بابونه نهٔ دى بلكه دا خو د ثمرة التفكر د وجې نه په وجود كښې راغلې دى،او تفكر د قلب د اعمالو نه يو عمل دې.لهذا ابواب د سهوې هم په ابواب العمل فى الصلوة كښې داخل دى.ددې خبرې دليل دادې چې امام بخارى رحمه الله د سهوې د بابونو نه پس(باب اذا تكلم وهو يصلى)او(باب الإشارة فى الصلوة)په نوم سره ترجمې قائمې كړې دى،اوس كه چرې د حافظ صاحب رحمه الله د تحقيق مطابق ابواب د سهوې ځان له او مستقل شمار كړې شى،نو ددې دوو بابونو به په غير محل كښې راتلل لازم شى،او حال دا چې دا دواړه بابونه د ابواب العمل فى الصلوة نه دى(٣).

②:هم دا شان حافظ صاحب رحمه الله فرمائى چې امام بخارى رحمه الله دكتاب الصلوة شروع د مونځ د فرضيت دبيان نه كړې ده،ځكه چې داسلام دنورواحكامونه كهٔ نظر اخواته كړې شى اومونځ ته اوكتلې شى نو دا مونځ يو داسې ركن دې،چې وخت ئې تاكلې شوې دې(٤).

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى چې په دې مقام كښې زما په نيز ډيره زياته غوره خبره داده چې دلته دا وئيلې شوې وې چې امام بخارى رحمه الله ددې نه دا خبره ښودل غوارى چې د مونځ د فرضيت ابتداء كله او ځنگه اوشوه،لكه ځنگه چې داسلام د زياتو اركانو په ذكر كولو كښې د هغوى هم داطريقه ده،بله داچې دبخارى دتراجموپه كتلوسره هم دا خبره په خپله مخې ته راشى،

---

(١):عمدة القارى ٥٨١٤.

(٢):لامع الدرارى:٣١٤١٢،أبواب والتراجم،ص٦٨،الكنز المتوارى:٤١٤.

(٣):لامع الدرارى:٣١٤١٢،أبواب والتراجم،ص٦٨،الكنز المتوارى:٤١٤.

(٤):فتح البارى:٥٩٤١١.

لهذا دلته خو د فرضيت د ابتداء صراحت سره ذكر موجود دې ځكه چې ددې ثبوت په(نص)يعنى په حديث د معراج سره موجود دې[١].

(٣):ددې نه علاوه حافظ صاحب رحمه الله دا فرمائيلي وو،چې د مونځ د شروع كيدلو نه پس درې شرطه دي:ترك الكلام،ترك الأفعال الزائدة،وترك المفطر.نو امام بخاري رحمه الله ددې دپاره تراجم قائم كړل.

حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چې په دې كلام كښې د(ترك المفطر)په ځائې(ترك الخصر)پكار وو،ځكه چې په كتاب الصلوة كښې د(ترك المفطر)هيڅ ترجمه نشته دې،او د(ترك الخصر)ترجمه په كښې موجوده ده[٢].ددې نه علاوه نور هم څه ځايونه شته دې،د كومو په حقله چې شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چې په هغې باندې به د هغې مناسبو مقاماتو باندې خبرداري اوكړې شى[٣].

## ١-باب:كَيْفَ فُرِضَتِ الصَّلَوَاتُ فِي الْإِسْرَاءِ

دا ترجمه د كُشْمِيهَنِي او د مُسْتَمْلِي[٤] د روايت مطابق ده،اود بخارى په بعضو نسخو كښې د الصلوات يعنى د جمعې د صيغې په ځائې(الصلوة)دې[٥].

**د ترجمة الباب ماقبل او مابعد سره ربط:** علامه عينى رحمه الله فرمائى چې ذكر كړې شوى كتاب (الصلوة)د صلوة په كارونو او په احوالو د صلوة باندې مشتمل دې،هم په دې كارونو كښې د مونځ د فرضيت د كيفيت پيژندل هم دى،او دا پيژندل اصل دى او باقى ټول كارونه په دې باندې عارض يعنى راپيښيدونكى دى،او دا خبره ښكاره ده چې اصل قائم د ذات وى او عارض دا قائم مقام د صفاتو وى،او ذات په صفاتو باندې مقدم وى،ددې وجې نه ئې د مونځ د فرضيت كيفيت په ټولو بابونو باندې مقدم كړو[٦].

**د ترجمة الباب مقصد:** ددې ترجمې نه د امام بخارى رحمه الله مقصد د مونځ د فرضيت د ابتداء په حقله دا خبره ښودل دى چې دا مونځ كله فرض شو؟په دې حقله د امام بخارى رحمه الله په نيز باندې راجحه خبره داده چې مونځ په ليلة الاسراء كښې فرض شو،او د امام صاحب په نيز باندې اسراء او معراج هم يو دې[٧]،په دې باندې نور زياتې تفصيل وړاندې راروان دې.

**د حضرت شيخ الحديث رحمه الله تحقيق:** حضرت شيخ الحديث رحمه الله د ترجمة الباب د وضاحت په حقله ليكى چې په صحيح البخارى كښې امام بخارى رحمه الله په ديرشو(٣٠)ځايونو كښې اصالةً د (كيف)نه بابونه شروع كړې دى،په دغه ديرشوبابونو كښې دا پنځم باب دې،په دې باب سره ئې د

---

([١]):الكنز المتوارى:٥١٤.

([٢]):لامع الدرارى:٣١٤١٢.

([٣]):الكنز المتوارى،٥١٤،الأبواب والتراجم،ص:٦٩.

([٤]):كُشْمِيهَنِي ،أبو الهيثم محمد بن المكى بن زراع الكُشْمِيهَنِي (مُسْتَمْلِي)أبو اسحاق ابراهيم بن احمد بن ابراهيم المُسْتَمْلِي(فهرس ابن عطيه ص:١٣٧).

([٥]):فتح البارى:٥٩٦١١،عمدة القارى:٥٩١٤.

([٦]):عمدة القارى:٥٩١٤.

([٧]):الكوثر الجارى:٥١٢،فتح البارى:٥٩٦١١،الكنز المتوارى:٥١٤

فرض كيدلو كيفيت بيان فرمائيلې دې چې د مونځ د فرض كيدلو د كيفيت څه صورت وو؟د فرضيت صورت داسې وو چې په وړومبى كښې پنځوس مونځونه فرض وو او.اخرى انتهاء ئې په پنځو مونځونو باندې اوشوه۔

لكه څنګه چې په روايتونو كښې راغلى دى،چې په دې خبره كښې اختلاف دې چې اسراء او معراج په يوه شپه كښې شوې دى او كه نه څانله څانله؟د امام بخارى رحمه الله رائې داده چې په يوه شپه كښې دواړه شوې دى،ددې وجې نه ئې(فرضت الصلوة فى الاسراء) اوفرمائيل،حال دا چې فرضيت په آسمان شوې دې او دغه معراج دې،او(امام بخارى رحمه الله بيا(فى الاسراء)فرمائى،ددې نه دا خبره معلومه شوه دا دواړه په يوه شپه كښې شوې دى.(١)

**د ترجمة الباب د(كيف)نه د شروع كولو حكمت:**(كيف)د حال د بيان دپاره وى،خو ولې دا خبره هم ممكنه ده چې دا دكيفيت مكانى او دكيفيت زمانى دپاره استعمال كړې شى،كه چرې په دې مقام باندې امام بخارى رحمه الله په طريقې د عموم سره دا لفظ د كيفيت حال،مكان او د زمان دپاره استمال كړې وى نوحضرت شيخ الحديث رحمه الله دبيان مطابق(چې كيفيت په مختلفو احوالو باندې د خبردارى دپاره وى،حاصل ددې دا)دې چې په اول كښې پنځوس مونځونه فرض كړې شو،بيا د حضرت موسى عليه السلام په درخواست باندې رسول الله ﷺ د الله رب العزت په دربار كښې بيا بيا د تخفيف دپاره درخواست كولو،تر دې چې د پنځوسو نه په كميدو كميدو دا مونځونه پنځهٔ پاتې شو،بيا دا فرضيت په ليلة الاسراء كښې اوشو،او دا دمكې مكرمې د قيام په وخت كښې اوشو نو په دې سره د مكان او د زمان بيان هم اوشو(٢).

دلته يو سوال دا پيدا كيږى چې امام بخارى رحمه الله د مونځ د فرضيت د ابتداء په حقله ترجمه قائم كړې ده،او د نورو اطاعتونو دپاره ئې تراجم نهٔ دى قائم كړې،نو ددې جواب دادې چې د مونځ د فرضيت د ابتداء په حقله خو په يقينى توګه داخبره معلومه ده چې دا كله فرض شوې دې خو ولې د نورو اطاعتونو د فرضيت د ابتداء په حقله قطعى علم نشته دې چې يره د دوى فرضيت كله شوې دې؟(٣).

**د(اسراء)معنى:**(اسراء)د باب افعال مصدر دې،ددې معنى ده(د شپې تلل)او څنې نورو حضراتو ئې معنى كړې ده چې د شپې اكثر حصه تلل(٤)،ابوعبيده او زمخشرى وائى،چې(سرى)او(اسرى)دواړه يو دى،او ددې دا همزه د متعدى كيدلو دپاره نهٔ ده،خو ولې د ابن عطيه رائې ده چې دا همزه د متعدى كيدلو دپاره ده(٥).

ددې نه ماسوا د(الليث)رائې داده چې(اسرى)د شپې په اوله حصه كښې تلل او(سرى)د شپې په اخره حصه كښې تللو ته وائى،او د جمهورو په نيز باندې(سرى)عام دې په شپه او ورځ دواړو كښې تللو ته وائى(٦).

(١):تقرير بخارى:١١٧/٢،لامع الدرارى :٣١٤/٢.
(٢):فضل البارى:١/ ١٢١،معجم الصحاح،ص ٩٣٥.
(٣):فتح البارى ٥٩٤/٢.
(٤):لسان العرب:٢٥٢/٦،مختار الصحاح،ص١٨٣.
(٥):روح المعانى:٦/٨١
(٦):روح المعانى:٦/٨١

او امام قرطبي رحمه الله فرمائي: ورومبي (يعني د ابوعبيده او د زمخشري قول) معروف دې[1].
**د معراج معنى:** (معراج) د عروج نه ماخوذ دې، او عروج ختلو ته وائي، او معراج آلۀ عروج يعنې پوړۍ ته وائي[2].
**اسراء او معراج يو دی او که نه بيل بيل؟:** اسراء او معراج دوه لفظونه دی، ددې حقيقتونه بيل بيل دی، د اسراء اطلاق د مکې مکرمې نه واخله تر د بيت المقدس پورې تللو باندې کيږي، او د معراج اطلاق د بيت المقدس نه واخله تر د آسمانه پورې تللو باندې کيږي[3]، او کله د دواړو اطلاق په يو بل باندې هم کيږي[4].
البته دا خبره ده چې امام بخاري رحمه الله دواړه يو گرځولي دی او اسراء نې ورته ونيلې دی[5].
په دې سلسله کښې حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله ليکلي دی، چې د امام بخاري رحمه الله ددې کار نه چې دواړه ته نې د اسراء نوم ورکړې دې معلوميږي چې امام صاحب رحمه الله دې ټول سفر ته اسراء وائي، هغوی ددغه فرق قائل نۀ دی کوم فرق چې وړاندې تير شو، ددې دليل د امام صاحب رحمه الله په "كيف فرضت الصلوة في الاسراء" په عنوان سره ترجمه قائمول دی، ځکه چې د مونځونو فرضيت خو په معراج کښې شوې دې خو ولې ددې باوجود د امام صاحب رحمه الله لفظ د (اسراء) استعمالول دا خبره ښکاره کوی چې د هغوی په نيز دا دواړه يو دی[6].
**ايا اسراء او معراج دواړه په يوه شپه کښې شوې دی؟:** اسراء او معراج دواړه په يوه شپه کښې واقع شوې دی او که نه په دوو شپو کښې بيل بيل واقع شوی دی؟ نو پدې حقله د علماؤ مختلف قولونه دی.
د جمهورو علماؤ او د محققينو رائې دا ده چې اسراء او معراج دواړه د بيدارئ په حالت کښې د رسول الله مبارک ﷺ د جسم اطهر او روح مبارک دواړو سره هم په يوه شپه کښې راپيښ شوې دی[7].
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې عقلاً يا نقلاً ددې مذهب پريښودل او ددې په ځائې د بل مذهب اختيارولو هيڅ گنجائش نشته دې[8].
او صاحب د فتح الملهم رحمه الله فرمائي چې د جمهورو د مسلك نه اخوا مخ اړول صحيح نۀ دی، او بيا په خاصه توگه د نن صبا په وخت کښې چې د سائنس داسې نوې نوې تجربې او تحقيقونه لگيا دې مخې ته راروان دی چې عقل ورته حيران پاتې شی، نو بيا د معراج په شان د خلاف القياس واقعې عقلا واقعې کيدل هم ممکن شوې دی[9]

---

(1): الجامع لاحكام القرآن: ١٠\١٣٤.
(2): مختار الصحاح، ص: ٢٥٤، التعليق الصبيح، باب فی المعراج: ١٣٦\٧.
(3): الجامع لاحكام القرآن: ١٠\١٣٨، التعليق الصبيح: ١٣٦\٧.
(4): التعليق الصبيح: ١٣٦\٧.
(5): شرح صحيح البخاری لابن رجب: ٥\١٢، فيض الباری ٥\١٢.
(6): فتح الباری: ١\٥٩٦
(7): عمدة القاری: ١٧\٢٦، باب حديث الاسراء، فتح الباری: ٧\٢٤٧، باب حديث الاسراء. التعليق الصبيح: ١٣٦\٧، مرقاة المفاتيح، باب فی المعراج: ١٠\٥٤٧.
(8): فتح الباری: ٧\٢٤٧.
(9): فتح الملهم: ١٨٥\٢، باب الاسراء برسول الله صلی الله تعالی عليه وسلم الی السموات.

**اسراءاومعراج د بیدارئ په حالت کښې شوې دی او که دخوب په حالت کښې:** دتیر شوی بحث په شان دسلف صالحینو په دې حقله هم مختلفه قولونه دی.دلته هم د جمهورو علماؤ مسلك هم هغه دې کوم چې وړاندې ذکرکړې شو چې دادواړه واقعې د بیدارئ په حالت کښې راپیښې شوې دی.[1]

**د جمهورو علماؤ ورومبې دلیل:** د جمهورو مسلك دا وو چې الله رب العزت رسول الله ﷺ خپل دربار ته د بیدارئ په حالت کښې د رسول الله ﷺ د جسم مبارك او د روح مبارك سره رابللې وو.ددې دلیل د قرآن پاك دا آیت دې ﴿سُبْحٰنَ الَّذِیْۤ اَسْرٰی بِعَبْدِهٖ لَیْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اِلَی الْمَسْجِدِ الْاَقْصَا﴾[2] چې په دې آیت کښې هم په وړومبئ کلمه کښې دې اړخ ته اشاره موجوده ده چې دا سفر یواځې روحانی نۀ وو بلکه جسمانی وو[3].ځکه چې کلمه د(سبحان) د تعجب او د څۀ لوئې شان د کار دپاره استعمالولې شی[4].که معراج یواځې روحانی(یعنی د خوب په حالت کښې)وو ،نو په دې کښې بیا داسې څۀ عجیبه خبره نه وه چې د هغې د پاره دې کلمه د(سبحان)استعمال کړې شی،ځکه چې خوب خو هر انسان لیدلې شی چې ګنی زۀ د زمکې د یو ګوټ نه بل ګوټ ته لاړم یا آسمان ته اوختم،یا بیا دا چې زۀ د اسمانونو نه پورته عرش ته اورسیدم وغیره وغیره او په دې باندې څوك تعجب هم نۀ کوی[5].

**د جمهورو علماؤ دویم دلیل:** د جمهورو دویم دلیل هم په دې آیت کښې د الله ﷻ د رسول الله ﷺ دپاره د(عبده)خطاب دې،او هغه داسې چې د عبد اطلاق د جسم اور روح دواړو په مجموعې باندې کیږی[6]،لکه څنګه چې یو سړې اووائی چې(جاءنی عبدفلان)نو ددې حقیقی او سمدستی مازغو ته راتلونکې معنی هم داده چې دا عبد دبیدارئ په حالت کښې د جسم او د روح دواړوسره راغئ، لهذاد (عبد)مصداق د روح او د جسد په مجموعې او د بیدارئ په حالت کښې ددې فعل په صدور باندې کیږی،نۀ چې په خوب یا یواځې په روح[7]،بلکه دا چې الله رب العزت په قرآن مجید کښې یو بل ځائې (عبد)د جسد مع الروح او د بیدارئ د حالت مجموعې دپاره استعمال کړې دې[8].لکه﴿لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ یَدْعُوْهُ كَادُوْا یَكُوْنُوْنَ عَلَیْهِ لِبَدًا﴾[9](هر کله چې اودریدلو دالله بنده دې دپاره چې هغه راوبلی

---

(1):فتح الباري:٢٤٧/٧.
(2):التفسیر الکبیر ګ١٢١/١٢
(3):تفسیر ابن کثیر:١١٤/٤
(4):فتح الباري٢٤٩/٧
(5):روح المعانی ٩/٨
(6):التفسیر الکبیر ١٢١/١٢٠،روح المعانی ٩/٨.
(7):بیان القرآن :٣٦/١٢.
(8):التفسیر الکبیر:١٢١/١٢،سبل الهدی والرشاد:١٢/٣
(9):سورة الجن:١٩

(نو) د خلقو په هغهٔ باندې جوړه شوه بيړه([1]).او ﴿أَرَءَيْتَ ٱلَّذِى يَنْهَىٰ ۝ عَبْدًا إِذَا صَلَّىٰٓ ۝﴾([2])(تا كتلې دى هغهٔ ته؟ چې منع كوى،يو بنده كله چې هغهٔ مونځ كوى)([3]).
بله دا چې كه داسفرپه خوب كښې او يواځې روح ته راپيښ شوې وې نو (بروح عبده) به استعمال شوې وو (بعبده) به نهٔ وو استعمال شوې([4]).
امام رازى رحمه الله ددې خبرې وضاحت په داسې شان سره كړې دې چې د جمهورو مسلك د قرآن او د حديث دواړو نه ثابتيږى(د قرآن مجيد نه ددې ثبوت وړاندې تير شو،او د حديث مبارك نه ددې ثبوت د صحاح هغه مشهور حديث دې كوم چې د رسول الله ﷺ د مكې مكرمې نه تر بيت المقدسه پورې او بيا د هغه ځائې نه آسمانونو ته تګ بيانوى([5]).
**د جمهورو دريم دليل:** د جمهورو يو دليل دادې چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل(أسري بي)دا فعل دې.او په افعالو كښې اصل دادې چې دا د بيدارئ په حالت كښې ادا كولې شى ماسوا ددې نه كه چرې ددې خلاف څهٔ عقلى يا شرعى دليل قائم شى نو هغه فعل به تربې بيا خارج وى او دغه عقلى يا شرعى دليل دلته نشته دې([6]).
**د جمهورو څلورم دليل:** علامه قسطلانى رحمه الله ليكلې دى چې دا خبره په تواتر سره ثابته ده چې رسول الله ﷺ په براق باندې سور بوتلې شوې دې،او په څناورو باندې روحونه نهٔ بلكه جسمونه سورولې شى،په دې باندې علامه زرقانى رحمه الله ليكى:لهٰذا دا خبره ضرورى ده چې په براق باندې سوريدونكې جسد سره د روح دې سور وى([7]).
**د جمهورو څلورم دليل:** هر كله چې رسول الله ﷺ د معراج نه تشريف راوړلو اوپه صبا ئې د قريشو په وړاندې خپله ټوله قصه واوروله نو خلقو د رسول الله ﷺ خبره او نهٔ منله.او څه نوې نوې ايمان راوړونكى په كښې مرتد هم شو،او يوه ډله په كښې ابوبكر صديق رضي الله عنه له لاړه او ورته ئې اووئيل چې ستا ملګرې داسې خبره كوى چې هغهٔ د شپې شپې بيت المقدس ته اودهغه ځايونو نه آسمانونو ته لاړو،حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه تربې نه پوښتنه اوكړه چې آيا هغهٔ داسې خبره كوى؟ خلقو ورته جواب ورکړو چې آو هغهٔ داسې بيان كوى،په دې باندې ابوبكر صديق رضي الله عنه اوفرمائيل:چې هغهٔ داسې خبره بيانوى نو صحيح ده،رښتيا بيانوى،په دې باندې ورته خلقو اووئيل چې آيا ددې خبرې په بناء ورته هم رېښتينې وائې چې هم په يوه شپه كښې بيت المقدس ته لاړو او صبا نه وړاندې واپس هم راغلو .هغوى ورته په جواب كښې اووئيل چې آو زهٔ د هغوى تصديق كوم([8]).
لهٰذا د معراج د واقعې په اوريدو سره د بعضې حضراتو مرتد كيدل،د قريشو رسول الله ﷺ ته په

---

([1]):ترجمه تفسير عثمانى،ص ٤٤٦.
([2]):سورة العلق:۹،۱۰.
([3]):تفسير عثمانى،ص:۷۸۲
([4]):الجامع لاحكام القرآن:۱۰/۱۳۶،شرح المواهب للزرقانى:۸/۱۵.
([5]):التفسير الكبير:۱۲/۱۲۱
([6]):شرح المواهب:۸/۱۵
([7]):تفسير ابن كثير:۴/۱۲۰،شرح المواهب:۸/۱۵
([8]):دلائل النبوة للبيهقى،باب الاسراء برسول الله صلى الله عليه و على آله وسلم:۲/۳۶۱

دې حقله د دروغو نسبت كول،او د تعجب او د دروغ كولو په توګه ابوبكرصديق ﷺ له ورتلل او ددې خبرې خبر وركول او بيا د ابوبكر صديق ﷺ تصديق كول،دا ټولې خبرې په دې باندې دلالت كوي چې دا واقعه د بيدارئ په حالت كښې جسد مع الروح ته راپيښه شوې وه،اوكه چرې د خوب په حالت كښې معراج وې نو دا ټولې خبرې اترې او بحث وغيره د عقل نه ډيرې لرې دی بيا (١).

**د جمهورو شپږم دليل:** هركله چې رسول الله ﷺ د معراج واقعه ام هانى رضى الله عنها ته وئيلې وه نو هغوى رسول الله ﷺ ته مشوره وركړې وه چې دوى دې ددې ذكر چا ته نۀ كوى ګنې نو خلق به مو نورهم زيات تكذيب اوكړى،اوس كه چرې معامله د خوب وې نو په دې كښې د تكذيب څۀ خبره وه؟ يعنې مطلب دا چې دا واقعه د بيدارئ په حالت كښې راپيښه شوې وه،ځكه خو دا ټولې قصې مخې ته راغلې.(٢)

**دعلامه شبير احمد عثمانى رحمه الله په ژبه د جمهورو د مسلك وضاحت:** علامه شبير احمد عثمانى ﷫ فرمائى[قرآن كريم چې څنګه په يو قسم اهتمام او په واضحه او روښانه عنوان سره واقعه د (اسراء) ذكر فرمائيلې ده او چې په څنګه قسمه كره والى او تكړه انداز سره مخالفين ددې د انكار او تكذيب دپاره تيار ميدان ته راوتل تر دې چې بعضې موافقو حضراتو قدمونه هم په خوځيدو شو،نودا ټولې خبرې ددې دليل دې چې داواقعه د يو عجيبه اونا اشنا خوب يا د روحانى سفر واقعه نه وه،د روحانى سفر اود انكشاف په رنګ كښې د رسول الله ﷺ چې كومې دعوې د نبوت د ابتداء نه راروانې وې،نو بيا په دې ضمن كښې د اسراء دعوى(كه چرې د خوب په حالت كښې وې. مترجم) د كفارو دپاره ددغه مخكښنو دعوو نه(كومې چې د خوب د حالت سره تعلق لرى.مترجم)څه لويه د تعجب او د حيرانتيا خبره نه وه،چې په خصوصې توګه ئې بيا رسول الله ﷺ د تكذيب او د ترديد او د خندا او ټوقو نښه ګرځولې وه او چې خلقو له ئې بيا دا دعوت هم وركولو چې راشئ نن د نبوت د دعوى كوونكى يوه نوې خبره واورئ،(يعنى كه چرې دا د خوب واقعه وې نو دا خبرې به نۀ كيدې،مترجم)او نۀ بيا رسول الله ﷺ ته په خاص توګه ددې واقعې په ښكاره كيدلو باندې د داسې قدرې سوچ او فكر او ويريدلو ضرورت وو كوم چې د بعضو صحيح رواياتونو نه ثابت دى،په څنو احاديثو كښې ښۀ ښكاره لفظ دې(ثُمَّ أَصْبَحْتُ بِمَكَّةَ)يا(ثُمَّ أَتَيْتُ مَكَّةَ)(بيا زۀ د صبا په وخت كښې مكرمې ته راورسيدم)كه معراج چرته ځان له يو روحانى كيفيت وې نو بيا به رسول الله ﷺ د مكې مكرمې نه څنګه غائب شوې وې،او د شداد ابن اوس د روايت مطابق د بعضو صحابۀ كرامو دا پوښتنه كول څه معنى لرى چې د شپې مونږ تاسو ﷺ د ستاسو د قيام په ځائې اوكتئ،تاسو چرته تشريف اوړې وو؟

زمونږ په نيز د(اسرى بعبده)دا معنې اخستل چې( الله ﷻ صرف په خوب كښې خپل بنده يواځې په روحانى لحاظ سره د مكې مكرمې نه بيت المقدس ته بوتللو)ددې معنى مشابه دى چې څوك سرې د (فَأَسْرِ بِعِبَادِي)دا معنى واخلى چې(اې موسى عليه السلا زما بنديګان(بنى اسرائيل) په خوب كښې يا صرف په روحانى لحاظ سره ئې ځان سره واخله او د مصر نه اوزه)يا په سورة الكهف كښې د

(١):تفسير قرطبى:١٣١١١٠،تفسير ابن كثير:١١٤١٤،مرقاة المفاتيح،كتاب الفضائل والشمائل،باب فى المعراج ٥٨٤١١٠:

(٢):سيرت ابن هشام،ذكر الاسراء والمعراج:٤٠٢١١

حضرت موسى عليه السلام حضرت خضر عليه السلام له د ملاقات دپاره تلل او د هغوى په ملګرتيا کښې بيا سفر کول د ګومې دپاره چې په څو ځايونو کښې (فانطلقا) لفظ راغلې دې، ددې دې دا مطلب واخستې شى چې دا ټول هر څۀ صرف په خوب کښې يا په روحانى سفر سره واقع شوې وو.[1]

**د خوب په حالت کښې دمعراج د قائلينو وړومبې دليل:** د معراج منامى (د خوب په حالت کښې) د قائلينو وړومبې دليل دادې چې محمد بن اسحاق بن يسار دا اثر ذکر کړې دې چې معاويه ابن ابى سفيان رضي الله عنهما نه چې کله د رسول الله ﷺ دمعراج د سفر په حقله تپوس اوکړې شو، نو دوى اوفرمائيل چې دا د الله جل جلاله له اړخه رېښتونې خوب وو، او د حضرت حسن بصرى رحمه الله نه نقل کړې شوې دى چې دا آيت مبارک ﴿وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِي أَرَيْنَاكَ إِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ﴾ هم په دې حقله نازل شوې دې.[2]

لهذا دا اثر اود آيت مبارک نه ثابتيږى چې سفردمعراج د بيدارئ په حالت کښې نه بلکه د خوب په حالت کښې په خوب کښې راپيښ شوې دې، لکه څنګه چې دا خبره په اثر کښې اوپه آيت مبارک کښې د لفظ ﴿الرُّءْيَا﴾ نه واضحه ده.

**د ذکر کړې شوى دليل جواب:** محمد ابن اسحاق چې په کوم سند سره دحضرت معاويه ابن ابى سفيان رضي الله عنهما اثر ذکر کړې دې هغه دادې (حدثنى يعقوب بن عتبة بن المغيرة بن أخنس أن معاوية بن أبى سفيان..... الخ) شامى رحمه الله ليکلي دى چې يعقوب اګرچه ثقه دې خو ولې دوى د حضرت معاويه رضي الله عنه زمانه نۀ ده موندې، لهذا دا خبر منقطع دې، او په منقطع حديث سره استدلال کول صحيح نۀ دى.[3]

بله دا چې دا روايت ددې وجې نه هم باطل دې چې د معاويه بن ابى سفيان رضي الله عنهما وفات په (۶۰) هجرئ کښې شوې دې[4]، او د يعقوب بن عتبه وفات په (۱۲۸) هجرئ کښې شوې دې[5].

په ذکر کړې شوى اثر او آيت مبارکه کښې د ﴿الرُّءْيَا﴾ د لفظ نه استدلال کړې شوې دې، څنګه چې دا خبره معلومه ده چې د ﴿الرُّءْيَا﴾ استعمال د اودۀ کيدلو په حالت کښې د خوب ليدلو دپاره غالب دې، ددې وجې نه په دې دواړو ځايونو کښې د معراج د خوب په حالت کښې د راپيښيدلو مغالطه شوې ده.

حال دا چې د ﴿الرُّءْيَا﴾ استعمال په حالت د بيدارئ کښې په حقيقى سترګو سره د ليدلو دپاره هم کيږى، لکه په لسان العرب کښې دى.[6]

وقد جاء الرؤيا فى اليقظة. قال الراعى:

فكبّر للرؤيا وهشّ فؤاده
وبشّر نفسا كان قبل يلومها

وعليه فسر قوله تعالى: (وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِي أَرَيْنَاكَ إِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ)

---

([1]): تفسير عثمانى. ص ۳۶۷
([2]): تفسير ابن كثير : ۱۱۴\۴. سيرت ابن هشام: ۴۰۰\۱۱
([3]): سبل الهدى والرشاد. فى كيفية الاسراء: ۶۹\۳
([4]): إكمال التهذيب الكمال: ۲۶۴\۱۱. الاصابة فى تميز الصحابة: ۴۳۴\۳
([5]): الكاشف. الترجمة: ۵۵۹۷ : ۱۳۹\۳
([6]): لسان العرب: ۸۸\۵. التفسير الكبير: ۱۸۸\۲۰

قال: وعليه قول أبي الطيب:

(ورؤياك أحلى في العيون عن الغمض)

امام ثعلبي رحمه الله په خپل تفسير کښې د ﴿وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا﴾ آيت لاندې ليکي، چې دلته ﴿الرُّءْيَا﴾ نه مراد غريدلو سترګو سره ليدل دي، او ددې نه مراد هغه عجائب او د الله ﷻ د قدرت نښو ته کتل دي کوم چې رسول الله ﷺ د معراج په شپه اوليدل، هم دا وجه وه چې اوريدونکي په فتنه کښې واقع شو، چا انکار اوکړو، چا تکذيب اوکړو، او څوک په کښې د دين نه بيرته اوګرځيدل.

او هم په دې باندې به د حضرت معاويه رضي الله عنه حديث حمل کولې شي، چې هر کله د هغوی نه د رسول الله ﷺ د اسراء په حقله پوښتنه اوکړې شوه نو هغوی ورته اوفرمائيل (كانت رؤيا من الله صادقة) يعنی دا د الله ﷻ له اړخه په غريدلو سترګو سره ليدل وو.

او د ذکر کړې شوی آيت ذکر شوې تاؤيل کول، سعيد بن جبير، حسن، مسروق، ابو مالك، قتاده، مجاهد، ضحاك، ابوزيد، ابن جريج، عکرمه او د عطيه رحمه الله قول دی.[1]

امام بخاری رحمه الله په باب المعراج، کتاب التفسير او کتاب القدر کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا اثر نقل کړې دې چې په آيت مبارك کښې ﴿الرُّءْيَا﴾ نه مراد د اودهٔ کيدو په حالت کښې خوب ليدل نهٔ دې، بلکه رؤيه بصری او رؤيه عينی مراد دې.[2]

حضرت ابن عباس رضي الله عنه سيد المفسرين دې، هغوی دپاره خو رسول الله ﷺ د قرآن د فهم دعا کړې وه، لهذا په دې حقله به د هغوی قول معتبر وی.

په دې مراد باندې په خپله هم په آيت مبارکه کښې دليل دې چې تاسو ته کوم څه ښودلې شوې وو هغه د خلقو دپاره فتنه وه، که چرې دا دخوب په حالت کښې وې نو بيا په دې کښې د فتنې کيدل څنګه ممکن وو، په خوب کښې دا څهٔ کوې بلکه ددې نه د وړاندې خبرې هم راتلې شی، فتنه خو به په دې صورت کښې وې چې ددې نه مراد رؤيت بصری وی[3]، او که چرې ددې نه مراد خوب هم شی نو ددې نه علاوه د ذکر کړې شوې آيت په تفسير کښې د مفسرينو نور قولونه هم دی:

بعضې علماء فرمائی چې ددې آيت تعلق د بدر د جنګ سره دې، رسول الله ﷺ ته د جګړې نه وړاندې د کفارو د قتل شوو افرادو د قتل ځايونه ښودلې شوې وو، رسول الله ﷺ فرمائيلې وو. (هذا مصرع فلان وهذا مصرع فلان وهذا مصرع فلان)[4].

د بعضې علماؤ قول دادې چې دا آيت د حديبيې د خوب په حقله دې، رسول الله ﷺ ته په خوب کښې ښودلې شوې وو چې رسول الله ﷺ بيت الله ته داخل شو او طواف ئې اوکړو[5].

په بعضو رواياتو کښې دی چې ددې نه مراد د بنو اميه مخصوص حالت دې، رسول الله ﷺ په خوب کښې ليدلې وو چې بنو اميه د رسول الله ﷺ په منبر باندې خيژی نو رسول الله ﷺ ددې تعبير داسې راوخکو چې دوی ته به دنيا نصيب کيږی[1].

---

(1): الكشف والبيان المعروف بتفسير الثعلبي: ٥٨١٤، نسيم الرياض، القسم الاول فى تعظيم العلى الاعلى لقدر النبى ﷺ: ١٠٠١٣

(2): صحيح البخارى، باب المعراج: ٣٨٨٨، و فى التفسير: ٤٧١٦، وفى القدر: ٦٦١٣

(3): تفسير قرطبى: ١٨٣١١٠، فتح البارى، كتاب مناقب الابصار: ٢٧٣١٧، عمدة القارى: ٤٠١١٧

(4): روح المعانى: ١٠٢١٨، إرشاد السارى: ٢٥١١٤

(5): التفسير الكبير: ١٨٨١٢٠، نسيم الرياض: فصل فى إبطال حج من قال إنها نوم: ١١٣١٣، تفسير قرطبى: ١٨٣١١٠، روح المعانى: ١٢٨١٨

امام قرطبي رحمه الله ليکلي دی چې ددې آيت چې کوم د حديبيې په حقله د خوب کوم تاويل کړې شوې دې نو دا تاويل ضعيف دې،ځکه چې دا سورت مکي دې او رؤيت په مدينه منوره کښې شوې دې،[1] ددې نه علاوه دبنو اميه په حقله چې کوم تاويل کړې شوې دی نو په دې باندې هم د بعضو حضراتو له اړخه اعتراض کړې شوې دې،خو ولې امام رازی،امام قرطبي،او علامه آلوسي رحمه الله ددې جواب ورکړې دې،چې اګرچې د رسول الله ﷺ دپاره په مکه مکرمه کښې منبر نۀ وو خو ولې دا خبره بالکل ممکنه ده چې رسول الله ﷺ د خپل خان دپاره په مدينه منوره کښې قائميدونکې منبر په حقله په مکه مکرمه کښې خوب ليدلې وی[3]

دا ټول قولونه په خپل ځائې خو ولې سمه خبره دا ده چې ددې آيت تعلق د معراج سره دې[4]

بله دا چې د ذکر کړې شوی آيت تاويل کولو سره ځنې علماؤ دا جواب هم ورکړې دې چې د بيدارئ په حالت کښې د عالم غيب د مشاهدو د تعبير دپاره په عربي لغت کښې څه لفظ نشته دې.ددې وجې نه په دې مقام کښې هم﴿الرُّءْيَا﴾ زيات مناسب وو ،ځکه چې رسول الله ﷺ په عالم غيب کښې د ملکوت د عجائبو مشاهده کړې وه،لکه څنګه چې سړې په خوب کښې د ما فوق العقل ډيرو عجيبه او نا اشنا خبرو مشاهده کوی.بله داچې په تورات کښې ددې لفظ﴿الرُّءْيَا﴾اطلاق په کثرت سره په حالت د بيدارئ کښې د انبياؤ عليهم السّلام د مشاهداتو دپاره کړې شوې دې[5]

علامه شهاب الدين احمد بن محمد قسطلاني رحمه الله دا ليکلي دی چې سفر د معراج د بيدارئ په حالت کښې شوې دې،ددې باوجود ددې په﴿الرُّءْيَا﴾ سره د تعبير کولو وجه ممکنه کيدې شی دا وی چې د منکرينو د قول مطابق په توګه د مشاکلت نې داسې ونيلې وی[6]

**د خوب په حالت کښې د معراج د قائلينو دويم دليل:** د جسماني معراج انکار کوونکو دويم دليل هغه حديث مبارک دې چې امام بخاري رحمه الله په واسطه د شريك بن عبدالله،د حضرت انس رضی الله عنه نه د هغې تخريج کړې دې،په دې کښې د رسول الله ﷺ د اودۀ کيدلو صراحت موجود دې،يو نظر پرې واچوئ(وهونائم في المسجد الحرام)او د حديث مبارك په آخره کښې دی(واستيقظ وهوفي المسجد الحرام)[7]

**د ذکر کړې شوی دليل جواب:** د منکرينو د دليل وروميې جواب دادې چې د شريك بن عبدالله په روايت کښې ډيرې داسې خبرې دی چې هغه خبرې د معراج د قصې نقل کوونکو راويانو کښې هيڅ چا هم نۀ دی نقل کړې[8]

---

([1]):المصدر السابق،تفسير السمرقندي:٢٧٤١٢.

([2]):تفسير قرطبي:١٨٣١١٠

([3]):التفسير الكبير:١٨٨١١٠،تفسر قرطبي:١٨٣١١٠،روح المعاني:١٠٢١٨

([4]):التفسير الكبير:١٨٩١٢٠

([5]):فيض الباري،باب المعراج:٥٣٢١٤

([6]):ارشاد الساري:٢٥١٤

([7]):صحيح البخاري،كتاب التوحيد،رقم الحديث:٧٥١٧ ،و كتاب المناقب،باب:كان النبي صلى الله عليه و سلم تنام عينه و لا ينام قلبه،رقم الحديث:٣٥٧٠

([8]):فتح الباري،كتاب التوحيد:٦٠٣١١٣

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې د شريك په روايت كښې چې كومې خبرې د مشهورو راويانو دروايت خلاف دی هغه لس بلكه د لسو نه هم زياتې دی،بيا حافظ رحمه الله دولس وهمونه او ابن قيم رحمه الله ديارلس وهمونه ذكر كړې دی،چې په كښې يو وهم دا هم دې چې رسول الله ﷺ ته معراج د خوب په حالت كښې شوې دې(١).

**د شريک بن عبدالله په حقله د امامانو قولونه**:شريك بن عبد الله ته ډيرو امامانو ثقه وئيلې دې او بعضې حضراتو دوی ته ضعيف هم وئيلې دی.

حافظ ابن حجر رحمه الله د عدل او فيصله كوونكې خبره دا فرمائيلې ده چې د شريك بن عبد الله احاديث د اصحاب اصول حضرات د دليل نيولو دپاره قابل گرځولې دی،خو ولې د اسراء په حديث كښې(د كوم روايت چې دوی د انس ﷺ نه كوی)څه خاېونه دی كوم چې شاذ دی،او د دغه خاېونو ملګرتيا دپاره د بل چا څه قول يا خبره نۀ ترلاسه كيږی(٢). په شريك بن عبد الله باندې د تفصيلې كلام او د امامانو قولونه په كشف البارى دريم جلد كښې تير شوی دی(٣).

بله داچې پدې راوی باندې امام نووی(٤)،حافظ ابن حجر(٥)علامه عينی(٦)،علامه خفاجی(٧)او علامه شبير احمد عثمانی رحمه الله(٨)هم د ټول قولونه راجمع كړې دی اوتفصيلی بحث ئې پرې كړې دې.

**دويم جواب**:قاضی عياض رحمه الله په الشفاء كښې دا خبره ليكلې ده چې ممكنه ده چې رسول الله ﷺ ته د اسراء په دې سفر كښې مختلف حالتونه راپيښ شوې وی،مثلاً دا چې په څۀ حصه كښې رسول الله ﷺ خپل سترګې پټې كړې وی او اودۀ وی،د ادب د وجې نه يا صرف ددې وجې نه چې د خپل رب نه علاوه نور څوك نۀ وينی،او په بعضې حصه كښې رسول الله ﷺ بيدار پاتې شوې وی او بعضې حالاتو كښې په كښې د خوب او د بيدارئ د مينځ په حالت كښې وی.

په دې باندې د الشفاء شارح علامه خفاجی رحمه الله ليكې چې دا خو هسې اټكلی توجيه او د اندازې لګولو خبره ده،كه مصنف رحمه الله دا ذكر كړې نۀ وې نو ښۀ به وه(٩).

**دريم جواب**:يو جواب دا وركړې شوې دې چې په دې ځائې كښې د خوب شكل اضطجاع(ستونی ستغ) نه تعبير په(نوم)سره كړې شوې دې،څكه چې اضطجاع وائی داسې حالت ته چې يو سړې ځان په زمكه داسې واچوی چې نۀ ولاړ وی او نۀ ناست وی،لهذا دې حالت ته كله كله مجازاً تعبير په نوم سره هم كولې شی،دخوب اوددې شكل پخپل مينځ كښې دملابست د وجې نه(١٠)،هم په دې مفهوم

(١):فتح البارى:٦٠٢/١٣،نسيم الرياض فی شرح شفاء القاضی عياض:١١٧/٣

(٢):هذی السارى مقدمة فتح البارى،ص:٥٨٢

(٣):كشف البارى ،كتاب العلم :١٥٨/٣

(٤):شرح النووى على صحيح مسلم:٣٨٤/٣

(٥):فتح البارى:٢٥٦/١٧

(٦):عمدة القارى:٣٠/١٧

(٧):نسيم الرياض:١١٤/٣

(٨):فتح الملهم:١٧١/٢

(٩):نسيم الرياض،القسم الاول فی تعظيم العلى الاعلى لقدر النبى صلى الله عليه وسلم:١١٦/٣

(١٠):لسان العرب:٢٢٨،نسيم الرياض:١١٧/٣

باندې د حضرت انس ﷺ هغه روايت هم دلالت کوي(١)،په کومې کښې چې د معراج د سفر وړومبي حالت بيان کړې شوې دې،د کومې چې دا الفاظ په روايت کښې موجود دي(بينا أنا في الحطيم).ورعا قال:(في الحجر و مضطجعا)او د بعضو رواياتو مطابق(بين النائم واليقظان)الفاظ دي.لهذا ددې نه به خوب مراد نهٔ شي اخستې بلکه د خوب شکل به ترې نه مراد اخستې شي.(٢)

**څلورم جواب**:بعضې علماؤ دا جواب ورکړې دې چې د نوم اوداستيقاظ نه دې هم ددې ظاهري معنى مراد واخستې شي نو بيا هم په کښې څهٔ باك نشته،هغه داسې چې په دې صورت کښې به دا وئيلې شي چې د رسول الله ﷺ سترګې خو اودهٔ وې خو ولې زړهٔ ئې بيدار وو.او د احاديثو مبارکو نه دا خبره ثابته ده چې د انبياؤ عليهم السلام سترګې خو اوده کيږي خو ولې زړونه ئې بيدار وي(٣).

خو په دې باندې اعتراض کيږي چې د رسول الله ﷺ سفر د معراج د جسم سره وو او بيا دې د دوى سترګې اودهٔ وي نو دا خو يواځې دا نه چې د عادت خلاف خبره ده بلکه دا بې فائدې هم ده.

په دې باندې په الشفاء کښې قاضى عياض رحمه الله ليکي چې په دې کښې حکمت دا کيدې شي چې رسول الله ﷺ دا د دې دپاره کړې وي چې د دوى احساسات او توجو د الله ﷻ نه اخوا نهٔ شي او بل چا ته متوجې نه شي.

ددې په جواب کښې علامه خفاجي رحمه الله ليکي چې که داسې مراد واخستې شي نو بيا د جسماني معراج ضرورت هم نهٔ پاتې کيږي،يواځې په روحاني معراج سره هم دا مقصد حاصليدل ممکن دي.

بله دا چې د رسول الله ﷺ نورو پيغمبرانو له جمع ورکول،او د پيغمبرانو عليهم السلام سره ملاقاتونه،او په خاص طور موسى عليه السلام ته بيا بيا رجوع کول هم ددې خبرې انکار کوي چې د اودهٔ سړي نه ددې خبرو صادريدل نهٔ شي کيدې(٤).

**پنځم جواب**:بعضې علماؤ دا جواب ورکړې دې چې خوب د قصې په ابتداء کښې وو،وروستو بيا رسول الله ﷺ بيدار شوې وو،ځکه چې سره ددې روايته په هيڅ يو روايت کښې داسې څه خبره نشته چې د هغې نه دا خبره معلومه شي چې رسول الله ﷺ په ټوله واقعه کښې اودهٔ وو(٥).

**په ذکر کړې شوى جواب باندې اشکال او د هغې جواب**:په ذکر کړې شوى جواب باندې اشکال کيږي چې دا خبره نهٔ منم چې رسول الله ﷺ د قصې په اوله کښې اودهٔ وو او بيا بيدار شو،ځکه چې د روايت په آخر کښې(استيقظ وهو في المسجد الحرام)دي،ددې نه دا خبره معلوميږي چې رسول الله ﷺ په ټوله قصه کښې اودهٔ وو(٦).

ددې يو جواب خو تير شو چې دا زياتې صرف د شريك بن عبد الله په روايت کښې دې کوم چې غير

---

(١):صحيح البخاري،کتاب بدء الخلق،باب ذکر الملائكة،رقم الحديث:٣٢٠٧،جامع الاصول،رقم الحديث:٨٨١٦، ٢٩٢/١١.

(٢):نسيم الرياض:١١٦/٣

(٣):صحيح البخاري،کتاب التوحيد،باب قوله:(وكلم الله موسى تكليما)رقم الحديث:٧٥١٧.

(٤):نسيم الرياض:١١٥/٣، ١١٦

(٥):ارشاد الساري:٤٨٥/١٥،فتح الملهم:١٧١/٢،نسيم الرياض:١١٤/٣

(٦):ارشاد الساري:٤٨٥/١٥،الکوثر الجاري:٢٩٠/١١

مقبول دی (¹).

دویم جواب دا ورکړې شوي دې،چې دې نه مراد د هغه خوب نه بیداریدل دی کوم چې رسول الله ﷺ د اسراء نه د راتلو نه پس کړې وو.

دریم جواب دا ورکړې شوې دې چې ددې نه مراد د خوب نه بیداریدل نهٔ دی،بلکه د عالم ملکوت په مشاهده کښې د استغراق نه راوتل ترې نه مراد دی.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې دا جوابونه په هغه صورت کښې دی چې دا دواړه خبرې هم په یو قصه کښې واقع کیدل مراد واخستې شی،ګنی نو دا هم ممکنه ده چې داسې په نورو روحانی معراجونو کښې راپیښ شوي وی،نو بیا په دې صورت کښې به څهٔ اشکال پاتې نهٔ شی(²).

**د خوب په حالت کښې د معراج د قائلینو دریم دلیل:** د جسمانی معراج انکار کوونکو دریم دلیل د حضرت مالك بن صعصعة رضی الله عنه حدیث دې،کوم چې امام بخاری رحمه الله په کتاب بدء الخلق کښې(³)او امام مسلم رحمه الله په کتاب الایمان کښې ذکر کړې دې،په کوم کښې چې دی(⁴)(انا عند البیت بین النائم والیقظان)چې زهٔ په خپل کور کښې د خوب او د بیدارئ په مینځمی حالت کښې وو.

او امام بخاری رحمه الله هم د دوی په روایت په باب المعراج کښې ذکرکړې دی،په کوم کښې چې دی (بینما انا فی الحطیم) وربما قال:فی الحجر و مضطجعا)چې زهٔ په حطیم کښې یا د حجر سره مې ډډه وهلې وه ملاست ووم(⁵). لهذا ددې دواړو قسمو د روایتونو نه دا خبره ثابتیږی، چې رسول الله ﷺ د معراج د سفر په وخت کښې د بیدارئ په حالت کښې نهٔ وو.(⁶)

**د ذکر کړې شوی دلیل جواب:** علامه زرقانی رحمه الله د ذکر کړې شوی دلیل په جواب کښې لیکی چې د(بین النائم والیقظان)حالت د خوب حالت نهٔ دې بلکه مطلب دادې چې د رسول الله ﷺ خوب بیدارئ ته نزدې وو. او دا ددې سفر د ابتدائی حالت بیان دې،بیا هر کله چې رسول الله ﷺ مسجد حرام ارخ ته بوتلې شو او په براق باندې سوارهٔ کړې شو،نو دغه وخت رسول الله ﷺ د بیدارئ په حالت کښې وو نو بیا د واقعې آخره پورې هم د بیدارئ په حالت کښې وو(⁷).

علامه خفاجی رحمه الله لیکلې دی چې ددې نه مراد د ناستې په حالت کښې پرکالی ده دا نه چې خوب ترې نه مراد دې(⁸).

---

(¹):شرح النووی علی صحیح مسلم:۳۸٤\۱۳،فتح الباری:۲۵۶\۷،عمدة القاری:۳۰\۱۲۷،نسیم الریاض:۱۱٤\۱۳،فتح الملهم:۱۷۱\۱۲.

(²):تحفة الباری،کتاب التوحید،باب(وکلم الله موسی تکلیما):۵۷۲\۶،الکوثر الجاری،کتاب التوحید:۲۹۰\۱۱،عمدة القاری:۲۶۰\۱۲۵،ارشاد الساری:٤۸۵\۱۵،فتح الباری:۶۰۲\۱۳،۶۰٤ شرح المواهب للزرقانی،المقصد الخامس فی تخصیصه علیه السلام بخصائص المعراج والاسراء:٤۳۱۸،نسیم الریاض فی شرح شفاء القاضی عیاض:۱۱٤\۱۳.

(³):صحیح البخاری،کتاب بدء الخلق،باب ذکر الملائکة،رقم الحدیث:۳۲۰۷.

(⁴):صحیح مسلم،کتاب الایمان،رقم الحدیث : ۱۶٤.

(⁵):صحیح البخاری،باب المعراج،رقم الحدیث:۳۸۸۷

(⁶):نسیم الریاض:۹۹\۱۳

(⁷):شرح النووی:۳۸٤\۱۲،فتح الباری:۲۵۶\۷،عمدة القاری:۳۰\۱۱۷،تحفة الأحوذی سورة الم نشرح:۲۷۹\۹.

(⁸):نسیم الریاض:۹۹\۱۳ ، ۱۱٤

**دویم جواب:** امام قرطبي رحمه الله لیکلي دي چې رسول الله ﷺ ته ډیر کرته معراج شوی دی.او دا خبره ځه بعیده نه چې بعضي دې ورته د هغې نه د خوب په حالت کښې شوې وی.لهٰذا د صحیحینو په روایت کښې چې کوم الفاظ دی(بینا أنا عند البیت بین النائم والیقظان)هغه هم په دې باندې محمول دی چې ممکنه ده دا د خوب په حالت کښې کوم معراج شوې وی نو دا د هغې په حقله وی(١).

**د خوب په حالت کښې د معراج د قائلینو ځلورم دلیل:** جسم سره د معراج د انکار کوونکو ځلورم دلیل دادې چې ابن اسحاق رحمه الله په(السیرة)کښې دا روایت ذکر کړې دې(حدثني بعض آل أبي بکر أن عائشة رضي الله عنها کانت تقول: ما فقد جسده الشریف ولکن أسري بروحه)(٢).

هم دا روایت قاضی عیاض رحمه الله په الشفاء کښې دې الفاظو سره رانقل کړې دې(مَا فَقَدْتُ جَسَدَ رَسُوْلِ اللهِ صلی الله علیه واله وسلم)(٣).

د روایت ترجمه داده:محمد بن اسحاق رحمه الله فرمائي چې د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خاندان یو بنده ما ته دابیان اوکړو چې حضرت عائشې رضی الله عنها به فرمائیل چې درسول الله ﷺ جسم مبارك نه وو ورك کړې شوې بلکه د رسول الله ﷺ روح مبارك د شپې بوتللې شو).

او د دویم روایت ترجمه به دا وی چې:ما د رسول الله ﷺ جسم مبارك ورك نه وو موندلې.یعنې جسم مبارك ئې موجود وو.مترجم)).

**د ذکر کړې شوی دلیل جواب:** د حضرت عائشې رضی الله عنها په ذکر کړې شوی اثر سره دلیل نیول صحیح نهٔ دی،قاضی عیاض رحمه الله فرمائي چې د حضرت عائشې رضی الله عنها اثر ثابت نه دې(٤)،ځکه چې ددې روایت په سند کښې انقطاع ده،راوي مجهول دې.د ابن اسحاق رحمه الله الفاظ یو ځلې بیا د نظر وراندې تیر کړې(حدثني بعض آل أبي بکر)بعضي آل ابي بکر څوك دی؟هیڅ پته نشته.

علامه صالحي شامي رحمه الله په خپل کتاب(سبل الهدی والرشاد)کښې لیکلي دی چې کوم روایت د حضرت عائشې رضی الله عنها ارخ ته منسوب دې نو د هغې سند داسې نه دې چې په هغې دې دلیل نیول صحیح شی،بلکه ددې په سند کښې خو انقطاع ده،ابو خطاب دحیه په(التنویر في مولد السراج المنیر صلی الله علیه واله وسلم)کښې لیکلي دی چې دا حدیث موضوعی دې او په(معراج صغیر)کښې لیکلي دی چې امام الشافعیه قاضی ابو عباس بن سریج اوفرمائیل چې دا حدیث ثابت نهٔ دې.دا د صحیح احادیثو د رد دپاره راوړلې شوې دې(٥).

**دویم جواب:** د ذکر کړې شوی دلیل دویم جواب دادې چې که ذکر کړې شوې روایت صحیح هم وی نو بیا هم حضرت عائشه رضی الله عنها ځه د خپلې مشاهدې په بنیاد خو دا خبر نهٔ ورکوی،بلکه د چا نه د اوریدلې شوې خبرې خبر ورکوی،ځکه چې دغه وخته پورې عائشه رضی الله عنها د رسول

---

(١):تفسیر قرطبي:١٠\١٣٦.

(٢):سیرة ابن هشام،ذکر الاسراء والمعراج:٢\٤٠١،شرح المواهب:٧٨،تفسیر ابن کثیر:٤\١١٤،شرح ابن بطال، کتاب التوحید:١٠\٥٢١.

(٣):الشفاء بتعریف حقوق المصطفی صلی الله علیه وسلم،فصل فی تفضیله بما تضمنه کرامة الاسراء:١\١٢١

(٤):الشفاء بتعریف حقوق المصطفی صلی الله علیه وسلم،فصل فی تفضیله بما تضمنه کرامة الاسراء:١\١٢٥

(٥):سبل الهدی والرشاد،فصل فی کیفیة الاسراء:٣\٧٠

الله رضي الله عنها بي بي نه وه گرځيدلې،او نه لا د دوی عمر دغه وخت کښې دومره وو چې په څه خبره دې په صحيح توګه باندې پوهه شی یا دې ځان سره محفوظه اوساتلې شی،ددې وجې نه چې دا خبره ثابته شی چې دوی د اسراء په وخت کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په نکاح کښې نه وو نو دا د دوی په نه مشاهده کولو باندې او خپل ځان نه علاوه د بل نه د اوریدلې شوې خبرې خبر ورکولو باندې دلالت کوی،لهذا د دوی خبرې ته د نورو د خبرو په مقابله کښې ترجیح نه شی ورکولې،په خاص توګه د هغه حضراتو د روایت په مقابله کښې چې د هغوی روایت صراحتاً د دوی د روایت خلاف دې.لکه د ام هانی رضی الله عنها،حضرت مالك بن صعصعة،حضرت ابوذر او د حضرت ابوهریرة وغیره روایت (١).

ولې علامه خفاجی رحمه الله په دې جواب باندې د عدم اطمینان اظهار کړې دې او فرمائیلې ئې دی چې ډیره غوره به داسې چې دا اووئیلې شی (چې د دوی نه د غیر روایت له به ترجیح ورکولې شی د دوی په خبر باندې ځکه چې دوی رضی الله عنها د مجهول نه روایت کوی،بلکه ددې وجې نه هم چې ددې روایت ثبوت د دوی رضی الله عنها نه هډو شته دې نه)(٢).

**دریم جواب:** هغه روایت دې چې په هغې کښې د متکلم صیغه استعمال شوې ده(مَا فَقَدْتُ جَسَدَ رَسُوْلِ اللهِ صلی الله علیه واله وسلم)ددې روایت مطابق هم د حضرت عائشې رضی الله عنها ارخ ته منسوب کړې شوې دا روایت کمزورې کیږی،ځکه چې د عائشې رضی الله عنها واده د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په مدینه منوره کښې شوې دې نه چې په مکه مکرمه کښې اود(اسراء واقعه)د مشهور او د راجح قول مطابق د هجرت نه وړاندې په مکه مکرمه کښې راپیښه شوې ده(٣).

په دغه وخت کښې خو عائشه رضی الله عنها ډیره ماشومه وه یا د بعضې حضراتو مطابق لا پیدا هم نه وه،لهذا دا ټول حال احوال ددې روایت په عدم صحت باندې دلالت کوی(٤).

بلکه په دې حقله د حضرت عائشې رضی الله عنها صحیح روایت دادې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته معراج د جسم مبارك سره شوې دې.

لکه چې دا خبره د حضرت عائشې رضی الله عنها ددې خبره نه څرګندیږی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په لیلة الاسراء کښې خپل پروردګار په خپلو سترګو مبارکو نه وو لیدلې.

د حضرت عائشې رضی الله عنها دا ذکر کړې شوې خبره په دې باندې دلالت کوی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د جسم مبارك سره بوتلې شوې وو،خو ولې رسول الله صلی الله علیه وسلم په ویخو سترګو سره الله تعالی ته نه دی کتلې.

که د عائشې رضی الله عنها په نیز باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د خوب په حالت کښې اسراء کولې شوه نو بیا به دوی رضی الله عنها ددې خبرې نه انکار نه کولو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل رب لیدلې دې ځکه چې د خوب په حالت کښې خو د الله رب العزت دیدار ممکن دې،محال نه دې او ددې نه د انکار کولو هډو څه وجه نشته دې(٥).

(١):الشفاء بتعریف حقوق المصطفی صلی الله علیه وسلم:١٣٤/١،التعلیق الصبیح،باب فی المعراج:١٣٧/٧.

(٢):نسیم الریاض:١٢٠/٣

(٣):واقعه د معراج کله شوې ده،تفصیلي بحث وړاندې راروان دې.

(٤):سبل الهدی والرشاد:٧٠/٣.

(٥):الشفاء بتعریف حقوق المصطفی صلی الله علیه واله وسلم:١٢٥/١،التعلیق الصبیح:١٣٧/٧.

**څلورم جواب**:علامه تفتازاني رحمه الله يو جواب بل هم وركړي دې چې د عائشې ﷺ د قول معنى(مَافُقِدَ جَسَدُهُ عن الروح بل كان معروحه،وكان المعراج للجسد والروح جميعاً)ده.
مطلب ئې دادې چې د رسول الله ﷺ جسم مبارك د دوى د روح مبارك نه نهٔ دې بيل شوې بلكه يو ځائې وو ورسره او معراج جسد مع الروح ته شوې دې. علامه زرقاني رحمه الله فرمائي چې دا جواب په هغه وخت كښې د منلو دې چې كله دعائشې ﷺ روايت صحيح اومنلې شي،او ددې توجيه ضرورت په هغه وخت كښې راپيښيږى كله چې درواياتو اود آثار ترمينځه تطبيق اوكړې شي(١).
**پنځم باب**:په دې ځائې كښې يو بل قول د علامه ابن قيم رحمه الله هم دې،د هغوى رائې داده چې حضرت عائشې رضى الله معراج منامى نهٔ دې بيان كړې بلكه هغوى د روحاني معراج بيان كړې دې،حضرت عائشه ﷺ دا وئيل غواړي چې د رسول الله ﷺ روح مبارك ته معراج كړې شوې دې او جسم مبارك ئې معراج له نهٔ دې بوتللې شوې.
د علامه ابن قيم رحمه الله قول لاندې په تفصيل سره بيانولې شي:
(ابن اسحاق رحمه الله د حضرت عائشې صديقې او د حضرت معاويه ﷺ نه دا روايت نقل كړې دې چې:دوى دواړو وئيلې دى چې په معراج كښې د رسول الله ﷺ روح مبارك بوتللې شوې وو او د رسول الله ﷺ جسم مبارك د خپل ځائې نه غائب نه وو؛يعنى د رسول الله ﷺ جسم اطهر و مبارك په دنيا كښې په خپل ځائې باندې موجود وو،او حضرت حسن بصرى رحمه الله هم ددې په شان روايت كړې دې خو ولې مناسب دادى چې د معراج په خوب كښې د واقع كيدلو د قول او د جسم نه بغير د صرف روح مبارك معراج ته د بوتللو په حقله چې كوم قول دې په دې كښې فرق دې.
حضرت عائشى رضى الله او حضرت امير معاويه ﷺ دا نهٔ دى وئيلې چې رسول الله ﷺ ته معراج په خوب كښې شوې دې،بلكه هغوى خو داسې وئيلې دى چې په معراج كښې د رسول الله ﷺ روح مبارك بوتللې شو او جسم مبارك ئې غائب نه وو.
په دې دواړو كښې لوئې فرق دې اودهٔ سړې چې كوم څه وينى،كله په محسوسو صورتونو كښې(كوم چې دهٔ ته معلوم وى)،د هغوى په مثل دده(اودهٔ سړى) مخې ته راوړې شى،لهذا هغهٔ وينى چې ګويا هغهٔ آسمان ته خيژولې شوې دې،يا مكې مكرمې ته بوتللې شوې دې اودزمكې په مختلفو اړخونو كښې هغه له چكر وركړې شوې دې،حال دا چې د هغهٔ روح نهٔ خو ختلې وى،نهٔ تلې وى او نهٔ ئې چكر وهلې وى،صرف دومره قدرې اوشوچې د خوب په حالت كښې فرښتو د هغهٔ مخې ته د يو معلوم څيز تمثيل راوړلو.
اوكوم خلق چې داوائي چې رسول الله ﷺ آسمان ته اوخيژولې شو،په دوى كښې بيا دوه ډلې دى،يو ډله په كښې دا وائي چې رسول الله ﷺ معراج ته بدن او روح دواړو سره بوتلې شوې دې،او دويمه ډله په كښې دا وائي چې صرف روح مبارك ته ئې معراج شوې دې او بدن مبارك ئې(ددې عالم دنيا نه)غائب شوې نهٔ دې،ددې دويمې فرقې دا مقصد نهٔ وى چې معراج قصه راپيښيدل په خوب كښې وو،بلكه مقصد ئې دا دې چې په خپله بالذات روح مبارك ته معراج شوې دې او په حقيقت كښې هم روح مبارك پورته بوتللې شوې دې،او روح داسې كارونه اوكړل لكه څنګه چې روح د جسم نه د بيليدلو نه پس كوى،او په دې كښې د روح هم هغه حالت وو كوم چې جسم نه د بيليدلو نه پس

(١):شرح المواهب للزرقاني:٨/٨الشفاء بتعريف حقوق المصطفى صلى الله عليه وسلم:١/١٢٥.

وى او څنګه حالت ئې چې د يو يو آسمان د ختو په وخت وى تر دې چې اووم آسمان ته په رسيدلو باندې دا اودريږى، او د الله ﷻ په وړاندې لاړ شي اودريږى، بيا الله ﷻ چې څنګه اوغواړى ددې په حقله هم هغه شان حکم ورکړى، بيا هغه روح زمکې ته واپس راشى، لهذا رسول الله ﷺ ته چې د معراج په شپه څه حاصل شو نو هغه ددې نه هم زيات کامل وو کوم چې يو عام روح ته د خپل قالب (جسم) نه د جدا کيدلو نه پس حاصليږى. او دا خبره ښکاره ده چې دا وجه د هغې نه لويه ده کومه چې يو اودهٔ سړى ته په خوب کښې په نظر راځى.

خو ولې څنګه چې دا خبره معلومه ده چې رسول الله ﷺ د خرق عادات په مقام کښې وو، تر دې چې د رسول الله ﷺ سينه مبارکه اوشلولې شوه او رسول الله ﷺ ژوندې وو، او دوى ته څه درد هم اونهٔ رسيدلو، هم دغه صرف روح مبارك بذاته پورته اوخيژولې شو. بې ددې نه چې په رسول الله ﷺ باندې دې مرګ راغلې وى، د رسول الله ﷺ نه بغير د بل چا روح ته د مرګ او د بدن نه د جداوالي نه علاوه دا عروج نهٔ دې نصيب شوى)[1].

**شپږم جواب**: د منکرينو د ذکر کړې شوى دليل جواب حضرت مولانا اشرف على تهانوى رحمه الله هم ورکړې دې فرمائيلي ئې دى: او بعضې حضرات دحضرت عائشې رضي الله عنها او دحضرت معاويه رضي الله عنه د قول د وجې نه په شبه کښې پريوتل، نو خبره داده چې عائشه رضي الله عنها خو تر دغه وخت پورې د رسول الله ﷺ په نکاح کښې هم نهٔ وه راغلې، او معاويه رضي الله عنه دغه وخته پورې لا اسلام هم نهٔ وو راوړې . خدائې بنهٔ عالم دې په دې چې دوى د چا نه اوريدلې دى او دا قول ئې کړې دې او که نهٔ اجتهاداً ئې وئيلې دى او يا ئې چرته د يوې بلې واقعې په نسبت سره دا اسې وئيلې دى (اذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال).

ددې نه علاوه د عائشې رضي الله عنها د قول (مَا فُقِدَ جَسَدُ مُحمدٍ صلى الله عليه واله وسلم) يو توجيه دا هم کيدې شى. چې د (فقدان) معنى د لټولو (کتلو) ده، کما فى سورة يوسف من تنوير المقباس (قالو واقبلوا عليهم ماذا يفقدون) تطلبون (قالوا نفقد) نطلب (صواع الملك) مطلب دا چې د معراج نه دا واپسى په دومره تندئ سره شوې ده چې چا ته د رسول الله ﷺ د جسم مبارك د غائبيدو هډو پته نهٔ ده لګيدلې، چې ګنى دوى پسې دې تکل اوکړې شي چې يره دوى چرته تشريف يوړو، او اګرچې ددې مضمون نه په (مَا فُقِدَ مُحَمَّدٌ) سره هم تعبير کيدې شو، خو ولې د جسد اړخ ته په نسبت کولو کښې دې اړخ ته اشاره ده تعلق معراج بالجسد اړخ ته چې ګنى د رسول الله ﷺ غائبيدل داسې وو چې کهٔ چا د هغوى تکل کولو نو د تکل متعلق به ئې هم جسد وو، لهذا په دې کښې اثبات د معراج بالجسد نور هم زيات مضبوط شو دا نه چې دې سره ترې نه نفى راغله، او که په (مَا فُقِدَ جَسَدُ مُحمدٍ صلى الله عليه واله وسلم) کښې د فقدان مشهوره معنى واخستې شى، نو دا بيا هم د جسمانى معراج منافى نهٔ دې، څکه چې د فقدان معنى صرف غائبيدل او ورکيدل نهٔ دى، بلکه ددې معنى ده (اورکول) چې ددې د پاره د يو (فاقد)، اورکونکې او د بل (مفقود) ورك شوې کيدل ضرورى دى، لهذا مطلب ئې دا شو چې رسول الله ﷺ په دغه شپه هيڅ چا ورك بيانهٔ موندو، او دا خبره صحيح ده څکه چې رسول الله ﷺ چې کله تشريف يوړو نو هغه وخت د کور ټول خلق اودهٔ وو او د کور د خلقو د بيدارئ نه وړاندې واپسى اوشوه، غرض د خبرې دا چې ددې خبر هډو څه ضرورت نهٔ دې راغلې چې چا رسول الله ﷺ په کور کښې نهٔ وى ليدلې.([2])

---

([1]): زادالمعاد، تحقيق القول فى أن الاسراء كان بجسده و روحه: ١٣/٤٠، ٤١

([2]): بيان القرآن، سورة الاسراء: ٣٦/١١٢. اشرف الجواب، د بارلسم اعتراض، ص: ٦٥

عقيده د سلفو صالحينو رحمهم الله په آخره كښې د دې په حقله مختلف قولونه بيان كړې شو، اوس د ابن اسحاق رحمه الله په الفاظو كښې ليكلې شي: (وكان في مسراه، وما ذكر عنه بلاء وتمحيص، وأمر من أمر الله (عزوجل) في قدرته و سلطانه، فيه عبرة لأولي الألباب، وهدى و رحمة و ثبات لمن آمن و صدق وكان من أمر الله سبحانه وتعالى على يقين، فأسري به (سبحانه وتعالى) كيف شاء، ليريه من آياته ما أراد، حتى عاين ما عاين من أمره وسلطانه العظيم وقدرته التي يصنع بها ما يريد). (١)

د دې عبارت مفهوم دادې: د رسول الله ﷺ د شپې دا سفر او ددې په حقله چې څۀ بيان كړې شوي دي، په دې كښې ازميښت دې او د كافر او مؤمن دپاره په كښې تميز دې، او د الله ﷻ د قدرت او د سلطنت نه د هغۀ دپاره يو شان دې، او په دې واقعه كښې د عقل د خاوندانو دپاره يو عبرت دې. او كوم سړي چې په الله ايمان راوړو او په هغۀ ئې يقين اولرلو، هغۀ دپاره په دې واقعه كښې هدايت، رحمت او ثابت قدمي ده، نو الله ﷻ خپل بنده د شپې په وخت كښې بوتللو څنګه چې د هغۀ خوښه وه، دې دپاره چې خپل دې بنده ته د خپلو نښو نه چې كومې غواړي ورته ئې اوښائي، تر دې چې رسول الله ﷺ د الله ﷻ د شان او د هغۀ د عظيم قدرت نه هغه څۀ اوليدل چې كوم څه ورته الله ﷻ ښودل غوښتل، او هغه قدرت ئې اوليدلو د كومې په ذريعې سره چې هغۀ څه غواړي كوي ئې.)

**واقعه د معراج كله راپيښه شوه:** دسيرت د علماؤ په دې كښې اختلاف دې چې رسول الله ﷺ معراج ته كله بوتلې شوې وو؟ په دې حقله په عامه توګه لس قولونه ترلاسه كيږي، كوم چې لاندې ليكلې شي:

په دې كښې د ټولو نه وړومبې قول دادې چې رسول الله ﷺ ته د نبوت د وركولو نه وړاندې دوې معراج له بوتللې شو، خو ولې دا قول شاذ دې، ما سوا ددې نه چې مونږ دا قول په دې باندې حمل كړو چې رسول الله ﷺ ته به دا د نبوت نه وړاندې معراج په خوب كښې شوې وي.

د اكثرو علماؤ د قول مطابق معراج د نبوت نه پس شوې دې.

د نبوت نه پس د معراج په واقع كيدلو كښې مختلف قولونه دي:

د ټولو نه وړومبې قول د هجرت نه د يو كال وړاندې د كيدلو دې، ددې قائل ابن سعد دې.

ابن حزم په دې قول باندې اجماع رانقل كړې ده، خو ولې صحيح قول دادې چې د معراج د واقع كيدلو په حقله يو قول ته (اجماعي قول) وئيل مبالغه ده، د دوی دا قول رد كړې شوې دې، ځكه چې په دې كښې خو اختلاف دې د لسو نه زيات قولونه دي په دې كښې، د دې وجې نه د يو قول په باره كښې د اجماعي قول دعوی كول ممكن نۀ دي.

د ابن جوزي قول دې چې معراج د هجرت نه اتۀ مياشتې وړاندې راپيښ شوې دې.

د ابوالربيع بن سالم رائې د هجرت نه د شپږو مياشتو د وړاندې كيدلو ده.

د ابراهيم الحربي وينا ده چې معراج د هجرت نه يوولس مياشتې وړاندې شوې دې، ابن منير د (السيرة لابن عبدالبر) په شرح كښې دې قول له ترجيح وركړې ده.

ابن عبدالبر د هجرت نه د يو كال او دوو مياشتو وړاندې كيدلو قول هم رانقل كړې دې.

ابن فارس د هجرت نه د يو كال او درې مياشتو وړاندې كيدلو قول رانقل كړې دې.

سدي د هجرت نه د يو كال او پنځه مياشتو وړاندې كيدلو قول رانقل كړې دې.

---

(١). سيرة ابن هشام، باب ذكر الاسراء ٢٩٦/١، ٣٩٧

ابن سعيد د هجرت نه د يو كال او د شپږو مياشتو د وړاندې كيدلوپه حقله قول رانقل كړې دې.
ابن الاثير د هجرت نه د درې كالو وړاندې د راپيښيدلو په حقله قول اختيار كړې دې
زهرى نقل كړې دى چې واقعه د معراج د هجرت نه پنځه كاله وړاندې راپيښه شوې ده،قاضى عياض رحمه الله هم دا قول اختيار كړې دې.
امام قرطبى رحمه الله او امام نووى رحمه الله په شرح د مسلم شريف كښې هم دې قول له ترجيح وركړې ده،په دې مقام باندې د(امام زهرى)د قول په نقل كولوكښې د علامه قسطلاني رحمه الله نه سهو شوې ده.
علامه قسطلانى رحمه الله په(المواهب اللدنيه)كښې ليكلي دى.(قال الزهري:وكان ذلك بعد المبعث بخمس سنين)
چې زهرى فرمائيلي دى:معراج د نبوت نه پنځ كاله پس شوې دې،په دې باندې علامه زرقانى رحمه الله په شرح المواهب كښې ليكى چې صحيح خبره داده چې د زهرى قول د هجرت نه د پنځه كالو د وړاندې په حقله دې،دا نه چې د نبوت نه د پنځوكالو د پس قول ئې دې (١)
ددې حضراتو دليل دادې چې د مونځ د فرض كيدلو نه پس حضرت خديجه رضي الله عنها رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مونځ كړې دې،دويمه خبره :د مونځ فرضيت په ليلة الاسراء كښې شوې دې،دريمه خبره:حضرت خديجه رضي الله عنها د هجرت نه درې يا پنځه كاله وړاندې وفات شوې ده.ددې مقدماتو نه دا نتيجه راووځى چې معراج د هجرت نه پنځه كاله وړاندې شوې دې.
ددې دا جواب وركړې شوې دې چې د صحيح قول مطابق د حضرت خديجه رضي الله عنها وفات د نبوت نه لس كاله پس په رمضان المبارك كښې واقع شوې دې،او دا د مونځ د فرضيت نه وړاندې شوې دې،ددې درې واړو حضراتو قول چې حضرت خديجې رضي الله عنها پنځۀ واړه مونځونه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ادا كړل غلطه ده.
ددې خبرې مرسته د حضرت عائشې رضي الله عنها د حديث مبارك نه كيږى،چې حضرت خديجه رضي الله عنها د پنځو مونځونو د فرضيت نه وړاندې وفات شوه.او ددې نه خبره هم لازماً راووځى چې دا د حضرت خديجې رضي الله عنها وفات د ليلة الاسراء نه وړاندې شوې دې نه چې وروستو.او هم دا قول معتمد دې.
بله دا چې قاضى عياض رحمه الله او د هغوى د وخت نور حضرات هم د حضرت خديجې رضي الله عنها د وفات په حقله په تردد او شك كښې دى،لكه څنګه چې د هغوى د قول(پنځۀ كاله يا درې كال قبل الهجرت)نه ظاهريږى.د دوى دې تردد لره د حضرت عائشې رضي الله عنها دا قول ختموى چې حضرت خديجه رضي الله عنها د هجرت نه درې كاله وړاندې وفات شوه(٢).
حافظ ابن حجر رحمه الله دې حضراتو ته په جواب كښې ليكلي دى چې:
(د معراج په حقله چې څومره قولونه هم دى په هغې كښې دلته يو څو خبرې د غور او فكر قابلې دى:
وړومبۍ:(عسكرى)حكايت كړې دې چې حضرت خديجه رضي الله عنها د هجرت نه اووۀ كاله وړاندې وفات شوې ده.او د هغوى د وفات په حقله دويم قول د هجرت نه د څلورو كالو د وړاندې كيدلو دې،او ددې نه علاوه د(ابن اعرابى)نه روايت دې چې حضرت خديجه رضي الله عنها د هجرت په كال وفات شوې ده.

(١):شرح المواهب للزرقاني،وقت الاسراء:٦٩-٧٠/١٢
(٢):شرح المواهب للزرقاني،وقت الاسراء:٦٩/١٢، ٧٠

**دویمه خبره:** د مونځ د فرضیت په حقله اختلاف دې چې دا په کوم کال فرض شوې دې؟لهذا په دې حقله ونیلې شوې دی چې رسول الله ﷺ ته کله نبوت ورکړې شو،نو هم په دغه وخت په دوی باندې دوه مونځونه فرض کړې شوې وو،او په لیلة الاسراء کښې خو د پنځو مونځونو فرضیت شوې دې.

**دریمه خبره:** د حضرت عائشې رضی الله عنها قول چې(حضرت خدیجه رضی الله عنها د مونځونو د فرض کیدلو نه وړاندې وفات شوه)نه به مراد د پنځو مونځونو نه وړاندې وفات کیدل اخستې شی.لهذا ددې نه به دا خبره لازماً راوځی چې حضرت خدیجه رضی الله عنها د اسراء نه وړاندې وفات شوې ده.[1]

په دې قولونو کښې د ټولو نه زیات مشهور قول کومې ته چې ترجیح ورکړې شوې ده هغه د هجرت نه د یو کال د وړاندې والا قول دې.[2]

علامه زرقانی رحمه الله لیکلې دی:چې راجح قول دادې چې د حضرت خدیجه رضی الله عنها د وفات نه پس او د بیعت عقبه نه وړاندې معراج واقع شوې ده.لکه څنګه چې د هجرت نه د پنځه کاله او د درې کاله د وړاندې واقع کیدلو د اقوالو نه علاوه د نورو اقوالو نه ظاهره ده،غرض د خبرې دا چې کثرت د علماؤ هم په دې اړخ دې،بله دا چې دا خبره هم د روایاتو نه ثابته ده چې د حضرت خدیجې رضی الله عنها وفات د پنځو مونځونو د فرض کیدلو نه وړاندې شوې وو،او دا خبره هم منلې شوې ده چې حضرت خدیجه رضی الله عنها د رسول الله ﷺ سره په شعب ابی طالب کښې وه،د شعب ابی طالب د راتلو نه پس د هغوی انتقال شوې دې،او دا خبره وړاندې معلومه شوې ده چې رسول الله ﷺ او د رسول الله ﷺ ملګری په لسم(١٠)هجریٔ کښې د شعب ابی طالب نه بهر ته راوتې دی.لهذا ددې ټولو مقدماتو نه به نتیجه هم دا راوځی،چې رسول الله ﷺ معراج له د لسم(١٠) نبوی نه پس چرته په یوولسم نبوی کښې په یو میاشت کښې تلې وو.[3]

**واقعه د معراج په کومه میاشت کښې واقع شوې وه:** لکه څنګه چې د معراج د واقعې په کال کښې اختلاف دې هم دغه شان ددې په میاشت کښې هم اختلاف دې،په دې حقله په بعضو ځایونو کښې د پنځو میاشتو ذکر په مختلفو قولونو کښې ترلاسه کیږی،اوبعضوځایونو کښې دشپږو ذکر دې،د اکثرو علماؤ قول د ربیع الاول د میاشتې دې،لکه څنګه چې په عمدة القاری کښې ذکر کړې شوې دی.[4]

ابراهیم بن اسحاق الحربی د ربیع الثانی په میاشت کښې د معراج واقع کیدل لیکلې دی[5].

عبد الغنی بن سرور المقدسی رحمه الله د رجب میاشتې له ترجیح ورکړې ده،او هم دا قول مشهور هم دې،او امام نووی رحمه الله په(الروضة)کښې هم دا قوی قول ګرځولې دې[6].

---

([1]):فتح الباری،باب المعراج:٢٥٤\٧.سبل الهدی والرشاد.الباب الرابع فی ای زمان ومکان وقع الاسراء.الفصل الثانی فی زمانه٣\٦٤،٦٥ عمدة القاری:١٧\٢٧٠.نسیم الریاض:٣\٧٠.

([2]):فتح الباری:٧\٢٥٤، عمدة القاری:١٧\٢٧، فتح الباری لابن رجب:٢\٤، سبل الهدی والرشاد:٣\٦٥، زاد المعاد:٣\٤٢، مرقاة المفاتیح:١٠\٥٤٨، التعلیق الصبیح:٧\١٣٨.

([3]):شرح المواهب للزرقانی:٢\٧٠

([4]):عمدة القاری:١٧\٢٧،شرح المواهب للزرقانی:٢\٦٩،

([5]):شرح المواهب:٢\٧١

([6]):عمدة القاری:١٧\٢٦،شرح المواهب للزرقانی:٢\٧٠

سدي رحمه الله په شوال کښې د معراج واقع کيدل ليکلي دي.[1]
او ابن الفارس په ذوالحجه کښې د معراج واقع کيدل ليکلي دي.[2]
ددې اقوالو نه امام نووي رحمه الله په(الروضة)کښې د رجب مياشتې له.او په خپله فتاوی کښې ۲۷ ربيع الثاني له او په شرح د مسلم کښې ئې د ربيع الاول مياشتې له ترجيح ورکړې ده.[3]
علامه زرقاني رحمه الله د دې اقوالو د کتلو نه پس په طور د قاعدې دا ليکلي دي.
(چې د سلفو صالحينو ترمينځه کله هم په يو مسئله کښې اختلاف واقع شوې دې او په دې کښې بيا يو اړخ ته د ترجيح ورکولو دپاره څه دليل هم نه وي،نو په دوو يا د دوو نه په زياتو قولونو باندې به دعمل دپاره کتلې شی چې په امت کښې په دې قولونو کښې د کوم قول وجود بيا موندې شو،لهذا دغه قول دې خپل کړې شی،هم دې قول ته به راجح ونيلې شی.او د معراج په باب کښې د انسانيت عمل د ۲۷ رجب په قبلولو باندې دې،لهذا هم دا قول به قوی شمارلې کيږی.[4]
**واقعه د معراج په کومه شپه راپيښه شوې ده:** په دې باب کښې علامه زرقاني رحمه الله ليکلي دی،چې په دې حقله درې قولونه مشهور دی چې په کومه شپه رسول الله ﷺ معراج له بوتللې شوې وو هغه د جمعې شپه وه او ياد خالی شپه وه،او يا د ګل شپه وه،خو ولې په حتمی توګه ددې تاکل آسان نه دی،او ددې وجه د معراج په واقع کښې د اختلاف واقع کيدل دی.[5]
**دمعراج په وخت کښې رسول الله ﷺ کوم ځائې وو؟** حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلي دی چې هر کله رسول الله ﷺ معراج له بوتللې شونو هغه وخت دوی چرته وو؟په دې حقله په رواياتو کښې د مختلفو ځايونو ذکر ترلاسه کيږی،مثلاً:د زهري په روايت کښې دی چې حضرت انس رضي الله عنه د حضرت ابو ذر رضي الله عنه نه روايت کوی(فُرِجَ سَقْفُ بَيْتِيْ وَأَنَا بِمَكَّةَ)د واقدي په روايت کښې دی(أَنَّهُ أُسْرِيَ مِنْ شِعْبِ أَبِيْ طَالِبٍ) طبراني د ام هاني رضي الله عنها روايت نقل کړې دې په کومې کښې چې دی.(أَنَّهُ بَاتَ فِيْ بَيْتِهَا)خلاصه د خبرې دا چې د وړومبی روايت مطابق رسول الله ﷺ د معراج په وخت کښې په خپل کور کښې موجود وو.د دويم روايت مطابق د معراج د واقع کيدلو په وخت کښې رسول الله ﷺ په شعب ابی طالب کښې وو،او د دريم روايت مطابق د معراج د واقع کيدلو په وخت کښې رسول الله ﷺ د ام هانی رضي الله عنها په کور کښې وو.
په دې درې واړو روايتونو کښې تطبيق داسې بيان کړې شوې دې چې کوم وخت رسول الله ﷺ معراج له بوتللې شو،په هغه وخت کښې دوی د ام هانی رضي الله عنها په کور کښې موجود وو،کوم چې په شعب ابی طالب کښې واقع وو،او دې ته رسول الله ﷺ خپل کور څکه اووئيل چې رسول الله ﷺ په دغه کور کښې وو.[6]

---

([1]):عمدة القاری:۲۶\۱۷
([2]):شرح المواهب:۷۰\۱۲،عمدة القاری:۲۶\۱۷
([3]):شرح المواهب:۶۹\۱۲...۷۱
([4]):شرح المواهب للزرقانی:۷۱\۱۲
([5]):شرح المواهب للزرقانی۷۱\۱۲، سبل الهدی والرشاد:۶۶\۳
([6]):فتح الباری،باب المعراج:۲۵۶\۷،عمدة القاری:۳۰\۱۷ نسيم الرياض فی شرح شفاء القاضی عياض:۱۱۰\۳

ددې خبرې نور زيات وضاحت كولو سره علامه زرقانى رحمه الله ليكلي دي چې رسول الله ﷺ د ام هانى رضي الله عنها كور ته خپل كور د معمولى شان ملابست د وجې نه اووئيلو، ځكه چې د كور نسبت هغه چا ته كولې شى چې څوك په دې كښې اوسيږى.(١)

ددې نه علاوه په روايتونو كښې د معراج د شروع كيدلو د وخت په حقله د(بينا أنا في المسجد الحرام) الفاظ هم موجود دى، چې رسول الله ﷺ په مسجد حرام كښې وو كله چې دوى معراج له بوتللې شو، نو ددې جواب دا وركړې شوې دې چې په حديث كښې كوم راغلې دى چې(بينا أنا في المسجد الحرام) او د رسول الله ﷺ قول(في بيتي)او د ام هانى رضي الله عنها د قول(بات في بيتها)تر مينځه هيڅ منافات نشته دې، ددې ټولو نه مراد هم د ام هانى رضي الله عنها كور دې،ددې مرسته د حضرت حسن بصرى رحمه الله روايت كړې شوې حديث كوى په كوم كښې چې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چې دوى(رسول الله ﷺ)له يو دوه فرښتې راغلې،او دوى ئې د دوى د كور نه مسجد حرام ته بوتلل.(٢)

**ليلة الاسراء افضله ده او كه ليلة القدر؟** په ليلة الاسراء كښې الله رب العزت رسول الله ﷺ له عزت وركړو او ځان ته ئې راوغوښتو.او په ليلة القدر كښې د عملونو اجر ډير زيات دې،تر دې چې دې شپې ته د زرو مياشتو نه غوره وئيلې شوې ده،ددې وجې ؏ دلته يو سوال پيدا كيږى چې په دې دواړو شپو كښې كومه يوه شپه افضله ده؟نو ددې په جواب كښې شيخ ابو امامة بن النقاش رحمه الله فرمائى:

(د رسول الله ﷺ په حق كښې ليلة الاسراء د ليلة القدر نه غوره ده،ځكه چې په دې شپه كښې د رسول الله ﷺ بې حده عزت او اكرام كړې شوې دى،ډير عجائبات رسول الله ﷺ ته اوښودلې شو،او د ټولو نه لوئې دا چې د راجح قول مطابق رسول الله ﷺ ته په كښې د الله جل شانه د زيارت په شان عظيم دولت ورنصيب شو.

او د امت په حق كښې ليلة القدر افضله ده،ځكه چې په دې كښې د امت د پاره اعمال كول د تيرو اتياؤ كالو د اعمالو نه افضل دى،د امت په حق كښې د ليلة الأسراء د افضل كيدلو څه دليل په احاديثو كښې نهٔ ترلاسه كيږى،نهٔ خو په صحيح احاديثو كښې او نهٔ په ضعيف احاديثو كښې،هم ددې وجې نه رسول الله ﷺ د صحابهٔ كرامو په وړاندې ددې شپې تاكنه نهٔ ده كړې.او نهٔ خو په صحابهٔ كرامو ﷺ كښې چا ددې شپې په حقله څه تاكلې شوې خبره كړې ده،په دې حقله چې چا هم څهٔ وئيلې دى دا هغهٔ د خپل ارخ د اندازې په بنياد وئيلې دى،هغهٔ سره په دې بآندې څه مستند سند نشته دې،بس صرف په مختلفو قولونو كښې چې د كومې ارخ ته د هغهٔ ميلان غالب شو هغهٔ ئې رانقل كړو.

لهذا كهٔ دې شپه سره د امت دپاره څه نفع هم ترلې وه نو رسول الله ﷺ به هغه نفع ضرور بيان كړې وه،ځكه چې رسول الله ﷺ د امت دپاره په دې حقله ډير حرص لرونكى وو.(٣)

امام بلقينى رحمه الله د رسول الله ﷺ په شان كښې قصيده ليكلې ده،د كومې نه په اخذ كولو سره چې علامه شامى رحمه الله ليكى،چې ليلة الاسراء د ليلة القدر نه افضله ده،فرمائى چې كيدې شى حكمت

(١):شرح المواهب للزرقانى:٤١١/٧

(٢):سبل الهدى والرشاد:٦٤/٣

(٣):شرح المواهب للزرقانى،المقصد الخامس:١٨/٨

په دې كښې وى چې په دې شپه كښې رؤيت د بارى تعالى رسول الله ﷺ ته نصيب شوې دې. كوم چې د هر څه نه غوره دې، او صرف د الله ﷻ له اړخه په مؤمنانو باندې احسان او فضل دې (١).

د امام ابن تيميه رحمه الله نه پوښتنه اوكړې شوه چې په دې دواړو شپو كښې كومه يوه شپه افضله ده، نو هغوى په جواب كښې اوفرمائيل: د رسول الله ﷺ په حق كښې ليلة الاسراء افضله ده، او د امت په حق كښې ليلة القدر افضله ده، ځكه چې په دې شپه كښې رسول الله ﷺ په كومو انعاماتو سره خاص كړې شو هغه انعامات د هغه انعاماتو نه ډير زيات دى كوم چې ورته په ليلة القدر كښې وركړې شوې دى، او اهت ته چې كومه ډالئ په شب قدر كښې ورنصيب شوې ده هغه ډالئ د هغه څه نه كامله ده كومه چې دوى ته شب معراج كښې ورنصيب شوې ده، اگرچې د امتيانو دپاره په شب معراج كښې هم ډير عزت دې خو ولې اصل فضل، عزت او لويه مرتبه په شب معراج كښې د هغې ذات دپاره ده په چا چې معراج اوكړې شو، صلى الله عليه وعلى آله وسلم (٢).

علامه ابن جوزى رحمه الله ددې بحث په ذكر كولو سره د علامه ابن تيميه رحمه الله نه يو بل جواب رانقل كړې دې د هغه جواب خلاصه دلته ليكلې شى: فرمائى چې د شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله نه پوښتنه اوكړې شوه، چې يو سړې داسې وائى چې ليلة الاسراء د ليلة القدر نه افضله ده او دويم سړې ددې په عكس وينا كوى په دې دواړو كښې په حق باندې كوم يو دې؟

ددې په جواب كښې علامه ابن تيميه رحمه الله اوفرمائيل چې: ليلة الاسراء ته د افضل وئيونكى رائې كه دا وى چې دا شپه د رسول الله ﷺ د امت په حق كښې په دې اعتبار سره بهتره ده چې په دې شپه كښې قيام، دعا او نور عبادتونه په ليلة القدر كښې د كړې شوو عبادتونو نه افضل دى نو دا قول باطل دې، ددې قول قائل هيڅ څوك هم نشته دې، او بيا په دې بناء باندې ليلة الاسراء افضل گڼړل په هغه وخت كښې ممكن وو، چې په متعينه توگه دا معلومه ...ې چې ... كومه شپه ده؟ او حال دا چې ددې شپې په تعيين باندې څه دليل نشته دې، بلكه ددې په حقله چې كوم څه رانقل كړې شوې دى هغه منقطع او مختلف دى، او بيا خاص په دې شپه كښې څۀ عبادت هم مشروع نۀ دې، په خلاف د ليلة القدر، چې ددې په حقله ښۀ ښكاره او صفا اوفرمائيلې شو، چې ليلة القدر د رمضان المبارك په آخرى لسو شپو كښې اولتوئ، او په دې شپه كښې د مخصوصو عبادتونو فائدې هم په احاديثو كښې راغلې دى، رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيل چې (چا چې په شب قدر كښې دايمان او د احتساب سره قيام اوكړو نو د هغۀ تير شوى ټول گناهونه به او بخښلې شى (٣)، او په خپله الله ﷻ دې ته د زرو مياشتو نه غوره وئيلې ده. او هم په دې شپه كښې قرآن مجيد نازل شوې دې (٤).

او كه هم ددې قائل مطلب دا وى چې يره په دې شپه كښې خو رسول الله ﷺ آسمانونو ته بوتللې شو او په دې شپه كښې رسول الله ﷺ ته هغه څه حاصل شو كوم چې ورته چرته په يوه بله شپه كښې نۀ دى حاصل شوې، او قائل په دې شپه كښې چرته د مخصوص عبادت د مشروعيت قائل هم نۀ

---

(١): سبل الهدى والرشاد، جماع ابواب معراجه، الباب الاول: ١٥\٣، نسيم الرياض: ٧١\٣

(٢): مجموع الفتاوى، كتاب الفقه، كتاب الصيام، رقم الحديث: ٧٢٣، ١٢٥، ١٣٠

(٣): صحيح البخارى، كتاب الصوم، باب تحرى ليلة القدر فى الوتر من العشر والاواخر، رقم الحديث ٢٠١٥، صحيح مسلم، كتاب الصوم، باب فضل ليلة القدر، رقم الحديث: ١١٦٩

(٤): سورة القدر: ٤

دي،نو ددهٔ داسې وئيل صحيح دي،يقيناً چې ددې زمان او د مکان نه زيات افضل څه بل زمان او مکان نشته دې،په کومې کښې چې الله ﷻ په خپل نبی ﷺ باندې داسې خاص فضل کړې وی)[١].

علامه ابن قيم رحمه الله ليکلې دی چې په داسې امورو کښې د کلام کولو دپاره د داسې حقيقتونو ضرورت وی چې هغه حقيقتونه قطعی وی،او د داسې قسمه حقيقتونو علم بې د وحی نه ممکن نۀ دې،او په دې معامله کښې د څه تعيين په حقله وحی چپ ده،لهذا بغيرد علم نه په دې کښې کلام کول روا نۀ دی[٢].

**رسول الله ﷺ ته معراج يو ځل شوېدې اوکه ديوځل نه زيات ورته شوېدې؟** په دې حقله هم مختلف قولونه دی،د صحيح او مستند روايتونو مطابق او د جمهورو علماء کرامو رحمهم الله د قول مطابق واقعه د معراج صرف يو ځلې راپيښه شوې ده،د کومو علماؤ قولونه چې د يو نه د زياتو ځلو د معراج په حقله دی،د هغې اصل وجه داده چې په رواياتو کښې د معراج د واقعې په جزئياتو کښې اختلاف دې، ددې وجې نه دغه علماء کرامو د اختلاف د ختمولو او د تطبيق دپاره د يو ځل نه زيات ځله د معراج واقع کېدل منلې دی،دې دپاره چې هر مختلف فيه واقعه په يو ځان له معراج ثابته شی،خو ولې دا هسې يو فرض کړې شوې خبره ده چې واقعيت سره ددې هيڅ تعلق نشته دې،په معتبرو رواياتو کښې چرته په يو روايت کښې هم د معراج د تعدد اشاره قدرې نشته دې[٣].

علامه قسطلانی رحمه الله د امام نووی رحمه الله قول نقل کړې دې او فرمائيلې ئې دی چې(رسول الله ﷺ ته د معراج واقعه دوه ځلې راپيښه شوې ده،يو ځل د خوب په حالت کښې او يو ځل د بيدارئ په حالت کښې)[٤].

په دې باندې علامه زرقانی رحمه الله ليکلې دی چې د بخاری شريف د شارح المهلب رحمه الله هم دا قول دې،اوددې نقل کوونکې يو لوئې جماعت دې،چې يو دهغوی نه ابونصربن القشيری رحمه الله هم دې،او ابوسعد په(شرف المصطفی)کښې فرمائی چې رسول الله ﷺ ته ديوځل نه زيات ځله دمعراج واقعه راپيښه شوې ده،د بيدارئ په حالت کښې هم او د خوب په حالت کښې هم[٥].

امام سهيلی رحمه الله د خپل شيخ قاضی ابوبکر بن العربی رحمه الله په حوالې سره دې قول ته صحيح وئيلې دی؛په دې توګه باندې د خوب په حالت کښې چې کوم معراج وو هغهٔ د تمهيد په توګه وو.او ددې دپاره وو چې دا د خوب معراج چې په وينښه کښې راپيښيدونکې د معراج واقعه په رسول الله ﷺ باندې آسان شی،او هم داسې ده لکه څنګه چې د نبوت ابتداء د ښو خوبونو(رؤياء صالحه)نه شوې وه،دې دپاره نوچې په رسول الله ﷺ باندې د نبوت کار(چې يو عظيم امر وو.او د انسان قوت ددې د زغملو نه عاجز وو)آسان شی،لکه څنګه چې حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.

(أول ما بدء به رسول الله صلى الله عليه وسلم الرؤيا الصادقة)[٦]

---

([١]):زاد المعاد،مقدمة،التفاضل بين ليلة القدر و ليلة الاسراء:١١/٥٧، ٥٨

([٢]):زاد المعاد،مقدمة،التفاضل بين ليلة القدر و ليلة الاسراء:١١/٥٧، ٥٨

([٣]):روض الانف،ذکر الاسراء:١٣/١٨٤، فتح البارى:٧/٢٤٩

([٤]):المواهب اللدنيه،الاسراء والمعراج:١٢/٣٤٠

([٥]):سبل الهدى والرشاد:١٣/٢٧، شرح العلامة الزرقانى:٧/٩، فتح البارى:٧/٢٤٩، روض الانف:١٣/١٧٤

([٦]):صحيح مسلم،باب كيف كان بدء الوحي الى رسول الله صلى الله عليه و سلم،رقم الحديث:١٦٠

وفی روایة (الصالحة فی النوم فکان لا یری الا جاءت مثل فلق الصبح)(۱)

مطلب ئې دا دې چې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چې د نبوت د ورکړې نه وړاندې رسول الله ﷺ ته ريښتونی خوبونه ښودلې کيدل او رسول الله ﷺ به چې کوم خوب هم ليدلو هغه به د روښانه صبا په شان ريښتونې ثابت شو.

هم دغه شان د اسراء چې کومه واقعه ده دا د بيدارئ د حالت نه وړاندې رسول الله ﷺ ته په خوب کښې اوښودلې شوه چې دا د دوی دپاره آسانه شی، چې يو لوئې هيبت والا او يو لوئې عظيم الشان سفر د بيدارئ په حالت کښې راپيښيدونکې وو. هم دغه شان د معراج د يو ځل نه د زياتو ځلو واقع کيدلو په حقله په قائلينو کښې بعضو دا هم وئيلې دی چې په خوب کښې راپيښه شوې د معراج چې کومه واقعه ده هغهٔ رسول الله ﷺ ته د نبوت د ورکړې نه د وړاندې وخت ده، په دې قول باندې تفصيلی بحث وړاندې په صفحه نمبر ۲۰ باندې تير شوې دی.

بعضې علماؤ ليکلې دی چې رسول الله ﷺ ته ځلور ځله واقعه د اسراء راپيښه شوې ده، او ځلور واړه ځله ورته د بيدارئ په حالت کښې راپيښه شوې ده، د هغوی استدلال هم د هغه مختلفو روايتونو نه دې کوم چې د اسراء په حقله روايت کړې شوې دی.(۲)

د دوی په جواب کښې علامه قسطلانی رحمه الله ليکلې دی چې ذکر کړې شوې استدلال صحيح نهٔ دې، ځکه چې د معراج د واقعې نقل کوونکی صحابهٔ ګڼر دی، لهذا دا خبرې اوکړې شوې چې په دوی کښې بعضو بعضې خبرې بيان کړلې او د ويم هغه خبرې نهٔ دی بيان کړې، او چې بعضو په کښې څه خبره پرېښوده نو بل بيا هغه خبره ذکر کړې ده، نو ددې وجې نه دانهٔ لازميږی چې د روايتونو د اختلاف د وجې نه دې واقعه د معراج په ګڼرو پيرو سره راپيښه شوې وی.(۳)

يو جواب دا هم ورکړې شوې دې چې د روايتونو مختلف کيدل په تعدد د معراج باندې دلالت نهٔ کوی، ځکه چې راوی د روايت په وخت کښې د روايت څه حصه د هغې د عام والی او د معلوم والی د وجې نه هم حذف کړی، او کله کله د څهٔ خبرې د هيريدو د وجې نه هم د هغې حذف کيدل ممکن دی، او کله کله داسې هم کيږی چې راوی صرف هغه خبره بيانوی کومه چې د هغهٔ په نيز باندې زياته اهمه وی، او کله کله راوی په تازګئ کښې وی د کومې په بناء چې هغهٔ پوره په پوره روايت ذکر کړی، او کله کله صرف هغه خبره ذکر کړی کومه چې د مخاطب دپاره زياته فائده منده وی، لهذا د داسې قسمه اختلاف د وجې نه د معراج د تعدد په حقله قول کول صحيح نهٔ دی(۴).

حافظ ابن کثير رحمه الله ليکلې دی:

(چا چې د يو مختلف روايت د وجې نه د معراج يو بيل قول ذکر کړې دې او ددې روايتونو د وجې نه د ګڼرو معراجونو قائل شو، هغهٔ يو داسې خبره اوکړه چې تر اوسه پورې چا هم نهٔ ده کړې، هغهٔ داسې ارخ ته تيختته اوکړه چې هغه ارخ ته تيختته نهٔ کولې کيږی، يعنی ددې په ذريعې سره د تعارض په ختمولو کښې هيڅ قسمه کومک نهٔ ترلاسه کيږی، او مطلب هم نهٔ پوره کيږی، او په سلفو کښې چا هم داسې څهٔ نهٔ دی نقل کړې، که چرې ددې ګڼرو روايتونو نه د ګڼرو معراجونو پته معلوميدلې نو

(۱): صحيح البخاری، کتاب الايمان، رقم الحديث: ۳

(۲): المواهب اللدنية ک ۱۱۲/ ۳۴

(۳): شرح العلامة الزرقانی: ۱۰۱۷، فتح الباری: ۲۴۸/۷

(۴): شرح العلامة الزرقانی: ۱۰۱۷، فتح الباری: ۲۴۹/۷، سبل الهدی والرشاد: ۷۹/۳

رسول الله ﷺ به خپل امت ته ددې خبر خامخا ورکولو ،او صحابهٔ کرامو﷡ به دا تعداد او تکرار رانقل کولو ،او حال دا چې داسې هیڅ قسمه څه خبر نشته دې[1].

حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلي دي چې:د مختلفو روایتونو د وجې نه د ګڼرو معراجونو په حقله قول کول ډېر کمزورې دي،ځکه چې ددې قول منلو سره به د هر ځل د معراج په سفر کښې د رسول الله ﷺ د انبیاء کرامو علیهم السلام سره خبرې اترې،په هر آسمان باندې د رسول الله ﷺ اودرول او د هغوی نه پېښتنه کول(چې آیا تاسو راغوښتې شوی یئ)او په هر ځل باندې د مونځونو فرضیت،او ددې مونځونو د کمولو دپاره بیا بیا د الله ﷻ دربار ته حاضرېدل ورسره لازمیږي،او داسې چرته هم منقول نۀ دی،ددې وجې نه دا خبره متعینه شي چې په مختلفو روایتونو کښې دې د تطبیق یا د ترجیح لاره اختیاره کړې شي،او که د معراج تعدد په خوب کښې اومنلې شي،او بیا د بیدارۍ په حالت کښې د معراج د واقع کیدل اومنلې شي نو په دې کښې هیڅ قسمه څۀ خرابی نشته دې).[2]

ابن قیم رحمه الله فرمائي:(د روایتونو د مختلف کیدلو په وجه د معراج د واقع کیدلو په حقله د تعدد قول اختیارول د روایتونو په ظاهری الفاظو باندې د عمل کوونکو بې علمه خلقو طریقه ده،چې کله هم دوی په قصه کښې یو داسې خبره اولیدله چې هغه د نورو بعضو روایتونو نه خلاف ده،نو ددې روایت په وجه ئې ځان له د یو بېل معراج قول اختیار کړو ،تر دې چې د هغوی په وړاندې چې څومره هم داسې قسمه روایتونه راغلل په کومو کښې چې لفظي اختلاف وو ،نو هغوی هم دومره ځله د معراج واقع کیدل ذکر کړل،حال دا چې صحیح او برابر مذهب هم هغه دې په کومې باندې چې امامان د سیرت ولاړ دي،چې معراج صرف یو ځل په مکه مکرمه کښې د نبوت نه پس راپیښ شوې دې)[3].

حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلي دي چې:

(حافظ ابومحمد عبدالرحمن بن اسمعیل رحمه الله (چې د ابوشامه په نوم سره مشهور دې)هم په دې حقله دا ترجیح ده،چې معراج د یو نه زیات ځله راپیښ شوې دې،د هغوی دلیل د مسند بزار حدیث مبارك دې د کوم راوی چې حضرت انس رضی الله عنه دې[4]،دا حدیث امام بیهقي رحمه الله هم په(شعب الایمان) کښې ذکر کړې دې[5]،په دې حدیث مبارك کښې دي چې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیل:زۀ ناست ووم چې حضرت جبرئیل علیه السلام تشریف راوړو هغوی زۀ په اوږه باندې اوټپولم،زه پاسیدم او د هغوی سره یوې اونې ارخ ته روان شوم،په دې اونه باندې د مارغۀ د جالې په شانتې دوه د جالو په شانتې ځایونه جوړ وو،په هغې کښې په یو کښې حضرت جبرئیل علیه السلام کیښناست او په بل کښې زۀ کیښناستم،بیا هغې اونې مونږ واخستو او پورته شو،تر دې چې هغه اونې زمکه او اسمان او ځلور واړه اړخونه ډك کړل،ما د الله ﷻ د قدرت نښې کتلې،که چرې ما آسمان له ګوتې اوړل غوښتل نو

---

([1]):تفسیر ابن کثیر،سورة الاسراء:۱۱۳|٤،تفسیر البغوی:۵۸|۵،السیرة الحلبیة:۱۵۲|۲

([2]):فتح الباری:۲٤۹|۷،شرح المواهب:۱۱|۷،زادالمعاد:۲۲|۳

([3]):زادالمعاد :۲|۳٤،شرح المواهب:۱۱|۷، سبل الهدی والرشاد،الباب الثامن فی سیاق القصة:۷۹|۳

([4]):البحر الزخار المعروف بمسند البزار،مسند انس رضی الله عنه رقم الحدیث ۷۳۸۹، ۹|۱۵

([5]):شعب الایمان للبیهقي،کتاب الایمان،باب فی معرفة الملائکة،رقم الحدیث:۱۵۵، ۱۷۵|۱

اوري مې شوې،بيا د آسمان په دروازو کښې يوه دروازه ما دپاره پرانستې شوه بيا ما يو ډير لوئې نور اوليدلو.........الخ.

حافظ صاحب ليکي:

ددې حديث په صحت کښې هيڅ قسمه کلام نشته دې،خو ولې دا سفر د معراج نه علاوه چرته بله قصه ده،کومه چې په ظاهره د مديني منورې د قيام په وخت کښې راپيښه شوې ده.او دا څۀ لرې خبره نۀ ده چې دا واقعه دې د خوب په حالت کښې راپيښه شوې وی،بعد او نا اشنا والي خو د هغه معراج په ګنړ کرته واقع کيدلو په معلومولو کښې دې په کوم کښې چې هر نبی او هر اسمان والا سره خبرې اترې شوې دی،د مونځ فرضيت په کښې شوې دې،او د مونځونو د کمولو په حقله بيا بيا د الله ﷻ دربار ته رجوع کړې شوې ده([1]).

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلي دی چې:

(ابن عبدالسلام په خپل تفسير کښې ليکلي دی چې رسول الله ﷺ ته اسراء د خوب او د بيدارئ په حالت کښې راپيښه شوې ده،او دا واقعه په مکه مکرمه او په مدينه منوره کښې راپيښه شوې ده،په دې باندې حافظ صاحب فرمائي چې که د دوی مراد په مدينه منوره کښې د اسراء نه د خوب په حالت کښې د اسراء واقع کيدل وی نو د دوی دا کلام به بيا د لف نشر غير مرتب په طريقه بآندې وی کوم چې صحيح دې،يعنې په مدينه منوره کښې اسراء په حالت د خوب کښې او په مکه مکرمه کښې داسراء واقعه په حالت د بيدارئ کښې راپيښه شوېده،اوپه مکه مکرمه کښې راپيښيدونکی د اسراء واقعه،هغه ده کومه چې د معراج واقعې سره پيوسته راپيښه شوې ده.او په دې کښې د مونځونو فرضيت هم اوشو،او مناسب دادی چې په دې کښې دا زياتې هم اوکړې شی چې په مدينه منوره کښې د اسراء واقعه د خوب په حالت کښې د يو ځل نه زيات ځله راپيښه شوې ده([2]).

علامه قسطلانی رحمه الله فرمائيلي دی:

(رسول الله ﷺ ته ځلور ديرش(۳۴) ځله سفر د اسراء راپيښ شوې دې،په کومو کښې چې يو ځل جسمانی او د بيدارئ په حالت کښې او باقی پاتې ټول روحانی او خوبونه وو کوم چې رسول الله ﷺ ليدلي وو)([3]).

علامه زرقانی رحمه الله فرمائي:

(حق او صحيح قول دادې چې رسول الله ﷺ ته معراج صرف يو ځلې جسد مع الروح شوې دې،او په دې ټول سفر کښې رسول الله ﷺ بيدار وو،په دې خبره بآندې د جمهورو محدثينو علماؤ، فقهاؤ، او متکلمينو د ټولو اتفاق دې، ټول صحيح روايتونه په دې باندې راغلي دی ددې نه د اوړيدلو يو پوټې قدرې ګنجائش هم نشته دې([4]).

---

([1]):فتح الباری،باب الاسراء:۲۴۹\۷،عمدة القاری ۲۶\۱۷،شرح العلامة الزرقانی:۲۲\۷،سبل الهدی والرشاد:۷۱\۳، ۷۲

([2]):فتح الباری،باب الاسراء:۲۴۹\۷، عمدة القاری:۲۶\۱۷، شرح العلامة الزرقانی:۱۲\۷، سبل الهدی والرشاد:۷۱\۳، الباب فی علوم الکتاب سورة الاسراء:۲۰۵\۱۲

([3]):المواهب اللدنية:۳۴\۱۲

([4]):شرح العلامة الزرقانی:۱۳\۷، عمدة القاری:۲۶\۱۷،فتح الباری:۲۴۷\۷،التعليق الصبيح:۱۳۶\۷، مرقاة المفاتيح : ۵۲۴\۱۰.

**د معراج په سفر باندې د ملحدینو اعتراضونه او د هغې جوابونه:** د رسول الله ﷺ د معراج د سفر د واقع کیدونه په مسلمانانو کښې هیڅ څوك هم انکار کوونکې نشته دې،داسلام نه لرې لرې ملحدینو ، فلسفیانو او د نفاق جامه اغوستونکو دې سفر ته عقلاً محال او ناممکنه ونیلو سره په دې باندې اعتراضونه کړې دی،او رنګ په رنګ شکونه او شبهې ئې پیدا کړې دی،بعضې د هغې نه دادی چې د یو جسم دومره تیز حرکت کول(چې هغه په یو لګ شان ساعت کښې دومره اوږد او لوئې سفر اوکړی)غیر معقول خبره ده،او که یو جسم دومره تیز حرکت هم اوکړی نو دې سره د اسمان شلیدل لازمیږی او دا محال دی،او د یو درونډ ،سخت او وزنی څیز د اسمان اړخ ته اوچتیدل هم د قبلولوجوګه نۀ دې،او کۀ دا ذکر کړې شوې درې واړه خبرې صحیح هم اومنلې شی نو دا به بیا د رسول الله ﷺ داسې معجزه وی چې دا به یو بې مثاله او د ټولو معجزو نه لویه معجزه وی،نو بیا دې سره دا خبره ضروری وه چې دا واقعه د انسانانو په اجتماع کښې د هغوی د وړاندې راپیښه شوې وې،چې هغوی ددې واقعې لیدلو سره د رسول الله ﷺ د نبوت تصدیق کړې وې او په دوی باندې ئې ایمان راوړې وې،لهذا ددې واقعې په داسې وخت کښې راپیښیدل چې نۀ دوی چا اولیدل او نۀ چا ته خبر اوشو دا داسې یو عبث فعل دې چې دا د حکیم ذات د شان لائق فعل نۀ دې(العیاذ بالله)(۱).

**تیز تګ دکومه حده پورې ممکن دې؟** حضرت حکیم الامت مولانا محمد اشرف علی تهانوی صاحب رحمه الله فرمائی:

د ملحدینو د اولنی اعتراض چې(چې یو جسم د شپې په لږه شان حصه کښې د مکې مکرمې نه بیت المقدس ته او بیا د هغه ځائې نه د اووه اسمانونو سیل اوکړی او بیا واپس راشی،دا محال دی)په دې کښې د محال کیدلو هڅو څه خبره نشته دې،عقلاً دا څیز د ممکناتو نه خارج نۀ دې،البته د عقل نۀ لرې ضرور دې،او که داسې نۀ وی نو چې څوك ددې د محال کیدلو دعوی کوی هغۀ دې په دې خپله دعوی باندې دلیل وړاندې کړی،نو چې کله اعتراض کوونکی دلائل راوړاندې کړی نو د دوی د دلائیلو جواب به هم ورکړې شی،انشاء الله.

ولې دومره خبره ده چې د استبعاد د لرې کولودپاره به مونږ دومره اووایو چې ستاسو په نیز باندې(زمانه)د زمکې او د اسمان د چکر نوم دې،لهذا د شپې ورځې راتلل،نور ختل پریوتل،دا ټول د افلاکو حرکت سره تړلې شوې دی،نو که چرې د فلك حرکت موقوف شی نو چې کوم وخت وی هم هغه وخت به وی،که چرته شپه وی نو هم شپه به وی،او که ورځ موجوده وی نو بیا هم ورځ وی،نو دا بالکل ممکن دې چې الله ﷻ د شپې په وخت کښې د فلك حرکت اودرولې وی.او په دې کښې د تعجب څه خبره هم نشته دې،د عزت منډو او محترمو میلمنو د قدر د ښکاره کولو دپاره د دنیا د خلقو هم دا قانون او قاعده ده چې هر کله د وخت د بادشاه سورلی په کومې چې هغه سور وی تیریږی نو د لارې نه تلل راتلل او د ژوند ټول کاروبارونه اودرولې شی تر څو پورې چې د هغۀ سورلی تیره نۀ شی،هم دغه شان که الله ﷻ د رسول الله ﷺ د عظمت او لوئې مرتبې د ښکاره کولو دپاره که چرې د زمکې او د اسمان حرکت اودرولې وی چې د محبوب سورلی راروانه ده.لهذا د هر مخلوق هر حرکت ئې اودرولو ،نو په دې کښې څه استبعاد یعنی لرې والې دې؟هر کله چې رسول الله ﷺ د معراج نه فارغ شو نو بیا دوباره ئې د فلك حرکت چې په کوم ځائې باندې ولاړ وو روان ئې

(۱):سبل الهدی والرشاد،الباب السادس:۳/۷٤

کړو ،اوس که څوك ددې خلاف د افلاك د حرکت په دوام باندې دعوی اوکړی نو ددې دپاره دې بیا دلیل راوړی،انشاء الله یو دلیل هم نۀ شی ثابتولې(١).

هم دغه شان درنړا مزل دومره تیز دې چې په یو منټ کښې یو کرور او شل لاکه میله مزل کوی،بجلې یعنی برق په یو منټ کښې پنځه سوه ځله د زمکې نه تاو راتاو چکر وهلې شی،او داسې ستورې هم اوموندې شو چې په یو ګهنټه کښې اتلس لاکه اتیا زره میله تیز والی سره حرکت کوی.

ددې نه علاوه د انسان سترګه چې کله یو اړخ ته ګوری نو ددۀ ددې سترګې دا کتل په ډیر لږ شان وخت کښې آسمان ته رسی. کوم وخت کښې چې نمر راخیژی نو ددې برینښا په لږ ساعت کښې په ټوله زمکه باندې خوره شی. بله دا چې بادونه د حضرت سلیمان ﷺ دپاره تابعدار کړې شوې وو،چې دغه بادونو به په ډیر لږ شان وخت کښې د حضرت سلیمان ﷺ تخت اوچت کړو او لوئې سفر به ئې کولو.لکه څنګه چې په قرآن مجید کښې راځی﴿فسخرناله الريح تجري بأمره﴾(ص:٣٨)(او مونږ د سلیمان ﷺ دپاره باد تابعدار کړې وو کوم چې به د هغوی په حکم سره الوتلو)

هم د حضرت سلیمان ﷺ په قصه کښې راځی چې د هغوی یو وزیر چې هغوی د میاشتو په مزل باندې لرې د بلقیس شهزادګئ تخت د سترګو په رپ کښې د سلیمان ﷺ په خدمت کښې وړاندې کړې وو ،لکه څنګه چې په قرآن مجید کښې ددې بیان کړې شوې دې﴿قَالَ الَّذِیْ عِنْدَهٗ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتٰبِ اَنَا اٰتِیْكَ بِهٖ قَبْلَ اَنْ یَّرْتَدَّ اِلَیْكَ طَرْفُكَ ؕ فَلَمَّا رَاٰهُ مُسْتَقِرًّا عِنْدَهٗ قَالَ هٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّیْ﴾(اووئیل هغه سړی چې هغه سره یو علم وو د کتاب،زۀ به دا تا له راوړم،وړاندې ددې نه چې راووړی ستا اړخ ته سترګه)(٢)

هر کله چې د یو جسم د سترګو په رپ کښې د شام ملك ته رسیدل ممکن دی،نو بیا داسې تیز حرکت د هر یو جسم دپاره ممکن دې،او الله ﷻ خو بیا ډیر زیات قادر دې چې د رسول الله ﷺ پاك جسم د شپې په څۀ لږه شان حصه کښې پورته بوځی او واپس ئې هم راولی(٣)

**د اسمانونو شلیدل او بیا جوړیدل:** د ملحدینو دویم اعتراض دا کیږی چې که د رسول الله ﷺ جسمانی معراج اومنلې شی نو په دې سره به دا لازمیږی چې کله دوی اسمان ته تشریف یوړلو،نو پورته د ټولو دپاره اسمان اوشلیدلو او بیا وروستو واپس یو ځائې شو،حال دا چې دا خبره محاله ده،لهذا د رسول الله ﷺ جسمانی معراج نۀ شی منلې کیدې.

ددې په جواب کښې حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله فرمائی چې فلسفیانو سره د اسمان په شلیدلو باندې او بیا ددې په جوړیدلو باندې څۀ دلیل نشته دې،چې کله هغوی ددې دپاره څه دلیل بیان کړی نو ددې جواب به هم ورکړې شی(٤).

او دوی ته عقلی جواب دادې چې دا دعوی کول چې(شلیدل د افلاکو محال دی)باطله ده،ځکه چې ټول جسمونه بیل بیل خو ولې د یو جوهر د مرکب کیدلو نه وجود ته راځی،برابره خبره ده که هغه جسمونه سفلی وی او که جسمونه سماوی وی،او په سفلی جسمونو کښې شلیدل او جوړیدل

(١):اشرف الجواب اعتراض نمبر ٦٤: صفحه نمبر :٥٧٤

(٢)(تفسیر عثمانی النمل:٤)

(٣):سبل الهدی والرشاد،الباب السادس فی دفع شبهة اهل الزیغ فی استحالة المعراج:٧٥\١٣-٧٤ روح المعانی، الاسراء :٩\١٨، ١٠،التفسیر الکبیر،الاسراء:١١٨\٢٠، ١١٩،اشرف الجواب ص،٦٦

(٤):اشرف الجواب،ص:٦٥،اسلام اور عقلیات اصول موضوعه نمبر ٧، ٤٩

ممكن او د مشاهدې نه معلوم دی،نو هر کله چې په بعض جسمونو کښې جدا والې ممکن دې نو په بعضې نورو کښې هم ممکن دې،او بیا الله رب العزت خو په دې خبره باندې ډېر زیات قدرت لرونکې دې په دې خبره باندې چې هغه اسمان اوشلوی او خپل نبی ﷺ پورته بوځي او بیا ئې واپس هم راولی،او بیا هر کله چې په دې حقله نص هم راغلې دې،نو بیا ددې تصدیق کول واجبیږی.(١)

**د درونډ جسم د اسمان اړخ ته پورته کیدل:** د فلسفیانو په نیز د یو کلك درونډ جسم هم د آسمانونو اړخ ته پورته کیدل یو په عقل کښې نۀ راتلونکې خبره ده.

حال دا چې ددې کمزورې اعتراض باطلیدل چې څنګه په نن صبانۍ زمانه کښې واضح شوې دی څۀ اووایم که داسې چرته مخکښې شوې وی،اول خو دا چې ددې اعتراض په منلو سره به د ټولو پیغمبرانو او د رسولانو د نبوت او د رسالت نه انکار لازم راځی،او دا محال دی.

ورسره ورسره دا چې د حضرت جبرائیل ﷺ راکوزیدل به هم باطل شی ځکه چې هغه هم جسم دې،او څنګه چې ختل محال ثابتولې شی نو دغسې راکوزیدل هم محال ګرځی،لهذا که ختل ناممکن اوګرځولې شو نو راکوزیدل به هم ناممکن اوګرځی،حال دا چې د ټولو پیغمبرانو نبوت د جبرائیل ﷺ راکوزیدل او ختل د ټولو په نیز د څه نا څه عقیدې په لحاظ سره منلې شوې دی،نو د رسول الله ﷺ آسمان ته د ختلونه د انکار په صورت کښې به ددې ټولو فرښتو انکار هم لازم اوګرځی او دا محال دی، نو هر کله چې د بعضو جسمونو ختل او کوزیدل ممکن دی،نو د رسول الله ﷺ پورته تشریف اوړل هم ممکن دی.

ددې نه علاوه په نن صبا وخت کښې چې د منونو درنې الوتکې په اسمانی هوا کښې الوزیدل او بیا ددې په ګینټو ګینټو په زرګونو میله مزل کول د ټولې دنیا په وړاندې دی نو فقط د یو انسان د سفر په حقله ولې انسانیت دومره قدرې حیرانه او سرګردانه دی.(٢)

**د معراج د شپې په وخت کښې د کیدلو حکمت:** یو ډیره زیاته بې بنیاده خبره دا هم کولې شی چې که تیرې شوې ټولې خبرې اومنلې شی نو بیا هم دا کیدل پکار وو چې دا عظیمه معجزه د شپې په وخت کښې د کیدلو په وجه د ورځې په وخت کښې شوې وې او د خلقو په وړاندې دا ختل او کوزیدل شوې وې چې په دې سره دې خلقو د رسول الله ﷺ د نبوت په رښتونی کیدلو باندې دلیل نیولې وې،رسول الله ﷺ خو په داسې وخت کښې بوتللې شو چې څوك هم په دې وخت کښې ددې نظارې کتونکې نۀ وو نو دا هسې یو عبث فعل دې.

نو عالمانو ددین ددې اعتراض هم ډیر زیات جوابونه ورکړې دی چې د هغه ټولو جوابونو نه یو دادې چې داسې د شپې په وخت کښې ځکه اوشو چې ددې خبر په تصدیق کولو سره د ایمان دارو ایمان بالغیب نور هم زیات شی،او د کفر کوونکو کفر ددې خبرې نه د انکار کولو په وجې سره نور هم زیات شی.لکه څنګه چې الله رب العزت ددې واقعې په حقله فرمائیلې دی: ﴿وما جعلنا الرؤيا التی

(١):سبل الهدى والرشاد:٧٥١٣،التفسير الكبير:١١٨١٢٠،سيرة المصطفى ﷺ،د ملحدینو اعتراضونه او جوابونه:٢٧٠١١

(٢):سبل الهدى والرشاد:الباب السادس:٧٥١٣، ٧٦، التفسير الكبير،الاسراء:١١٨١٢٠، ١١٩،روح المعانى:٩١٨، ١٠، سيرت المصطفى:٢٧٠١١، ٢٧١.

الناك الا فتنة للناس﴾ (الاسراء: ۲۰) ترجمه: (مونږ د معراج په واقعه كښې) كومه تماشه چې (په حالت د بيدارئ كښې) تا ته ښودلې وه، مونږ دا ددې خلقو د پاره د ګمراهئ سبب او ګرځولو) (۱)

او دا حكمت ورله هم بيان كړې شوې دې چې په عامه توګه د شپې وخت د خلوت وى، په دغه وخت كښې د محب اود محبوب ملاقات كول او د ورځې په وخت كښې ملاقات كول نه شى برابريدلې، ددې نه علاوه دا خبره خو د هغه خلقو دپاره ده چې هغوى د قلب سليم خاوندان وى، او د چا چې زړونه په كړه باندې پاخهٔ شوې وى نو د هغوى په نيز د تيختې د پاره په سوونو نور اشكالات هم وى، د هغوى په نيز دا واقعه د شپې اوشوه او كه د ورځې دا دواړه برابر دى، دا خو هغه خلق دى چې دوى په خپله د سپوږمئ د دوو ټوټوكولومطالبه كړې وه او چې بيا هر كله داسې اوشونو وئيل ئې هذا: ﴿سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ﴾ (القمر: ۴) چې دا خو جادو دې چې د وړاندې نه راروان دې (تفسير عثمانى: ۲۸۷) (۲).

**تعليق:**

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: حَدَّثَنِي أَبُو سُفْيَانَ فِي حَدِيثِ هِرَقْلَ فَقَالَ: يَأْمُرُنَا - يَعْنِي النَّبِيَّ ﷺ - بِالصَّلَاةِ وَالصِّدْقِ وَالْعَفَافِ. [ر: ۷]

(حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمائى چې ابوسفيان رضی الله عنه د هرقل (قيصر د روم) سره راپيښې شوو خبرو اترو اوررولو سره ما ته اووئيل چې هغه يعنى رسول الله ﷺ مونږ ته د مونځ كولو، د رښتيا وئيلو، او د پاكدامنئ حكم راكوى).

**د تعليق تخريج:** امام بخارى رحمه الله ترجمة الباب د (كيف فرضت الصلاة فى الاسراء) قائمولو نه پس د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما حديث تعليقا ذكر كړې دې، كوم چې د هرقل د حديث يوه ټكړه ده، (حديث د هرقل موصولا او په سند سره په تفصيل سره په (كتاب بدء الوحى) كښې تير شوې دې).

څنګه چې وړاندې دا خبره تيره شوه چې تعليقات د بخارى په دوه قسمه دى:

① كوم چې صرف او صرف د تعليق په توګه ذكر كړې شوې دى، او دويم هغه تعليقات دى چې هغه تعليقا هم ذكر كړې شوې دى او ټول په ټوله حديث هم په بخارى شريف كښې چرته په بل ځائې كښې ذكر كړې شوې وى (۳)، لهذا دا ذكر كړې شوې تعليق هم ددې دويم قسم د تعليق نه دى. دا تعليق چې د كوم حديث مبارك ټكړا ده، نو دغه حديث مبارك په صحيح بخارى كښې په يوولسو ځايونو كښې چرته پوره په تفصيل سره او چرته مختصر ذكر كړې شوې دې. ددې نه علاوه په صحيح مسلم، سنن ابوداؤد، او په سنن ترمذى كښې هم دا حديث ذكر كړې شوې دې (۴).

---

(۱): خلاصه تفسير از معارف القرآن: ۵۰۰/۵.

(۲): المواهب اللدينة: ۳۴۲/۲، سبل الهدى والرشاد: ۷۵/۳، ۷۶، التفسير الكبير: ۱۲۰/۲۰ ۱۲۱، اشرف الجواب، ص: ۶۷

(۳): هدى السارى مقدمة فتح البارى، الفصل الثالث، ص: ۱۵، ۱۶.

(۴): أخرجه البخارى فى كتاب الإيمان، باب (بلا ترجمة، بعد سؤال جبريل النبى ﷺ عن الإيمان والإسلام والإحسان....... رقم الحديث: ۵۱) وفى كتاب الشهادات، باب من امر بإنجاز الوعد، رقم الحديث: ۲۶۸۱، و فى كتاب الجهاد، باب قول الله عزوجل: (قل هل تربصون بنا الا إحدى الحسنيين، والحرب سجال، رقم الحديث: ۲۸۰۴، و باب دعاء النبى ﷺ الناس الى الاسلام والنبوة...... رقم الحديث: ۲۹۴۱، وباب ما قيل فى لواء النبى ﷺ رقم الحديث: ۲۹۷۸، و فى كتاب الجزية والموادعة، باب فضل الوفاء بالعهد، رقم الحديث: ۳۱۷۴، و فى كتاب التفسير، باب: ( قل يا اهل الكتاب تعالوا الى كلمة سواء بيننا و بينكم أن لا نعبد الا الله) رقم الحديث: ۴۵۵۳، و فى كتاب الادب، باب صلة المرأة أمها و لها زوج، رقم الحديث

**حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما:** د ترجمان القرآن، حبر الامة، ابن عم رسول الله ﷺ حضرت عبدالله بن عباس بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبدمناف رضي الله عنهما تفصيلي پيژند ګلنه په كشف الباري اولني او دويم جلد كښې تيره شوې ده.[1]

**د ذكر كړې شوي تعليق د ترجمة الباب سره مناسبت:** شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله فرمائي چې د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت په دې اعتبار سره دې چې د مونځ فرضيت هم د اسلام په شروع زمانه كښې ښه مشهور شوې وو. او ددې خبر لرې لرې ښاريو ته رسيدلې وو.[2]

**د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې ددې تعليق په ذكر كولو سره د امام بخاري رحمه الله مقصد دا بيانول دي چې د مونځ فرضيت په مكه مكرمه كښې شوې دې، هغه داسې چې په كومه زمانه كښې ابوسفيان د هرقل سره ملاقات اوشو نو اګرچې دا زمانه د رسول الله ﷺ مديني منورې ارخ ته د هجرت نه پس زمانه وه، خو ولې د هجرت نه پس د ابوسفيان ملاقات د رسول الله ﷺ سره نۀ دې شوې، ددې وجې نه د هرقل په جواب كښې د ابوسفيان ددې وينا نه چې رسول الله ﷺ مونږ ته د مونځ كولو حكم كوي نه معلوميږي چې رسول الله ﷺ به د هجرت نه وړاندې هم مكه مكرمه كښې د مونځ حكم فرمائيلو. او د راجح قول مطابق د اسراء واقعه هم د هجرت نه وړاندې راپيښه شوې وه په كومو كښې چې د مونځونو فرضيت شوې دې.

حافظ صاحب رحمه الله فرمائي چې "د مونځ د فرضيت" د وخت بيان اګرچې د حقيقت په اعتبار سره د كيفيت سره تعلق نۀ لري، خو ولې دا هم د كيفيت د مقدماتو ذكر كولو نه يوه مقدمه ده، لكه څنګه چې امام بخاري رحمه الله د خپل صحيح په شروع كښې د كيف كان بدء الوحي لاندې د ډير لرې لرې او معمولي مناسبت لرونكي احاديث راوړې دي، هم دغه شان دلته هم مناسبت ښكاره شي.[3]

**د علامه عيني رحمه الله رائې:** علامه عيني رحمه الله د حافظ صاحب ذكر كړې شوې توجيه رد كولو سره فرمائي چې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په حديث كښې داسې څه تفصيل يا وضاحت نشته دې د كومې نه چې د مونځ د فرضيت كيفيت ښكاره شوې وي، لهذا (فظهرت المناسبة) وئيل صحيح نۀ دي، بلكه په دې حقله ښۀ توجيه داده چې د څه څيز د كيفيت بانديِ هم د پوهيدلو نه وړاندې د هغه څيز ذات پيژندل ضروري دي، لهذا د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په حديث كښې د فرضيت په اعتبار سره د مونځونو ذات ښودلې شوې دې، او ددې نه په وړاندې حديث كښې د فرضيت كيفيت ښودلې

---

:۵۹۸۰، و فى كتاب الاستئذان، باب كيف يكتب الى اهل الكتاب، رقم الحديث: ۶۲۶۰، و فى كتاب الاحكام، باب ترجمة الحكام و هل يجوز ترجمان واحد، رقم الحديث: ۷۱۹۶، و فى كتاب التوحيد و باب ما يجوز من تفسير التوراة و غيرها من كتب الله بالعربية وغيرها، رقم الحديث: ۷۵٤۱.

و مسلم فى صحيحه، كتاب الجهاد والسير، باب كتب النبى ﷺ الى هرقل، رقم الحديث: ٤۶۰۷.

و ابوداؤد فى سننه، كتاب الادب، باب كيف يكتب الى الذمى، رقم الحديث: ۵۱۳۶.

والترمذى فى سننه، كتاب الاستئذان، باب ما جاء كيف يكتب الى اهل الشرك، رقم الحديث: ۲۷۱۷.

(1): كشف الباري: ۱\٤۳۵، ۲/۲۰۵

(2): شرح تراجم ابواب البخاري، ص: ۲۰

(3): فتح الباري، كتاب الصلاة: ۱\٥٩٧، الكوثر الجاري: ۲\۲۷، فيض الباري: ۲\٥، الكنز المتواري: ٤\۶، حاشية السهار نفوري: ۱\۵۰

شوي دي،نو په دې لحاظ سره به د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حديث د مونځ د فرضيت د كيفيت د بيانولو دپاره مقدمه او تمهيد شمارلې كيږي،نو په دې توجيه سره به دا حديث د ترجمة الباب سره مناسبت اولري .(١).

**لغوی او نحوی تحقیق**:په ذكر كړې شوى تعليق كښې د(فقال)فاعل(ابوسفيان)دې،او(النبی)منصوب دې د(یعنی)فعل د مفعول كيدلو له وجې نه،او(بالصلاة)د(يأمرنا)سره متعلق دې.(٢)

**(الصلاة)**اركان معهوده او افعالو مخصوصو ته په اصطلاح د شرع كښې صلاة وائى،ددې عبادت شروع په(تكبير)او ختميدل په(سلام)سره كيږي.(٣)

**(الصدق)**صدق داسې خبرې ته وئيلې چې شى دا خبره د واقعې مطابق وى (٤).

**(العفاف)**خپل ځان د حرام نه ساتلو ته(عفاف)وئيلې شى .(٥).

په ذكر كړې شوى تعليق كښې د صلاة نه پس د صدق ذكر دې او هم د صحيح البخارى په يو روايت كښې(كوم چې په كتاب الجهاد كښې دې)د صدق په د ځائې(صدقة)لفظ دې(٦)او ددې نه علاوه په يو بل روايت كښې(كوم چې په كتاب التفسير كښې دې)د(الزكاة)لفظ دې،(٧)او هم دا روايت چې په صحيح مسلم كښې دې،په هغې كښې هم د(الزكاة)لفظ راغلې دې(٨).

راجحه خبره داده چې دلته(صدق)او(صدقة)دواړه لفظونه دى،د راويانو د تصرف په وجه چرته يواځې(صدق)او چرته(صدقة)ذكر كړې شوې دې هم ددې وجې نه د كشميهنى او د علامه سرخسى په روايت كښې دا دواړه لفظونه جمع كړې شوې دى(بالصلاة والصدق والصدقة).(٩)

## حديثِ باب (دريمې حديث)

[٣٤٢]-حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: كَانَ أَبُو ذَرٍّ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " فُرِجَ عَنْ سَقْفِ بَيْتِي وَأَنَا بِمَكَّةَ، فَنَزَلَ جِبْرِيلُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَفَرَجَ صَدْرِي، ثُمَّ غَسَلَهُ بِمَاءِ زَمْزَمَ، ثُمَّ جَاءَ بِطَسْتٍ مِنْ ذَهَبٍ مُمْتَلِئٍ حِكْمَةً وَإِيمَانًا، فَأَفْرَغَهُ فِي صَدْرِي، ثُمَّ أَطْبَقَهُ، ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِي، فَعَرَجَ بِي إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا، فَلَمَّا جِئْتُ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا، قَالَ جِبْرِيلُ: لِخَازِنِ

(١):عمدة القارى:٦٠\١٤

(٢):عمدة القارى:٦٠\١٤

(٣):شرح كرمانى:٢\٤،عمدة القارى:٣\٤،الكوثر الجارى٢٧\٢،البناية:٤\١٢،الموسوعة الفقهية:٥١\٢٧.

(٤):شرح كرمانى:٢\٤،عمدة القارى:٦٠\١٤،لسان العرب:٣٠٧\٧،تاج العروس:٥\٢٧،مختار الصحاح،ص:٢١٦.

(٥)شرح كرمانى:٢\٤،عمدة القارى:٦٠\١٤،حاشية صحيح البخارى للسهارنفورى:٥٠\١١،تاج العروس:١٧٢\٢٤،مختار الصحاح،ص:٢٦٤.

(٦):كتاب الجهاد،باب دعاء النبى ﷺ الى الاسلام،رقم الحديث:٢٩٤١.

(٧):كتاب التفسير،(باب قل يا اهل الكتاب تعالوا الى كلمة سواء بيننا و بينكم)،رقم الحديث٤٥٥٣.

(٨):صحيح مسلم،كتاب الجهاد والسير،رقم الحديث:٤٦٠٧.

(٩):فتح البارى :٥٠\١١.

السَّمَاءِ افْتَحْ، قَالَ: مَنْ هٰذَا؟ قَالَ هٰذَا جِبْرِيلُ، قَالَ: هَلْ مَعَكَ أَحَدٌ؟ قَالَ: نَعَمْ مَعِي مُحَمَّدٌ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ، فَلَمَّا فَتَحَ عَلَوْنَا السَّمَاءَ الدُّنْيَا، فَإِذَا رَجُلٌ قَاعِدٌ عَلَى يَمِينِهِ أَسْوِدَةٌ، وَعَلَى يَسَارِهِ أَسْوِدَةٌ، إِذَا نَظَرَ قِبَلَ يَمِينِهِ ضَحِكَ، وَإِذَا نَظَرَ قِبَلَ يَسَارِهِ بَكَى، فَقَالَ: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالِابْنِ الصَّالِحِ، قُلْتُ لِجِبْرِيلَ: مَنْ هٰذَا؟ قَالَ: هٰذَا آدَمُ، وَهٰذِهِ الأَسْوِدَةُ عَنْ يَمِينِهِ وَشِمَالِهِ نَسَمُ بَنِيهِ، فَأَهْلُ الْيَمِينِ مِنْهُمْ أَهْلُ الْجَنَّةِ، وَالأَسْوِدَةُ الَّتِي عَنْ شِمَالِهِ أَهْلُ النَّارِ، فَإِذَا نَظَرَ عَنْ يَمِينِهِ ضَحِكَ، وَإِذَا نَظَرَ قِبَلَ شِمَالِهِ بَكَى حَتَّى عَرَجَ بِي إِلَى السَّمَاءِ الثَّانِيَةِ، فَقَالَ لِخَازِنِهَا: افْتَحْ، فَقَالَ لَهُ خَازِنُهَا مِثْلَ مَا قَالَ الأَوَّلُ: فَفَتَحَ -

قَالَ أَنَسٌ: فَذَكَرَ أَنَّهُ [ص:۷۹] وَجَدَ فِي السَّمٰوَاتِ آدَمَ، وَإِدْرِيسَ، وَمُوسَى، وَعِيسَى، وَإِبْرَاهِيمَ صَلَوَاتُ اللّٰهِ عَلَيْهِمْ، وَلَمْ يُثْبِتْ كَيْفَ مَنَازِلُهُمْ غَيْرَ أَنَّهُ ذَكَرَ أَنَّهُ وَجَدَ آدَمَ فِي السَّمَاءِ الدُّنْيَا وَإِبْرَاهِيمَ فِي السَّمَاءِ السَّادِسَةِ، قَالَ أَنَسٌ - فَلَمَّا مَرَّ جِبْرِيلُ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِإِدْرِيسَ قَالَ: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالأَخِ الصَّالِحِ، فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا؟ قَالَ: هٰذَا إِدْرِيسُ، ثُمَّ مَرَرْتُ بِمُوسَى فَقَالَ: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالأَخِ الصَّالِحِ، قُلْتُ: مَنْ هٰذَا؟ قَالَ: هٰذَا مُوسَى، ثُمَّ مَرَرْتُ بِعِيسَى فَقَالَ: مَرْحَبًا بِالأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ، قُلْتُ: مَنْ هٰذَا؟ قَالَ: هٰذَا عِيسَى، ثُمَّ مَرَرْتُ بِإِبْرَاهِيمَ، فَقَالَ: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالِابْنِ الصَّالِحِ، قُلْتُ: مَنْ هٰذَا؟ قَالَ: هٰذَا إِبْرَاهِيمُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: فَأَخْبَرَنِي ابْنُ حَزْمٍ، أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ، وَأَبَا حَبَّةَ الأَنْصَارِيَّ، كَانَا يَقُولَانِ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «ثُمَّ عُرِجَ بِي حَتَّى ظَهَرْتُ لِمُسْتَوًى أَسْمَعُ فِيهِ صَرِيفَ الأَقْلَامِ»، قَالَ ابْنُ حَزْمٍ، وَأَنَسُ بْنُ مَالِكٍ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَفَرَضَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى أُمَّتِي خَمْسِينَ صَلَاةً، فَرَجَعْتُ بِذٰلِكَ، حَتَّى مَرَرْتُ عَلَى مُوسَى، فَقَالَ: مَا فَرَضَ اللّٰهُ لَكَ عَلَى أُمَّتِكَ؟ قُلْتُ: فَرَضَ خَمْسِينَ صَلَاةً، قَالَ: فَارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ، فَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيقُ ذٰلِكَ، فَرَاجَعْتُ، فَوَضَعَ شَطْرَهَا، فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى، قُلْتُ: وَضَعَ شَطْرَهَا، فَقَالَ: رَاجِعْ رَبَّكَ، فَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيقُ، فَرَاجَعْتُ فَوَضَعَ شَطْرَهَا، فَرَجَعْتُ إِلَيْهِ، فَقَالَ: ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ، فَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيقُ ذٰلِكَ، فَرَاجَعْتُهُ، فَقَالَ: هِيَ خَمْسٌ، وَهِيَ خَمْسُونَ، لَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ، فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى، فَقَالَ: رَاجِعْ رَبَّكَ، فَقُلْتُ: اسْتَحْيَيْتُ مِنْ رَبِّي، ثُمَّ انْطَلَقَ بِي، حَتَّى انْتَهَى بِي إِلَى سِدْرَةِ الْمُنْتَهَى، وَغَشِيَهَا أَلْوَانٌ لَا أَدْرِي مَا هِيَ؟ ثُمَّ أُدْخِلْتُ الْجَنَّةَ، فَإِذَا فِيهَا حَبَايِلُ اللُّؤْلُؤِ وَإِذَا تُرَابُهَا الْمِسْكُ" [۱۵۵۵، ۳۱۶۴، وانظر: ۳۰۳۵]

د (باب کیف فرضت الصلاة فی الاسراء) لاندې امام بخاری رحمه الله دوه حدیثونه ذکر کړې دی، په دې کښې ورومبی حدیث ته (حدیث د معراج) وئیلې شي، د کتاب الصلاة لاندې ددې حدیث په تفصیل سره ذکر کولو نه مقصد د مونځ د فرضیت کیفیت بیانول دی، امام بخاری رحمه الله د معراج د واقعې په حقله چرته په تفصیل سره او چرته مختصر په دیارلس ځایونو کښې حدیثونه ذکر کړې دی[1].
په صحیحینو کښې په دې حقله د ټولو نه تفصیلی بیان د حضرت ابوذر[2] حضرت مالك بن صعصعه[3] او حضرت انس بن مالك[4] رضی الله عنه نه روایت کړې شوې دې.
د حضرت انس بن مالك رضی الله عنه نه په دری طریقو سره دا حدیث مبارك روایت کړې شوې دې، په یو طریق کښې (صحیح البخاری، کتاب االتوحید او صحیح مسلم، کتاب الایمان باب الاسراء) اخری راوی هم دې دې، خو ولې په دې طریق کښې ددې خبرې تصریح نشته دې چې دوی په خپله دا حدیث د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دې[5].
په دویم سند (صحیح البخاری، باب ذکر الملائکة، وباب المعراج، او صحیح مسلم، کتاب الایمان باب الاسراء) کښې دا تصریح ده، چې هغوی دا واقعه د مالك ابن صعصعه نه اوریدلې ده[6]، او په دریم سند (صحیح البخاری، کتاب الصلاة، باب کیف فرضت الصلاة فی الاسراء، او کتاب الانبیاء، کښې داخبره ښه ښکاره ده چې هغوی دا واقعه د حضرت ابوذر رضی الله عنه نه واوریدله[7] ددې نه علاوه په تابعینو حضراتو کښې د لویو لویو تابعینو رحمهم الله یو ګڼر شمیر د حضرت انس بن مالك رضی الله عنه نه دا واقعه نقل کړې ده، په کومو کښې چې ثابت البنانی[8]، ابن شهاب زهری[9]، قتاده[10] شریك بن عبد الله ابی

[1] صحیح البخاری، کتاب الحج، باب ما جاء فی زمزم، رقم الحدیث:۱۶۲۶، و فی کتاب احادیث الانبیاء، باب ذکر ادریس علیه السلام رقم الحدیث:۳۳۴۲، و فی کتاب بدء الخلق، باب ذکر الملائکة، رقم الحدیث:۳۲۰۷، و فی کتاب احادیث الانبیاء، باب قوله تعالی (و هل اتک حدیث موسی) رقم الحدیث:۳۳۹۳، و فی باب قوله تعالی (ذکر رحمة ربک عبده زکریا)، رقم الحدیث:۳۴۳۰، و فی کتاب مناقب الانصار، باب المعراج، رقم الحدیث:۳۸۸۷، و فی باب کان النبی ﷺ تنام عینه و لا ینام قلبه، رقم الحدیث:۳۵۷۰، و فی باب حدیث الاسراء، رقم الحدیث:۳۸۸۶، و فی کتاب التفسیر، باب سورة الکوثر، رقم الحدیث: ۴۹۶۴، و فی کتاب الاشربة، باب شرب اللبن، رقم الحدیث:۵۶۱۰، و فی کتاب الرقاق، باب فی الحوض، رقم الحدیث:۶۵۸۱، و فی کتاب التوحید، باب قوله تعالی: (وکلم الله موسی تکلیما) رقم الحدیث:۷۵۱۷.

[2] صحیح البخاری، کتاب الصلاة، باب کیف فرضت الصلاة، رقم الحدیث:۳۴۹

[3] کتاب مناقب الانصار، باب المعراج، رقم الحدیث:۳۸۸۷

[4] کتاب التوحید، باب قوله تعالی (و کلم الله موسی تکلیما) رقم الحدیث ۷۵۱۷.

[5] صحیح البخاری، کتاب التوحید، باب قوله تعالی: (و کلم الله موسی تکلیما) رقم الحدیث:۷۵۱۷، صحیح مسلم، کتاب الایمان، باب الاسراء، رقم الحدیث:۱۶۲

[6] صحیح البخاری، کتاب بدء الخلق، باب ذکر الملائکة، رقم الحدیث:۳۲۰۷، و فی کتاب مناقب الانصار، باب المعراج، رقم الحدیث:۳۸۸۷، و صحیح مسلم، کتاب الایمان، باب الاسراء، رقم الحدیث: ۱۶۴.

[7] صحیح البخاری، کتاب الصلاة، باب کیف فرضت الصلاة، رقم الحدیث:۳۴۹، و فی کتاب احادیث الانبیاء، باب ذکر ادریس علیه السلام، رقم الحدیث:۳۳۴۲، و صحیح مسلم، کتاب الایمان، باب الاسراء، رقم الحدیث:۱۶۳.

[8] صحیح مسلم، کتاب الایمان، باب الاسراء رقم الحدیث:۱۶۲.

[9] سنن الترمذی، کتاب الصلاة، باب ما جاء کم فرض الله علی عباده الصلوٰت، رقم الحدیث:۲۱۳

[10] سنن النسائی، کتاب الصلاة، باب فرض الصلاة، رقم الحدیث:۴۴۹.

نمر([1]) شامل دى،په دوى كښې د ټولو نه زيات مستند بيان د حضرت ثابت البناني دې.او د شريك بن عبدالله په روايت كښې په ګڼرو ځايونو كښې د جمهورو په خلاف خبرې دى،د كومې د وجې نه چې امام مسلم رحمه الله په صحيح مسلم كښې،په باب الاسراء كښې په اشارة ذكر كولو سره د دوى حديث پرېښې دې،غرض د خبرې دادې چې د ټولو راويانو په سياق او سباق كښې څۀ نا څۀ خبرې داسې دى كومې چې په نورو روايتونو كښې نشته دې([2]).

## تراجم رجال

ددې حديث په روايت كښې شپږ سنده دى:

**يحيى بن بُكير:** د دوى پوره نوم(ابوبكر يا يحيى بن عبدالله بن بكير القرشي المخزومي المصري)دې،د دوى حالات په تفصيل سره په(باب بدء الوحى)كښې په دريم حديث مبارك كښې تير شوې دى([3]).

**الليث:** دا(امام ابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمى)دې د دوى حالات هم په(كتاب بدء الوحى)كښې په دريم حديث كښې تير شوې دى([4]).

**يونس:** دا(يونس بن يزيد بن ابى النجاد ايلى)دې،د دوى مختصره ترجمه په(كتاب بدء الوحى)كښې د پنځم حديث د لاندې او تفصيلى حالات ئې د(كتاب العلم)په باب(من يرد الله به خيرا يفقهه فى الدين)كښې تير شوې دى.([5]).

**ابن شهاب:** د دوى پوره نوم(ابوبكر محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب بن عبدالله بن زهرة بن كلاب بن مرة بن كعب بن لؤي الزهري المدنى)دې،د دوى حالات د(بدء الوحى)په دريم حديث كښې تير شوې دى([6]).

**انس بن مالك:** دا مشهور صحابى(انس بن مالك بن نضر بن ضمضم بن زيد خزرجى انصاري رضي الله عنه)دې،د دوى تفصيلى حالات د(كتاب الايمان)په ورومبى حديث كښې تير شوې دى.([7])

**ابوذر:** د دوى نوم د مشهور قول مطابق(جندب بن جنادة رضي الله عنه)دې،مشهور صحابى دې،د دوى تفصيلى حالات په(كتاب الايمان،باب المعاصى من امر الجاهلية.....الخ)كښې تير شوې دى.([8])

**د معراج د حديث نقل كوونكو صحابۀ كرامو شمير:** علامه قسطلانى رحمه الله په(المواهب اللدنيه)كښې د شپږويشت صحابۀ كرامو رضي الله عنهم نومونه ذكر كړې دى،او د رسول الله ﷺ د هغه صحابۀ كرامو رضي الله عنهم نه چې چا دا حديث نقل كړې دې د هغوى ذكر ئې هم كړې دې([1])بيا علامه زرقانى رحمه الله په شرح

---

([1]):صحيح البخاري،كتاب التوحيد،رقم الحديث:٧٥١٧.

([2]):فتح البارى:٥٩٦/١١،عمدة القارى:٦١/١٤، ٦٢،سبل الهدى والرشاد،الباب السابع فى اسماء الصحابة الذين رووا القصة:٧٦/٣،نسيم الرياض فى شرح الشفاء،القسم الاول فى تعظيم العلى الاعلى لقدر النبى ﷺ:١١٠/٣،شرح العلامة الزرقاني،المقصد الخامس:٢٥/٨، ٢٦.

([3]):او ګورئ كشف البارى:٣٢٣/١١

([4]):او ګورئ كشف البارى:٣٢٤/١١

([5]):كشف البارى:٤٦٣/١١، ٢٨٢/٣.

([6]):كشف البارى:٣٢٦/١١

([7]):كشف البارى:٤/٢

([8]):كشف البارى:٢٣٨/٢

المواهب كښې د نورلس نورو صحابهٔ كرامو ؓ د نومونو اضافه په كښې كړې ده، په دې شان سره دا ټول پنځه څلويښت صحابهٔ كرام ؓ شمارلې شي، كوم چې د معراج د قصې مختصراً يا په تفصيل سره نقل كوونكى دى، د دوى مبارك نومونه لاندې ذكر كولې شي:

① حضرت عمر بن خطاب ؓ (مسند احمد و ابن مردويه)② حضرت علي ؓ (مسند احمد و ابن مردويه)③ حضرت عبدالله بن مسعود ؓ (بخاري، مسلم، نسائي، احمد، بزار، ابن مردويه، ابويعلى ابونعيم)④ حضرت ابن عمر ؓ (ابوداؤد، بيهقي)⑤ حضرت عمرو بن العاص ؓ (ابن سعد، ابن عساكر)⑥ حضرت ابن عباس ؓ (مسلم، ابن ماجه، مسنداحمد، بيهقي، طبراني، بزار، ابن عرفه، ابويعلى)⑦ حضرت حذيفه بن اليمان ؓ (ابن سعد، ابن عساكر)⑧ حضرت عائشه ؓ (بيهقي، ابن مردويه، حاكم)⑨ حضرت ام سلمى ؓ (طبراني، ابويعلى، ابن عساكر، ابن اسحاق)⑩ حضرت ابو سعيد خدرى ؓ (بيهقي، ابن ابى حاتم، ابن جرير)⑪ حضرت ابو سفيان ؓ (دلائل ابى نعيم)⑫ حضرت ابو هريرة ؓ (بخاري، مسلم، احمد، ابن ماجه، ابن مردويه، طبراني، ابن سعد، سعيد بن منصور، ابن جرير، ابن ابى حاتم، بيهقي، حاكم)⑬ حضرت ابو ذر ؓ (بخاري، مسلم)⑭ حضرت مالك بن صعصعه ؓ (بخاري، مسلم، احمد، بيهقي، ابن جرير)⑮ حضرت ابوامامه ؓ (ابن مردويه)⑯ حضرت ابو ايوب انصارى ؓ (بخاري، مسلم فى اثناء حديث ابى ذر ؓ)⑰ حضرت ابى بن كعب ؓ (ابن مردويه)⑱ حضرت ابن بن مالك ؓ (بخاري، مسلم، احمد، ابن مردويه، نسائي، ابن ابى حاتم، ابن جرير، بيهقي، طبراني، ابن سعد، بزار)⑲ حضرت جابر ؓ (بخاري، مسلم، طبراني ابن مردويه)⑳ حضرت بريده ؓ (ترمذي، حاكم)㉑ حضرت سمرة بن جندب ؓ (ابن مردويه)㉒ حضرت شداد بن اوس ؓ (بزار، طبراني، بيهقي)㉓ حضرت صهيب ؓ (طبراني)㉔ حضرت ابو حبّه بدرى ؓ (بزار، طبراني، بيهقي)㉕ حضرت اسماء بنت ابى بكر ؓ (ابن مردويه)㉖ حضرت ام هانى ؓ (طبراني)[2]㉗ حضرت سهيل بن سعد ؓ (ابن عساكر)㉘ حضرت عبدالله بن اسعد بن زراره ؓ (بزار، بغوى، ابن قانع)㉙ حضرت ابوالحمراء ؓ (طبراني)㉚ حضرت ابو ليلى انصارى ؓ (طبراني، ابن مردويه)㉛ حضرت عبدالرحمن بن قرط ؓ (سعيد بن منصور)㉜ حضرت ابوبكر صديق ؓ (ابن وحيه)㉝ حضرت عبدالرحمن بن عابس ؓ (ابن دحيه)㉞ حضرت ابو سلمه ؓ (ابن دحيه)㉟ حضرت عياض ؓ (ابن دحيه)㊱ حضرت عباس بن عبدالمطلب ؓ (ابو حفص نسفي)㊲ حضرت عثمان بن عفان ؓ (ابو حفص نسفي)㊳ حضرت ابوالدرداء ؓ (ابو حفص نسفي)㊴ حضرت ابوسلمى راعى النبى ﷺ (ابو حفص نسفي)㊵ حضرت ام كلثوم ؓ بنت النبى ﷺ (ابو حفص نسفي)㊶ حضرت بلال بن حمامه ؓ (ابو حفص نسفي)㊷ حضرت بلال بن اسعد ؓ (ابو حفص نسفي)㊸ حضرت ابن زبير ؓ (ابو حفص نسفي)㊹ حضرت ابن ابى اوفى ؓ (ابو حفص نسفي)(۴۵) حضرت اسامه بن زيد ؓ (ابو حفص نسفي)[3].

---

(1): المواهب اللدنيه: ۲\۳۴۵، ۳۴۶

(2): ددې نه پس چې كوم نومونه دى دا په شرح المواهب كښې دى.

(3) شرح العلامة الزرقاني، المقصدالخامس فى تخصيصه عليه الصلوة والسلام بخصائص المعراج والاسراء: ۸\۲۵ـ ۲۷.

دا هغه صحابهٔ کرام ﷺ دي د چا نه چې قصه د معراج روايت کړې شوې ده، د دې ټولو په تفصيل سره ذکر امام يوسف شامي رحمه الله هم کړې دې، خو ولې هغوی د اسامه بن زيد رضي الله عنه په حقله ليکلې دی، چې د دوی ذکر حضرت ابو حفص النسفي رحمه الله په خپل تفسير کښې کړې ده، خو ولې ما ته د دوی حديث د لټون نه پس هم ترلاسه نهٔ شو (۱).

علامه ابن کثير رحمه الله په (تفسير ابن کثير) کښې د شپاړس راويانو په مختلفو سندونو سره احاديث راجمع کړي دی، په کومو کښې چې صحيح، حسن، او ضعيف هر قسمه احاديث شامل دی. (۲)

**كَانَ أَبُو ذَرٍّ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ: فُرِجَ عَنْ سَقْفِ بَيْتِي وَأَنَا بِمَكَّةَ، فَنَزَلَ جِبْرِيلُ**

(حضرت ابوذر رضي الله عنه به بيانول چې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيل: چې (يوه شپه) زما د کور چت پرانستې شو. په هغه وخت کښې زهٔ په مکه کښې ووم، بيا (د هغه پرانستې شوی چت نه) حضرت جبرئيل عليه السلام راکوز شو)

(فرج) د باب ضرب يضربُ نه د فعل ماضي مجهول صيغه ده، د کوم مطلب چې (شلول). سورې کول دی، مطلب به اوس داسې شی چې (په چت کښې غار اوکړې شو) هم دې سره مناسب يو بل لفظ (فُتِقَ) په يو روايت کښې موجود دې.

① **د حضرت جبرائيل عليه السلام د چت په لاره باندې د راتلو حکمت:** دلته دا يو سوال راپيدا کيږی، چې حضرت جبرائيل عليه السلام په عامه لاره د کور په دروازه ولې راداخل نهٔ شولو؟ لکه څنګه چې د الله ﷻ ارشاد مبارک دې ﴿وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا﴾ (البقرة:۱۸۹)

نو د دې په جواب کښې د علماء کرامو له اړخه مختلف حکمتونه بيان کړې شوې دی، چې يو د هغه حکمتونو نه دا دې، چې په دې لاره باندې په راداخليدلو سره په دې خبره باندې خبرداري ورکړې شوې دې چې د کراماتو ښکاره کيدل څه وختی او اختياری څيز نهٔ دې، بلکه دا کرامات په کوم وخت او کوم ځائې کښې هم ظاهريدې شی.

② دويم حکمت په کښې دا بيان کړې شوې دې: کوټې ته په دې شان سره داخليدل هغه خبر لره په زړهٔ کښې نور هم مضبوطونکې وو، کوم چې هغه فرښتو راوړې وو، هغه داسې چې څنګه د دغه فرښتو په دې شان سره داخليدل غير معمولی وو دغه شان هغه خبر به هم غير معمولی وی کوم چې هغوی خان سره راوړې وو.

③ يو دريم حکمت په کښې دا بيان کړې شوې دې، چې عامه لاره پريښودل او په چت شلولو سره راتلل د شق صدر (د سينې شلولو) واقعې دپاره تمهيد وو، يعنی څنګه چې يو کار د عادت خلاف راپيښ شو دغه شان يو بل کار هم د عادت خلاف راپيښيدونکې دې، نو لکه څنګه چې چت اوشليدلو او بيا سمدستی يو ځائې کيدلو سره په خپل اصلی حالت باندې جوړ شو. هم دغه شان په دې کښې دا خبره ده چې ستاسو ﷺ زړهٔ سره به هم دا واقعه راپيښيږی، لکه چې د چت شليدل او بيا واپس سميدلو کښې رسول الله ﷺ دپاره د تسلئ خبره وه.

④ دا وجې هم ليکلې شوې دی: چې د جبرائيل عليه السلام په يو ځل او نيغه په نيغه د اسمان نه رسول الله ﷺ

(۱): سبل الهدى والرشاد، الباب السابع فى اسماء الصحابة الذين رووا القصة عن النبى ﷺ ۳\۷۶، ۷۷

(۲): تفسير بن كثير، سورة الاسراء ۴\۸۲ ------ ۱۱۳

ته رسيدل دي دپاره وو چې په بله لاره باندې راتلو کښې چرته په ملاقات،او په راز او نياز کښې ناوخته نۀ شی،او دې اړخ ته په کښې هم اشاره وه چې رسول الله ﷺ چې اسمان ته بللې شوې وو هغه بې د وخت د ټاکنې نه دی،او دې اړخ ته په کښې هم اشاره ده چې رسول الله ﷺ به هم په دې لاره باندې اسمان ته بوتلې شی،او دا هم ونيلې شوې دی چې په دې سره رسول الله ﷺ ته اشاره اوشی چې ما سره چرته يو د معمول نه او د عادت نه خلاف کار راپيښيدونکې دې.

⑤يوه بله وجه دا هم مخې ته راځی چې ددې واقعې نه اشاره ترلاسه کيږی چې اهم کارونه بنۀ په استقامت سره او بې د تاخير نه کول پکار دی او ددې کارونو سر ته د رسولو دپاره د ټولو نه نزدې لاره اختيارول پکار دی.([1])

**د معراج په وخت کښې رسول الله ﷺ چرته وو؟** په دې ځائې کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې(زما دکور چت اوشليدلو)يعنی دکور نسبت ئې خپل ځان اړخ ته اوکړو،حال داچې دنورو بعضو روايتونو مطابق دا کور د رسول الله ﷺ نۀ وو،بلکه د(ام هانی رضي الله عنها)کور وو،نو بيا د چا بل چا کور ئې ولې خپل ځان ته منسوب کړو؟نو ددې جواب دا ورکړې شوې دې چې داسې ئې د معمولی شان مناسبت د وجې نه فرمائيلې دی چې دغه وخت کښې رسول الله ﷺ د خپل قيام ځائې د خپل ځان اړخ ته منسوب کړو،او داسې په کلام د عربو کښې اکثر کيږی،بله دا چې په دې موضوع باندې تفصيلی خبرې وړاندې تيرې شوې ([2]).

**رسول الله ﷺ له راغلې يوه فرښته وه او که نه ډيرې وې؟** په دې حديث کښې دی چې(حضرت جبرائيل عليه السلام راغلو)او د صحيح مسلم په يو روايت کښې دی([3])چې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو:(أتيت فانطلقوا بي إلى زمزم)چې فرښتو زۀ د زمزم اړخ ته بوتلم،يعنی د يوې نه زيات فرښتې وې،او هم د صحيح مسلم د يو روايت مطابق(درې نفره)رسول الله ﷺ له راغلل.([4])

او د صحيح بخاری په يو روايت کښې دی چې([5])د اسراء په شپه رسول الله ﷺ له د وحې نه وړاندې درې نفره راغلل،او د ټولو رسول الله ﷺ سره پيژندګلنه اوشوه،بيا هغوی لاړل،ددې نه پس هغوی بيا په يوه شپه کښې راغلل او د معراج ټول کارونه حضرت جبرائيل عليه السلام ته اوسپارلې شو لکه څنګه چې(فتولاه جبريل ثم عرج به إلى السماء)نه دا اشاره کيږی،لهذا هم ددې خبرې نه ددې خبرې هم تعيين اوشی چې په شروع کښې دې رسول الله ﷺ له راتلونکې فرښتې چې هر څومره ولې نۀ وی ولې په آخره کښې صرف حضرت جبرائيل عليه السلام پاتې شوې وو،او په ذکر کړې شوی د بخاری شريف په حديث کښې هم ددې آخری حالت يعنی د جبرائيل عليه السلام د راتلو ذکر دې([6]).

---

([1]):فتح البارى:۱۱\۵۹۷،عمدة القارى:٤\٦٢،سبل الهدى والرشاد،الباب التاسع فى تنبيهات على بعض فوائد تتعلق بقصة المعراج:۳\۹٦،الكنز المتوارى:٤\۷،شرح العلامة الزرقانى:۸\٤٢

([2]):فتح البارى:۷\۲۵٦،عمدة القارى:۱۷\۳۰،نسيم الرياض على شرح شفاء القاضى العياض:۳\۱۱۰،شرح المواهب:۱۷\٤

([3]):صحيح مسلم،كتاب الايمان،باب الاسراء،رقم الحديث:۱٦۲

([4]):صحيح مسلم،كتاب الايمان،باب الاسراء،رقم الحديث:۱٦٤

([5]):صحيح البخارى،كتاب المناقب،باب كان النبى ﷺ تنام عينه و لا ينام قلبه،رقم الحديث:۳۵۷۰

([6]):عمدة القارى:۱٦\۱٦۲،الكوثر الجارى:۱۲\۲۸

فَفَرَجَ صَدْرِي:(بيا هغوى زما سينه اوسيرله)

(فَرَجَ)د سيرلو په معنى سره دې،ددې ځائې نه د رسول الله ﷺ د سينې د سيرولو بيان دې،په دې ځائې کښې خو صرف هم دومره ذکر کړې شوې دی چې جبرائيل عليه السلام زما سينه اوسيرله،خو ولې په بعضو نورو روايتونو کښې ددې خبرې هم تفصيل شته دې چې د رسول الله ﷺ سينه مبارکه د کوم ځائې نه کوم ځائې پورې اوسيرلې شوه،لهذا د صحيح البخارى په کتاب بدء الخلق کښې د حضرت مالك بن صعصعه په حديث کښې دى[1](فَشُقَّ مِنَ النَّحْرِ إِلَى مَرَاقِ البَطْنِ)چې (د رسول الله ﷺ سينه مبارکه د پورته نه واخله تر د خيټې مبارك د لاندې پورې اوسيرلې شوه).

هم دا الفاظ د صحيح مسلم په يو روايت کښې هم دى[2]:

هم د مسلم شريف په يو بل روايت کښې د(فَشُرِحَ صدري الى كذا وكذا.....إلى أسفل بطنه)الفاظ دى،[3]مطلب دادې چې(زماسينه ددې ځائې نه دې ځائې پورې(اشاره کولو سره ئې اوښودل)اوسيرلې شوه.،د راوى وينا ده چې رسول الله ﷺ )د خيټې نه د لاندې حصې پورې ارخ ته اشاره اوفرمائيله

په يو روايت کښې دا الفاظ دى:(فَشُقَّ ما بين هذه الى هذه.....قال من ثُغره الى شعرته)وسمعته يقول من قَصّه الى شعرته)[4]يعنى رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې(بيا جبرائيل عليه السلام ددې ځائې نه ددې ځائې پورې حصه اوسيرله،يعنى د سينې نه پورته راوتلى هډوکى نه واخله د نامهٔ نه لاندې د وېښتو پورې)بله دا چې د(ثغره)په ځائې د(قَصّه)الفاظ هم استعمال کړې شوې دې،د(قَصّه)مطلب(د سينې پورتنۍ حصه) ده په دې ځائې کښې علامه کرمانى رحمه الله دا ليکلې دى چې په بعضو ځايونو کښې د(الى شعرته)په ځائې(إلى الشنه)الفاظ موندې شى،(شنه) د نوم،او د نوم نه لاندې د سنتو وېښتو د شروع کيدلو تر مينځه ځائې ته وائى[5].

غرض دا چې ددې تولو مختلفو وارد شوو الفاظو نه مراد دادې چې د رسول الله ﷺ د سينه مبارکه د شروع نه واخله د خيټې نه لاندې کوم ځائې کښې چې د نامهٔ نه لاندې وېښته وى دغه ځائې پورې سيرلې شوې وه[6].

**د سينې مبارکې سيرل څو ځله شوې دى؟** رسول الله ﷺ ته د سينې د سيريدلو واقعه د راجح قول مطابق څلور ځله راپيښه شوې ده.

په وړومبى ځل ورته په ماشوموالى کښې چې رسول الله ﷺ د حليمې سعديې په پالنه کښې وو راپيښه شوې وه،په دويم ځل ورسره دا واقعه د لسو کالو په عمر کښې راپيښه شوې وه.په دريم ځل ورته د پيغمبرۍ ورکولو په وخت کښې راپيښه شوې وه،او په څلورم ځل ورته په وخت د معراج

---

([1]):صحيح البخارى،كتاب بدء الخلق،باب ذكر الملائكة،رقم الحديث:۳۲۰۷

([2]):صحيح مسلم،كتاب الايمان،باب الاسراء،رقم الحديث:١٦٤

([3]):صحيح مسلم،كتاب الايمان،باب الاسراء،رقم الحديث:١٦٣

([4]):صحيح البخارى،كتاب مناقب الانصار،رقم الحديث:۳۸۸۷

([5]):شرح الكرمانى،كتاب مناقب الانصار:١٠٠١١٥

([6]):عمدة القارى،باب المعراج:۳۰١١٧،فتح البارى:۲۵۶١٧،مرقاة المفاتيح:۵٤٩١٨،التعليق الصبيح:١٣٩١٨،شرح العلامة الزرقانى:٤٨١٨،سبل الهدى والرشاد:۸۸١٢ ۸۰١٣

کښې راپیښه شوې وه،څلور ځله د سینې مبارکې د سیریدلو ثبوت په صحیحو او معتبرو احادیثو کښې ترلاسه کیږی،بعضو په کښې پنځم ځل هم د سینې مبارکې سیریدل ثابت کړې دی.د صحیح روایتونو او د جمهورو علماؤ محدثینو په نیز په پنځم ځل د سینې مبارک سیریدل(کوم چې د شلو کالو په عمر کښې وئیلې شی)ثابت او معتبر نه دی[1].

**په وړومبی ځل د سینې مبارکې سیریدل:** په وړومبی ځل چې د سینې سیریدلو کومه واقعه راپیښه شوې وه دهغې تفصیل په ډیرو کتابونو کښې په مختلفو طریقو سره ذکر کړې شوې دې په کومو کښې چې د صحیح احادیثو سره سره څۀ ضعیف احادیث هم دی،خو ولې د دغه ضعیفو احادیثو د روایتونو نه ددې واقعې په صحیح کیدلو باندې څه اثر نه غورځیږی،بلکه په ګڼړو طریقو سره ددې د روایت کولو د وجې نه ددې په ضعف کښې کمې راځی،بله دا چې دا ضعیف احادیث.د صحیح احادیثو مرسته کوونکې جوړیدلوسره ددې واقعې د صحیح اویقینی کیدلودپاره ذریعه جوړه شی ددې واقعې مختصر تفصیل لاندې ذکر کولې شی:

(کوم وخت کښې چې رسول الله ﷺ د حضرت حلیمې سعدیې رضي الله عنها په پالنه کښې وو،نو یو ځلې رسول الله ﷺ په ځنګل کښې خپلو همزولو هلکانو سره لوبې کولې،نو حضرت جبرائیل علیه السلام رسول الله ﷺ له راغلو،دوی نې اونیول او په زمکه باندې نې سملول،بیا نې د رسول الله ﷺ د زړۀ مقام اوسیرلو او زړۀ مبارک نې ورله بهر راویستلو،او بیا نې هغه زړۀ اوسیرلو بیا نې د هغه زړۀ نه د وینې څۀ منجمده شوې حصه اوویستله،او اونې فرمائیل دا په تاسو کښې د شیطان حصه ده،او هغه نې اوغورځوله)بیا نې زړۀ مبارک ورله په آب زم زم سره اووینځلو کوم آب زم زم چې ورسره په یو طشت(لوبنی)کښې وو،بیا نې د هغې نه پس واپس ورله زړۀ مبارک په خپل ځائې باندې کینودو او په سینه مبارکه نې ورله ټانکې اولګولې،دومره وخت کښې(رسول الله ﷺ سره لوبې کوونکې) ماشومان په منډه منډه د رسول الله ﷺ رضاعی مور له اورسیدل،او ورته نې اووئیل چې محمد ﷺ قتل کړې شو،هغه(او د هغې خاوند یعنی د رسول الله ﷺ رضاعی پلار)په منډه منډه راغلل چې رسول الله ﷺ له راورسیدل نو هغه وخت(معامله واپس خپل اصلی حالت له راغلې وه او د(رسول الله ﷺ مبارک رنګ الوتې وو.)

حضرت انس رضي الله عنه فرمائی:(ما(په خپله)د رسول الله ﷺ په سینه مبارکه باندې د ګنډلو شوو(د ټانکو لګیدلو)نښې لیدلې دی.)

دا حدیث مبارک په صحیح مسلم[2]،او په مسند احمد بن حنبل کښې ذکر کړې شوې دې[3]،ددې نه علاوه په وړومبی ځل باندې د سینې مبارکې د سیریدلو په حقله په ګڼړو طریقو سره روایتونه په المستدرک علی الصحیحین،دلائل النبوة لابی نعیم او په اتحاف الخیرة المهرة للبوصیری کښې ذکر کړې شوې دی[4]

---

([1]):فتح الباری:۵۹۷\۱۱، ۲۵۶\۷ عمدة القاری:۶۲۱\۴، ۳۰\۱۷، فتح الباری لابن رجب:۷\۲، شرح العلامة الزرقانی : ۱۱--۲۸۲ ۲۸۹، ۴۹\۸، سبل الهدی والرشاد:۸۶\۲--۸۲ نسیم الریاض:۷۳\۳، التعلیق الصبیح:۱۳۹\۷، الکنز المتواری:۷\۴.

([2]):صحیح مسلم،کتاب الایمان،باب الاسراء،رقم الحدیث:۱۶۲

([3]):مسند احمد بن حنبل،رقم الحدیث:۱۲۵۰۶، ۴۸۹\۱۹

([4]):المستدرک علی الصحیحین،تفسیر(الم نشرح):۵۲۸\۲،دلائل النبوة لابی نعیم،رقم الحدیث:۱۶۸، ۲۲۱\۱، اتحاف الخیرة المهرة للبوصیری،کتاب علامات النبوة:۱۷\۷

**په دويم ځل د سينې مبارکې سيريدل:** هر كله چې رسول الله ﷺ د لسو كالو شو نو په دويم ځل رسول الله ﷺ سره د زړه د سيريدلو اود وينځلو واقعه راپيښه شوه، د كومې خلاصه چې څه په دې انداز ده.

(حضرت ابوهريرة رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوكړه چې اې د الله رسوله! د نبوت په كارونو كښې د ټولو نه وړومبې تاسو سره كومه واقعه راپيښه شوه؟ نو رسول الله ﷺ ورته په جواب كښې اوفرمائيل چې يو ځل كله چې زۀ د لسو كالو ووم زۀ په يو صحرا كښې روان ووم چې ناګهانه ما د خپل سر د پاسه (په فضا كښې) دوه كسان اوليدل، په هغوى كښې يو د بل نه پښتنه كوله چې هغه هم دادې؟ نو دويم ورله جواب وركړو چې آو! نو هغه دواړو زۀ اونيولم، په دې حال كښې چې ما د هغوى نيول محسوس هم نه، بيا په كښې يو خپل ملګرى ته اووئيل چې دې سملوه. هغۀ زۀ بې د څۀ تكليف نه سملولم، بيا په هغوى كښې يو خپل ملګرى ته اووئيل چې ددۀ سينه اوسيره. نو هغۀ هم داسې اوكړل، ما د خپلې سينې نه نۀ وينه په وتلو اوليدله او نۀ مې د سيريدلو درد محسوس كړو، بيا يو خپل ملګرى ته اووئيل چې ددۀ زړۀ اوسيره او ددې نه كينه او حسد اوباسه، نو هغۀ د چكې شوې وينې په شان څه راويستل او اونې غورځول، بيا ورته هغۀ اووئيل چې په دې كښې نرمى او رحم واچوه نو هغۀ د سپينو زرو په مثل څه څيز زما زړۀ كښې واچوو، بيا ئې د پوړرو په شان څه څيز راويستلو او په زخم ئې اودوړول (نو هغه زخم واپس په خپل اصلى حالت كښې شو)

دا واقعه په دلائل النبوة لابى نعيم كښې[1] او په مسند احمد بن حنبل كښې[2] او په نورو ګڼرو كتابونو كښې نقل كړې شوې ده[3].

**په دريم ځل د سينې مبارک سيريدل:** د نبوت په شروع كښې د رسول الله ﷺ سره د سينې مبارك د سيريدلو واقعه راپيښه شوله، د كومې مختصر تفصيل چې لاندې دحضرت عائشى رضي الله عنها په ژبه وړاندې كولې شى:

(چې رسول الله ﷺ او حضرت خديجې رضي الله عنها يوه مياشت د اعتكاف كولو منخته اوكړه. (په اعتكاف كښې) يوه شپه رسول الله ﷺ بهر تشريف يوړو نو رسول الله د (السلام عليك) اواز واوريدلو. (رسول الله ﷺ فرمائى) ما وئيل جوړ دا چرته د پيرى آواز دې، نو زۀ زر زر تلو سره حضرت خديجه رضي الله عنها له لاړم، هغوى پښتنه اوكړه چې تاسو ﷺ سره څه واقعه راپيښه شوه؟ رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چې (د يو غيبى آوازنه) سلام مې واوريدلو، نوهغوى اووئيل چې (دويريدلو خبره نۀ ده د سلام (اواز په اوريدلو) كښې هم خير وى، بيا رسول الله ﷺ په دويم ځل بهر اووتلو نو سمدستى ئې حضرت جبرائيل عليه السلام په دې حالت كښې اوليدلو، چې هغوى نمر سره نزدې وو، د هغوى يو وزر د مشرق فضاء او بل وزر ئې د مغرب فضا ډكه كړې وه، ما د ويرې نه منډه كړه نو ناګهانه هغۀ د نمر نه اخوا شو او (زما او زما د كور د ور ترمينځه شو، هغۀ ما سره خبرې اترې شروع كړې، تر دې چې زۀ هغوى سره بلد شوم، بيا هغوى زما نه د څۀ خبرې وعده واخستله، په دې دوران كښې ناوخته شو، ما د واپس كيدلو اراده كړې وه چې حضرت جبرائيل عليه السلام راكوز شو اوما له نزدې راغلو، اوحضرت ميكائيل عليه السلام هم د زمكې اوداسمان ترمينځه لاولاړ وو، بيا حضرت جبرائيل عليه السلام زۀ اونيولم اوستونى ستغ ئې سملولم

---

([1]): دلائل النبوة لابى نعيم، رقم الحديث: ۱۶۶، ۱۱\۲۱۹

([2]): مسند احمد بن حنبل، رقم الحديث: ۲۱۲۶۱، ۲۵\۱۸۱.

([3]): الاحاديث المختارة للمقدسى، رقم الحديث: ۱۲۶٤، ٤\۳۹۱

، او زما د سينې په سيرولو سره ئې زما د زړۀ نه هغه څۀ راويستل د کومې ويستل چې الله پاک غوښتل،بيا هغوی زما زړۀ په آب زم زم سره اووينځلو،بيا ئې هغۀ زړۀ واپس د هغه په ځائې باندې کيښودلو او سينه ئې راله بنده کړه،او زما په شا باندې ئې يو مهر(د نبوت)اولګولو،تر دې چې ما د هغې اثر په خپل زړۀ باندې محسوس کړو)[1]

**په څلورم ځل د سينې مبارکې سيريدل:** هر کله چې رسول الله ﷺ معراج له بوتللې شو،نو ددې سفر په شروع کښې(په څلورم ځل)د رسول الله ﷺ زړۀ مبارک راوويستلې شو،او په آب زم زم سره اووينځلې شو،ددې ځل د سينې مبارک د سيريدلو تفصيل(کوم چې وړاندې ذکر کړې شوې دی)د احاديثو مبارکو په ډيرو کتابونو کښې ترلاسه کيږی،په صحيحينو کښې ګڼړ روايتونه په مختلفو طريقوسره په څۀ مختلفو الفاظو سره ذکر کړې شوې دی،د کومو ډير فائده مند مضمونونه چې وړاندې هم ذکر کولې شی[2].

**د سينې مبارکې د سيريدلو حکمت:** د ماشوم والی په زمانه کښې چې د رسول الله ﷺ سينه مبارکه اوسيرلې شوه نودهغې حکمت دا بيان کړې شوې دې،چې د رسول الله ﷺ په زړۀ مبارک کښې چې کومه د معصيت ماده وه،هغه ترې نه اوويستلې شوه،او داسې ئې دې دپاره اوکړل چې رسول الله ﷺ په هر اعتبار سره د شيطان د اثر نه بچ شي.

او په دويم ځل باندې د لسو کالو په عمر کښې د سينې مبارکې په سيرلو سره د رسول الله ﷺ د زړۀ مبارک د وينځلوسره مقصد د رسول الله ﷺ د زړۀ نه د لهو او لعب ماده ويستل وو،ځکه چې دا ماده د لهو او لعب د الله ﷻ د ذات نه انسان غافله کوی.

په دريم ځل باندې د پيغمبرئ د ورکړې نه وړاندې د سينې مبارک سيرل دې دپاره اوکړې شو چې د رسول الله ﷺ زړۀ مبارک د وحی د اسرارو او د برکاتو او د الهی علومو بار برداشت کړې شی.

او په څلورم ځل باندې د معراج د واقعې نه وړاندې د رسول الله ﷺ زړۀ مبارک د سينې مبارکې نه په راويستلو سره دې دپاره اووينځلې شو،چې د رسول الله ﷺ زړۀ مبارک د عالم ملکوت سيل،د تجليات الهيه او د ربانی نښنو مشاهده او د الله ﷻ سره د مناجاتو او د هغه سره د خبرو اترو کيدلو صلاحيت حاصل کړې شی.

بعضې علماؤ دا نکته بيان کړې ده چې هر کله بيت الله شريف ته د داخليدلونه وړاندې غسل سنت ګرځولې شوې دې،نو بيا هر کله چې د الله ﷻ په دربار کښې حاضری کيږی نو ستا بيا ددې په حقله څۀ خيال دې؟او بيا حرم شريف او په دې کښې داخليدل خو ظاهر د کائنات دې،لهذا ددې دپاره د ظاهری جسم غسل مقرر کړې شو،او د الله ﷻ دربار ته حاضريدل باطن د کائنات ته حاضری ده ددې دپاره د جسم د باطن (د زړۀ مبارک)غسل مقرر کړې شو،والله اعلم بحقيقة حاله،غرض د خبرې دا چې د هر ځل د سينې د سيرولو حکمت بيل بيل وو،او مشترکه مقصد ئې دا وو چې د رسول الله ﷺ د پاک زړۀ نورانيت او پاکوالې انتهاء ته اورسی[3].

---

([1]):دلائل النبوة لابی نعيم،رقم الحديث:۱۶۳، ۲۱۶\۱۱، مسند ابی داود الطيالسی،رقم الحديث:۱۶٤۳، ۱۳۵\۱۳

([2]):صحيح البخاری،كتاب المناقب،باب كان النبی ﷺ تنام عينه و لا ينام قلبه،رقم الحديث:۳۵۷۰، و فی كتاب بدء الخلق تحت باب ذكر الملائكة،رقم الحديث:۳۲۰۷،صحيح مسلم،كتاب الايمان،باب الاسراء،رقم الحديث:۱۶۲، ۱٦٤

([3]):فتح الباری:۵۹۷\۱۱، ۲۵۷\۷، عمدة القاری:٤\٦٤، ۳۰\۱۱۷، ارشاد الساری:۵\۱۲، سبل الهدی والرشاد:۹۱\۱۲، ۹۲، شرح العلامة الزرقانی:۲۸۹\۱۱، ٤۹\۸، مرقاة المفاتيح:۵٤۹\۸.

**ايا د(سيني مباركې سيرل)ضروري وو؟** كنړ كرته د سينې مباركې په سيرلو سره د رسول الله ﷺ زړه مبارك اووينځلې شو او څۀ حصه(د كومې نه چې د شيطان په حصې سره تعبير كولې شي)ترې نه بيله هم كړې شوه،نو دلته دا سوال پيدا كيږي،چې الله ﷻ خو په دې خبره باندې قادر وو چې د رسول الله ﷺ زړۀ مبارك نۀ راويستلې كيدې بلكه ددې نه بغير ئې د رسول الله ﷺ زړۀ مبارك د ايمان او د حكمت نه ډك كړې وې نو بيا ذاسې ئې ولې اونۀ كړل؟او بيا بيا د رسول الله ﷺ سينه مباركه ولې اوسيرلې شوه؟

ددې په جواب كښې الشيخ ابو محمد بن ابى جمرة رحمه الله فرمائى چې اګرچې الله ﷻ په دې باندې قادر وو خو ولې په دې كښې حكمت دا وو چې د رسول الله ﷺ د يقين په قوت كښې زيادت اوشي،څكه چې كله رسول الله ﷺ خپله خيټه مباركه په سيريدلو باندې اوليدله او ددې سيريدلو نه ئې څۀ اثر دوئ ته اونۀ رسيدلو،نو ددې په ذريعه رسول الله ﷺ ته د هر هغه خوف اوويرې نه امن وركړې شو كوم چې عادتاً ممكن وو،هم ددې وجې نه رسول الله ﷺ حالاً او مقالاً د ټولو انسانانو نه زيات بهادر او نۀ ويريدونكې وو،او هم ددې وجې نه الله ﷻ د سورة النجم په اوولسم(۱۷)آيت كښې درسول الله ﷺ دا صفت بيان كړې دې﴿مَازَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰى﴾[۱] چې(نظر ئې نه اوخويدو اونۀ د حد نه تير شو) يعنى ستركې چې څه اوليدل ښۀ په قلار او په يقين سره ئې اوليدل،نۀ خو ئې نظر كوږ ووږ كيدلو سره ښى چپ اړخ ته واوړيدلو او نۀ خو د(مُبصر)په تجاوز كولو سره وړاندې لاړو،بس هم په هغه ځائې باندې نظر كلك ولاړ وو د كوم څيز ښودل چې ورته مقصود وو[۲]۔

**دَ رسول الله ﷺ په زړه كښې "اَلعَلَقَةُ السَّوْدَاء" پيداكولوحكمت:** كوم وخت چه دَ رسول الله ﷺ قلب اطهر اوخيرلې شو نودهغې نه دَ تور رنګ ټينګه وينه راويستلوسره غورزولې شوې وه. دَ دې باره كښې دَ شيخ الاسلام ابوالحسن السبكى رحمه الله نه سوال اوكړې شو نوهغوئ اوفرمائيل چه دا ټينګه شوې وينه كومه چه الله ﷻ دَ انسانانوپه زړونوكښې پيداكوې په دې كښې شيطان خپل تصرفات او وسوسې وغيره پيداكوې. نودَ شق صدر په ذريعه دَ رسول الله ﷺ دَ زړه مبارك نه ئې هغه لرې كړه. نودَ رسول الله ﷺ په زړه مبارك كښې دَ شيطان دَ تصرف كولو هډو څه امكان باقى پاتې نه شو. اوهم دغه معنى ده دَ حديث پاك دَدې جملې "هذاحظ الشيطان منك" او "ولم يكن للشيطان فيه حظ"۔

هم دَ رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوكړې شوه چه ستاسو په پاك ذات كښې دَ شيطان دغه حصه ولې پيدا كړې شوه؟ حالانكه ده خبره خو هم ممكن وه چه الله ﷻ رب العزت دغه هډو پيداكوله نه. نو جواب وركړې شو چه دا حصه هم دَ انسانى اجزاء په شان ده دَ كوم نه بغيرچه دَ انسانى تخليق مكمل كيدل نه كيږي.نو دا ئې په دې وجه پيدا كړه چه دَ دغه خلقت تكميل اوشي اوبيا ئې دادَ كرامت په توګه جدا كړه.دَدې نه علاوه دَدې حصې جداكول دَ رسول الله ﷺ په اوچته مرتبه باندې فائزكيدل هم خودل دى.

بعضو داجواب هم وركړې دې چه كه چرې دې الله ﷻ خپل محبوب ﷺ بغيردَدې حصې نه پيداكړې وې نو نورو خلقو ته به دَدې حقيقت پته نه لګيدله. بل دَدې عمل په ذريعه الله ﷻ دَ انسانيت په وړاندې دا

---

(۱):بهجة النفوس و تحليها بمعرفة مالها و ما عليها بشرح مختصر صحيح البخارى لابن ابى جمرة الاندلسى،باب المعراج والاسراء،الوجه الخامس عشر:۱۸۵/۳، فتح البارى،باب فى المعراج:۲۵۸/۷، سبل الهدى والرشاد،الباب الرابع عشر فيما جاء فى شق صدره وقلبه الشريفين ﷺ گ۹۰/۲.

(۲):تفسير عثمانى،سورة النجم:۱۷، ص :۶۹۴

ښکاره کړه لکه چه څنګه رسول الله ﷺ په ظاهري توګه (یعنی بدنی لحاظ سره) په هرشان سره مکمل وو دغه شان د باطن په اعتبارسره هم حضورپاك كامل اواكمل وو (۱)والله اعلم بالصواب.

په مذکوره بحث کښې علامه سهیلی رحمه الله یوه بله عجیبه نکته بیان کړې ده په کوم باندې چه د وراندې د پوهیدلونه دا ضروری دی چه د هرانسان د تخلیق شروع د نطفه نه کیږی د کوم ظهور چه په شهوت سره کیږی. هم دغه نطفه درجه په درجه د ټینګې وینې شکل اختیارکړی بیا هم دغه ټینګه وینه د بوټنې شکل اختیاروی اوهم دغه ټینګه وینه "مغمزشیطان" (یعنی کوم ځائی چه شیطان نوکاره لګولو سره بچې تنګوی) ته ونیلې شی.

علامه سهیلی رحمه الله لیکلی چه د شهوتونو په ټولو مقاماتو باندې د شیطان خصوصی اودزړه نه نظر وی هم په دې وجه د هرقالب انسانی په دغه جز باندې په خاص توګه دهغه توجو وی اوهغه نی په هر یو پیدا کیدونکی بچی کښې لټوی.

بل طرف ته چونکه د رسول الله ﷺ بختور پیداکیدل د انسانی دستور مطابق اوشو په دې وجه په حضورپاك کښې هم دغه مغمز (کومه چه شیطان د تنګولودپاره چیړی) کیدل لازمی وو. د مولود مبارك حقیقت سره د هغې هیڅ تعلق نه وو. نود رسول الله ﷺ د وړوکوالی په زمانه کښې دغه معمز ویستلوسره اوغورزولې شو او صرف په دغه خبره باندې بس نه شو بلکه د روح القدس غوندې فرښتې په لاسونو باندې د زمزم په اوبو وینځلوسره د ایمان او حکمت نه ډکه شوې یوه کاسه د حضورپاك په زړه مبارك کښې واچولې شوه.(۲)

**دمنکرین شق صدر رد:**: قاضی عیاض رحمه الله دمعراج نه وراندې د شق صدر نه انکارکړې دې او د هغوی د انکاروجه دحضرت شریك بن ابي نمر روایت دې (۳)هغوی لیکی چه د شریك په روایت کښې ډیرې غلطې خبرې دی. دهغه ټولونه شق بطن هم دې حالانکه دا واقعه د رسول الله ﷺ د بچپن په زمانه کښې پیښه شوې وه.(۴)

چنانچه حافظ ابوالفضل العراقی رحمه الله دتقریب شرح، طرح التثریب په مقدمه کښې لیکلي دی چه ابن حزم او قاضی عیاض په لیلة الاسرا کښې د کیدونکی شق صدر نه انکارکړې دې اودعوی نی کړې ده چه دا دشریك دځان نه جوړې کړې شوې خبرې دی حالانکه داسې نه ده په لیلة الاسراء کښې کیدونکې شق صدرد شریك نه علاوه د نورو ډیرو راویانونه نقل دی اودهغوی روایات په صحیحین کښې هم نقل دی. لکه چه وراندې په تفصیل سره تیرشوی دی (۵)

ابوالعباس القرطبی رحمه الله په المفهم کښې لیکلی دی چه په لیلة الاسراء کښې کیدونکې شق صدر دروغ ګڼړونکو طرف ته بالکل توجو نه دی کول پکار ځکه چه دهغې ثبوت د داسې رواة طرف ته دې کوم چه ثقات اومشاهیر دی.(۶)

---

(۱) سبل الهدی والرشاد الباب الرابع عشر فیما جاء فی شق صدره وقلبه الشریفین صلی الله علیه وسلم:۹۰/۲شرح العلامة الزر قانی ، ذکر رضاعه صلی الله علیه وسلم ومامعه:۲۸۹/۱، ۴۹/۸.

(۲) الروض الأنف فی شرح السیرة النبویة لابن هشام، شق صدر: ۱۷۰/۲ترجمان السنة الرسول العظیم وعصمته فی عهد طفولیته: ۲۶۳/۳.

(۳) صحیح البخاری کتاب التوحید رقم الحدیث: ۷۵۱۷.

(۴) الشفا بتعریف حقوق المصطفی فصل فی تفضیله بالإسراء:۱۱۶/۱.

(۵) طرح التثریب فی شرح التقریب فصل فی التراجم: ۱۸/۱.

(۶) المفهم للقرطبی کتاب الإیمان باب کیف کان ابتداء الوحی: ۳۸۲/۱.

علامه قسطلانی رحمه الله المواهب اللدنیه کښې او علامه زرقانی رحمه الله د دې په شرح کښې لیکلی دی چه: "دا څه چه روایت شو یعنی شق صدر او د زړه مبارك راویستل وغیره دا قسم خوارق وغیره په داسې شان سره تسلیم کول واجب او لازم دی څنګه چه نقل شوی، دا د خپل حقیقت نه نه دی ګرځول پکار. امام قرطبی رحمه الله علامه طیبی رحمه الله حافظ توربشتی رحمه الله حافظ عسقلانی رحمه الله او علامه سیوطی رحمه الله او نور علماء کرام هم دغه فرمائی چه شق صدر په خپل حقیقت باندې محمول دې او حدیث صحیح د دې مؤید دې. هغه دا دې چه صحابه کرام رضي الله عنهم سیون یعنی د ګنډلو نشان د حضورپاك په سینه مبارکه باندې پخپله لیدلو".(۱)

علامه قرطبی رحمه الله د مسلم شرح المفهم کښې لیکی چه: کوم سړې دا وائي چه شق صدر یوځل د وړوکوالی په زمانه کښې شوې د هغه د خبرې طرف ته توجو نه دی کول پکار د هغه خبره غلطه ده او دا د هغه وهم دې. د وړوکوالی په زمانه کښې او په وخت د معراج شق صدر بیانونکی ائمه مشاهیر او حفاظ حدیث دی او کوم چه هغوی ذکرکړی دی د هغې په منلو کښې نه څه امر محال دې او نه په هغې کښې څه تعارض دې او نه په کښې څه تناقض دې. لهٰذا صحیح هم دغه دی کوم چه پورته بیان کړې شو او هم دغه مؤقف د علماؤ د یو لوئی ډلې دې.(۲)

**شق صدر یا شرح صدر؟**: دَ نبی کریم صلى الله عليه وسلم سینه مبارکه په حقیقی توګه سره څیرلې کړې شوه.(۳) لکه څنګه چه په احادیث مبارکه کښې ذکرکړې شوي لفظ "فَشَقَّ" نه صفا ښکاری. خودې سره سره د دې واقعاتو په بیان کښې د "فَشَرَحَ" لفظ هم استعمال کړې شوې دې. د شَرَحَ لفظ په شلولو کښې هم دې او په معنوی ارتوالی کښې هم دې. (۴) چنانچه د شرح به دوه قسمونه جوړیږي، شرح صدر ظاهری او شرح صدر معنوی. رومبې به د شق په معنی کښې استعمالیږي او دویم د ارتوالی په معنی کښې، د تسلئی د حاصلولو او د حوصلې د فراخئی په معنی کښې به استعمالیږي.

په سورة الم نشرح لك کښې "شرح" نه مراد معنوی شرح صدر دې لکه چه علامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله په تفسیر عثمانی کښې لیکی.(۵) آیا مونږ کولاؤ نه کړه ستا سینه، چه په هغې کښې د علومو او معارفو سمندر ورکوز کړو او د نبوت لوازم او د رسالت فرائض د برداشت کولو یوه لویه حوصله ورکړه چه د بې شمیره دښمنانو د عداوت او مخالفتونو د مزاحمت نه اونه ویریږی.

شاه عبدالعزیز محدث دهلوی رحمه الله تفسیر عزیزی کښې دا مضمون په ډیر تفصیل سره بیان کړې دې د کوم خلاصه چه دلته ذکرکولې شی. فرمائی: شرح صدر د حوصلې د فراخئی نوم دې چه هرچاته د هغه د مرتبې کمال او طاقت په اندازه حاصلیږی. دا د حوصلې فراخی رسول الله صلى الله عليه وسلم ته په ظاهره او باطن کښې حاصله شوه. نو شرح صدر معنوی یعنی د حوصلې باطنی فراخی داسې اوګڼړئی چه د حضور

---

(۱) المواهب اللدنیه: ۳٤۰/۲کتاب المیسر فی شرح المصابیح: ۱۲۷۱/٤شرح العلامة الزرقانی: ۵۱/۸المفهم: ۳۸۲/۱شرح الطیبی باب فی المعراج: ۶۶/۱۱سبل الهدی والرشاد: ۸۹/۲فتح الباری:۲۵۷/۷عمدة القاری: ۳۰/۱۷ مرقاة المفاتیح:۵٤۹/۸شرح الشفاء للملاعلی القاری:۳۹۳/۱.

(۲) المفهم لما أشکل من تلخیص کتاب مسلم کتاب الإیمان باب شق صدر: ۳۸۳/۱السیرة الحلبیة باب ذکر الإسراء والمعراج: ۵۱۷/۱.

(۳) المُغرب: ٤۳۷/۱لسان العرب: ۱۶۵/۷مجمع بحار الأنوار: ۲٤۱/۳.

(٤) المُغرَب: ٤۵۰/۱لسان العرب: ۷۳/۷مجمع بحار الأنوار:۱۹٤/۳.

(۵) تفسیر عثمانی سورة ألم نشرح ص:۷۸۱.

پاك په سينه مبارك كښې يو لوئې ميدان خالي واقع شو په كوم كښې چه يولوئې عظيم الشان عمارت جوړ شوې دې. په دغه عمارت كښې دولس مجالس دي، بعض په دې كښې دنياسره تعلق لري اوبعض آخرت سره اوبعض دين اودنياسره. كه په دې كښې په رومبي نمبرمجلس كښې خيال اوكړې شي چه يولوئې بادشاه ناست دې اوامور سلطنت سر ته رسوي. په دويم مجلس كښې يو لوئې هوښيار حكيم ناست دې دَ حكمت او هوښيارتوب خبرې ښائي. په دريم مجلس كښې يوقاضي دَ خلقو مقدمات فيصله كوي. په څلورم مجلس كښې يومفتي دَ خلقو دَ مسئلوحل ښائي. پنځم مجلس كښې يو محتسب ناست دې چه دَ خلقو په غلطه لاړ باندې په تلو دهغوي رانيول مواخذه او محاسبه كوي. په شپږم مجلس كښې يو خوږ آواز اوخوش الحان قاري په خپل ښائسته آواز كښې دَ كلام پاك تلاوت كولوسره خلق خوشحالوي. په اووم مجلس كښې يوعابد دَ دنيا ومافيها نه ناخبره په عبادت كښې مشغول دې. په اتم مجلس كښې يو كامل عارف دَ الله ﷻ دَ حكمت علوم معرفت خبرې خلقو ته ښائي. په نهم مجلس كښې يو واعظ خوږ بيان كونكې په منبرباندې ناست وعظ اونصيحت سره خلق دَ الله ﷻ طرف ته متوجه كوي. په لسم مجلس كښې يو دَ اوچتې مرتبې خاوند دَ الله ﷻ رسول دَ الله پاك احكامات خلقو ته رسوي. په يوولسم مجلس كښې يومرشد كامل ناست دې دَ مريدانو او طالبانودَ احوال اصلاح، مقامات اودَ مرتبو په اعتبارسره لاړخودنه كوي. او په دوولسم مجلس كښې يومحبوب نازنين ناست دې چه دَ سر نه واخله ترخپو پورې حسن اوجمال دې اوهغه دَ خپل محبت په كشش سره دَخلقو زړونه ښكاركړي دي او په زړګونوخلق دَهغه دَ حسن دَ يو پرق ليدو خواهشمند دي.

كه په ښه شان سره سوچ اوفكراوكړې شي نوهرقسم انساني كمالات هم په دې دوولسو قسمونوكښې داخل دي اودا دوولس په دوولس مجالس چې په كوم ميدان كښې واقع وي هغه ميدان دَ نبي كريم ﷺ سينه مباركه ده. لكه څنګه چه دَ يو درياب نه بې شميره نهرونه جاري كيږي اودَ يوې ونې دَ جرړې دَ تازه ګئې نه ټولو ښاخونه ټولې پاڼې تازه اوشنې وي. دغه شان دَ انساني كمالاتو ټولې شعبې دَ نبي اكرم ﷺ دَ قلب اطهر نه فيض اخلي. لكه چه دَ رسول الله ﷺ سينه مباركه دَ ټولو كمالاتو سرچينه او مخزن دې. نو چه څومره ماخذ اصلي منظم او طاقتور وي هم هغه هومره به دَ هغې نه فيض حاصلونكې خروب وي. چنانچه په شرح صدر باطني كښې حضورپاك په پوره توګه باكمال كړې شو.

دې نه پس شرح صدر ظاهر باندې دَ پوهيدلودپاره داپيژندل پكاردي چه باطن (يا عالم غيب) او دَ ظاهر نسبت داسې دې لكه دَ اصل نسبت فرع سره، كوم څه چه په عالم ظاهر كښې موجود دي نودَهغې په عالم غيب كښې څه اصل شته. لهذا كوم څه چه په عالم ارواح اوعالم غيب كښې دي هغه مصدر او جرړه ده او كوم څه چه په عالم اجسام او عالم ظاهر كښې دي هغه مظهر او ښاخ دَهغې دې كله چه په دې مقدمه باندې پوهه حاصله شوه نو اوس خان پوه كول پكاردي چه كوم وخت دَ حضورپاك شرح صدر معنوي په عالم غيب كښې ثابته شوه نو په عالم ظاهري كښې شرح صدر (په معنى دَ مشق، څلور ځل ښكاره شوه او دير ځلې دَ ظاهري شرح صدر حكمتونه جدا جدا دي اودا ټول كارونه دَ حكيم دَ حكمت عين مطابق دي.[۱]

داخلاصه وه دَ حضرت مولانا شاه عبدالعزيز محدث دهلوي رحمه الله دَ كلام كومه چه هغوي په تفصيل سره په تفسير عزيزي كښې درج كړې ده.

---

[۱] تفسير عزيزي پاره عم سورة ألم نشرح: ۲۹۳/٤-۲۷۷.

**د ظاهری شرح صدر د منکرینو تردید:** په ماقبل کښې د شق بطن ذکرشوې دې. بعض کوګ ذهن والا داسې دي چه د نبی کریم ﷺ د نورو معجزو په شان په حقیقی توګه باندې کیدونکی شق صدرنه انکار کوی چه عقلاً داخبره ناممکن ده چه د چا خیټه اوشلولې شی دهغه زړه رااوویستلې شی هغه هم اوخیرلې شی اود مبتلی به نه وینه اوځی نه هغه ته تکلیف وی اوهغه لږ شان ساعت پس بیاد اول په شان صحت منداوطاقتور شی.لهذا هغوی په دې روایاتوکښې تاویلات اوکړل اود شق صدر ظاهری نفی کولوسره ئې داپه معنوی شرح صدرباندې محمول کړه

په دوی باندې ردکولوسره امام قرطبی رحمه الله لیکی چه: "په دې واقعاتوکښې (په کوم کښې چه د شق بطن قصه ذکر ده)، دهغې په ظاهر او دهغې په حقیقت باندې محمول کړې شي ځکه چه دهغې په متن کښې عقلاً څه امرمحال ذکرنه دې، په دې اعتبارسره چه د سینې څیرل اود زړه راویستل د عادت موافق د مرګ سبب دې، لیکن خارق عادت د معجزې په توګه یا د کرامت په توګه په حضورپاک باندې مرګ رانغلو."(۱)

علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه: "داحدیث (په کوم کښې چه د شق بطن قصه ذکرده)، اودې په شان نور احادیث کوم چه د دې نوعیت دی چه هغه هم په هغه شان سره قبلول واجب دی لکه چه ذکر شو، په هغې کښې حقیقی معنی پریخودوسره به د مجازی معنې طرف ته به قدم نه شی اخستلې ځکه چه داد یو داسې صادق ﷺ ورکړې شوې خبری دی چه د یوداسې قادر طرف نه ئې نقل کوی چه هرقسم قدرت لری."(۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه: "شق صدر د استخراج قلب او دغه شان نور خارق عادت مخې ته راتلونکی امور هم هغه شان منل واجب دی لکه څنګه چه ذکر شوی، دهغې دحقیقی معنې نه اعراض نه شی کیدلې ځکه چه داد الله ﷻ دقدرت لاندې داخل دی اود هغه دپاره هیڅ څیز محال نه دې."(۳)

امام محمدبن یوسف الصالحی الشامی رحمه الله پخپل کتاب سبل الهدی والرشاد کښې د علامه سیوطی رحمه الله قول نقل کړې دې چه: "زمونږ د زمانې بعض خلقو شق صدر (حقیقی) نه انکارکړې دې او معنوی امر (شرح صدر معنوی) باندې محمول کړې دی او (اولته)، شق صدر حقیقی قائلین ته د قلب حقائق الزام ورکړې دې نودا دهغوی صریح جهالت او فحش غلطی ده اودهغوی نه داسې علوم فلسفیه باندې د یرزیات یقین اود سنت د اسرار او رموز نه د لری والی د وجې نه شوی دی. نتیجتاً د الله ﷻ د طرف نه رسوائی دهغوی مقدر جوړشوې دې.الله ﷻ دې مونږ د دې قسم فحش غلطوکښې د اخته کیدو نه محفوظ اوساتی."(۴)

**شق صدر او صاحب سیرة النبی ﷺ:** په عصر حاضر کښې صاحب سیرة النبی صلی الله علیه وسلم سید سلیمان ندوی رحمه الله هم په دې مسئله کښې د جمهورو ملګرتیاکولو نه ښکاری. سید صاحب په سیرة النبی صلی الله علیه وسلم کښې ذکرکړې دې: "زمونږ په نیز صحیح اصطلاح شرح صدر دې. او د قرآن مجید "سورة الم نشرح" کښې هم دې واقعه طرف ته اشاره ده ﴿ اَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ ﴾ آیا مونږ ستا سینه کولاؤکړې نه ده؟ بیاوړاندې لیکی چه د شرح صدر معنی د سینې د کولاوولوده اود

(۱) المفهم لماأشكل من تلخيص كتاب مسلم كتاب الإيمان: ۳۸۲/۱.
(۲) شرح الطيبي على مشكاة المصابيح باب علامات النبوة كتاب الفضائل: ۶۶/۱۱
(۳) فتح الباري كتاب مناقب الأنصار، باب المعراج: ۲۵۷/۷عمدة القاري: ۳۰/۱۷.
(۴) سبل الهدى والرشاد الباب الرابع عشر: ۸۹/۲.

عربو په کلام کښې ددې نه مقصد خبره ورخودل اودهغې حقيقت واضح کول وي.(۱)

**شق صدر اوسرسيداحمدخان:** سرسيداحمدخان هم د شق صدر حقيقي نه انکارکولوسره شرح صدر معنوي مراد اخستې دې اويوازې په دې باندې بس نه دې کړې بلکه هغه خو په معراج جسماني او حالت د بيدارئ کښې ددې. د سيدصاحب ددې خبرې د جانزې اخستو نه مخکښې د يوعقل پرست او د دين اسلام دحقيقي صورت بدلولووالا مذهب هم مطالعه کړې. واقعې د عدم وقوع قول هم ذکرکړې دې.(۲)

**د مذکوره موقف جائزه:** وړاندې په پوره تفصيل سره داخبره ذکرکړې شوې ده چه شرح صدر په دوه شان سره شوې، ظاهراً هم اوباطناً هم، شق صدر باطني ته شرح صدر او په علم لدني باندې پوره شان سره منطبق کول په هيڅ يو شان سره صحيح کيدې نه شي.

علامه شبيراحمدعثماني رحمه الله ﴿أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ﴾ په تفسير فوائدکښې ليکلي دي: "آيا مونږ ستا سينه کولاؤنه کړه چه په هغې کښې دعلومو اومعارف سمندر ورکوز کړو اود نبوت لوازم او د رسالت فرائض برداشت کولو يوه لويه اووسيع حوصله ورکړه چه د بې شميره دښمنانو عداوت او د مخالفتونو د مزاحمت نه اونه ويريږې. (تنبيه) د احاديث اوسير نه ثابت دی چه په ظاهري توګه باندې هم فرښتو ډيرځل د حضورپاك سينه څيرلې ده خود آيت مدلول په ظاهر هغه نه معلوميږي." (۳) ددې نه معلومه شوه چه د شرح صدر يو صورت شق صدر والاهم دې خودا د آيت مدلول نه دې لکه څنګه چه شق صدر د پورته ثابت شوی احاديثو مدلول صرف معنوي شرح صدر نه دې.غرض دا چه د دواړو مدلول جدا جدا دې.

علامه بدر عالم ميرټهي رحمه الله دمعراج د حديث تشريح کولوسره په ترجمان السنة کښې ليکلي دي (۴)

"د دې (معراج) په تعدد کښې شك هغه چاته کيدې شي د چا په ذهن کښې چه د معراج د واقعې څه اهميت نه وي. يود زمکې مخلوق د آسمانونو اود پاسه سيل کول څه معمولي خبره نه ده. دا عزت په دنيا کښې صرف هم يو رسول اعظم صلى الله عليه وسلم ته نصيب شوې اوهغه هم په ټول عمر کښې په حالت د بيدارئ کښې صرف هم يو ځل. بيا د بچپن واقعه خو د نورو د سترګو د ليدلو وه اودا واقعه پخپله د حضورپاك په خپل ژبان فيض ترجمان بيان کړې شوې ده. يود بجلئ د ړرق په شان تلونکې سورلئ باندې سوريدل او د آسمانونونه پورته تلوسره د آسمانونونه پورته رسيدل، ددې دپاره به په زړه کښې د الله جل جلاله د لويئ څومره طاقت پکاروي يو عادي طبيعت ددې څه اندازه کولې شي. که چرې دا شرح صدر جوړ کړې شي نوشق صدر به د سره په احاديثوسره معدوم شي او بيابه ولې دا سوال نه پيداکيږي چه کوم وخت په ماشوموالي کښې ده شرح صدر شوې وه نوبيا دمعراج نه وړاندې ددې د کيدلو څه ضرورت وو؟ خو چه کوم سړې د حديث نه ناخبره وي دهغه نظر په عقلي دائره کښې دومره محدود وي چه هغه په دې هم نه پوهيږي چه کوم د شق تفصيلونه په احاديثوکښې موجود دي آيا دهغې په شرح صدر باندې محمول کول معقول دي؟ دلته صرف د يوشق په لفظ باندې بحث نه دې بلکه دا غور کول

---

(۱) سيرة النبي صلى الله عليه وسلم، شق صدر يا شرح صدر؟: ۲۷۹/۳-۲۶۹.

(۲) تفسيرالقرآن سرسيداحمدخان. سورة الإسراء. شق صدر: ۱۳۱/۶-۱۲۳.

(۳) تفسيرعثماني سورة الم نشرح ص:۷۸۱.

(۴) ترجمان السنة الرسول الأعظم وشق صدره لیلة المعراج صلوات الله وسلامة عليه: ۱۶۰/٤-۱۵۹.

دی چه دَ شق کوم تفصیلات اوکیفیات راغلی دی آیا هغه هم دَ دغه تاویل متحمل کیدې شی که نه؟ مثلاً دَیوې فرښتې راتلل اودَ حضورپاك سینه مبارکه څیرل، اودَ حدود شق تعیین کول، زړه مبارك بهرراویستل، بیاپه یو پلیټ کښې دَهغې وینځل، دَهغه پلیټ دَ سرو زرو کیدل، بیا دَاوبونوم اخستل سره زمزم وئیل، دغه شان بیا دَدې دَ صحیح کیدو تفصیلی کیفیت بیانول، که دَدغه ټولو څیزونو شرح صدر وی نودا تاویل به وی یا دَ الفاظومسخ کول به وی؟ اوداسې تاویلات کولوسره دکوم دېره چه په الفاظوکښې ګنجائش نه وی آیا دَ شریعت نه ایمان اوچتول نه دی؟ که چرې دا شق صدر په معنی دَ شرح صدر شوې وی چه دَ منکرینوپه قول هرنبی ته حاصل وی نو آیا دَدې تفصیلاتو ثبوت دَ یو نبی په ژوند کښې پیش کولې شی؟ دا شرح صدر هم عجیبه وو کوم چه دَهر نبی دَپاره ثابت کړې شی مګر دَشق دَدې تفصیلاتو ثبوت دَ تیرو شوو انبیاء کرامو دَ ګڼ تعداد نه به نی په یوکښې هم پیش نه کړې شی، یاللعجب".

غرض دا چه شق صدر او شرح صدر دواړه جدا جدا دلیل سره دَ قرآن پاك او احادیث مبارکه نه ثابت دی. وړاندې محدثین کرام او دَ علماء سیر اقوال نقل شوی. اوس لاندې دَ مفسرینو اقوال ذکرکولې شی چه هغوی هم دَ دواړو جدا جدا مدلول ذکرکړې دې.

داتفصیل علامه ثعلبی رحمه الله الکشف والبیان کښې علامه زمخشری رحمه الله تفسیرالکشاف کښې علامه ابن جوزی رحمه الله زادالمسیر کښې علامه بیضاوی رحمه الله تفسیرالبیضاوی کښې علامه ابن کثیر رحمه الله خپل تفسیرکښې علامه ابو سعود رحمه الله تفسیر ابی السعود کښې علامه صاوی رحمه الله حاشیة الصاوی علی الجلالین کښې علامه شوکانی رحمه الله فتح القدیر کښې اوعلامه آلوسی رحمه الله روح المعانی کښې ذکر کړې دی.(¹)

"خلاصه دکلام دا چه دَ شق صدر نه مراد حقیقةً دَ سینې مبارکې څیرل مراد دی دَ شق صدر نه شرح صدرمعنی مراد اخستل چه دَ یوخاص قسم علم دې صریح غلطی ده. شق صدر دَ حضورپاك ﷺ دَ خاص الخاص معجزات نه یوه معجزه ده او شرح صدر حضورپاك ﷺ سره مخصوص نه دی. دَ حضرت ابوبکر رضی الله عنه اوحضرت عمر رضی الله عنه دَ زمانې نه واخله تراوسه پورې هم علماء صالحین ته شرح صدر کیږی. بل که چرې دَ شق صدر نه شرح صدر معنی مراد وی کوم چه یو معنوی امر دې نوبیابه دَدې حدیث څه مطلب وی؟ چه سیون (دَ ګنډ) نشان کوم چه دَ رسول الله ﷺ په سینه مبارکه باندې صحابه کرامو په خپلو سترګو لیدلو. آیا په شرح صدر سره په سینه مبارکه باندې دَ ګنډ څه نښې ښکاریږې؟ لاحول ولاقوة إلابالله العلی العظیم".(²)

**یووضاحت:** دَسید صاحب په دې مؤقف باندې په انوارالباری کښې هم راګیرونه کړې شوې ده. په دې مقام باندې مؤلف انوار الباری سیداحمدرضا بجنوری په حاشیه کښې لیکلی دی چه "دَحضرت سید صاحب په کومو تفردات او طرز تحقیق باندې نقد کړې شوې دې زمونږ ذاتی خیال دادې چه هغه

¹) الکشف والبیان فی تفسیر القرآن المعروف بتفسیر الثعلبی:٤٨٧/٦-٤٨٦تفسیرالکشاف للزمخشری سورة ألم نشرح: ٧٥٩/٤، زادالمسیرفی علم التفسیر لابن الجوزی: ٢٨٤/٨ حاشیة الشهاب علی تفسیر البیضاوی: -٥١٦ ٥١٧/٩تفسیرابن کثیر سورة ألم نشرح: ٤٨٥/٦تفسیرأبی السعودللقاضی أبی السعود:٤٤٣/٦حاشیة الصاوی علی تفسیر الجلالین: ٣٨٩/٤فتح القدیر للشوکانی:٥٧٧/٥تفسیر روح المعانی:٣٨٧/١٥-٣٨٥التفسیر الکبیر للرازی: -٢ ٥/٣٢

²) سیرة المصطفیٰ صلی الله علیه وسلم للکاندهلوی شق صدر کی حقیقت: ٨٢/١

دَدې دَ لوئي حصې نه رجوع فرمائيلې وه اويو خل دهغوى رجوع په معارف كښې شائع شوې هم وه. مګر دا دَ اداره دارالمصنفين اعظم ګړه لويه هيره ده چه نه دهغوى دَ رجوع مطابق تاليفات كښې اصلاح اوكړه او نه ئي دَهغوى تاليفاتو سره چهاپ كړه.
په داسې صورت كښې دَ حضرت رحمه الله چرته په سابقه تحقيق باندې نقد اوطعن كيږى نو په دې سره زړه ته تكليف كيږي خاص كر دَدې دپاره چه راقم الحروف حضرت سيدصاحب رحمه الله سره دَ هغوى قيمتى علمى خدماتو دَ وجې نه دَ مجلس علمى ډابهيل دَ زمانې نه دَ زړه تعلق پاتې دې. اودَ يوې مودې پورې دا كوشش اوخواهش هم پاتې دې چه هغوى دې دَخپل تفردات نه رجوع اوكړى. بيا دَ رجوع خبر دَ يومحترم دَ يوذاتى خط په ذريعه سره ملاؤ شو او په معارف كښې هم چهاپ شو نوډيره خوشحالى حاصله شوه. بيا آخرى عمركښې چه څومره حضرت تهانوى رحمه الله سره دموصوف تعلق او استفاده زياتيدله دهغوى په خيالاتوكښې نور بدلون كيدلو اودَ موصوف دَ وفات نه صرف يوه هفته وړاندې چه داحقر كوم ملاقات اوشو په هغې سره هم دَ دغه پورتنو خيالاتو تائيداوتوثيق اوشو. په دې وجه دا يو څو كربنې دَ خپل علم او تسلئى مطابق دحضرت صاحب نورالله مرقده باره كښې اوليكلې شوې. خو ښكاره خبره ده چه په سيرة النبى وغيره كښې كوم څيزونه تراوسه پورې چهاپ كيږى او يوشان دَ هغې ترجمې هم په نورو ژبوكښې چهاپ كيږى. په هغې سره چه كومې غلط فهمنى خوريږى دهغې ازاله په صحيح نيولو او نقدسره كيدې شى كوم چه داهل تحقيق حق دې. جزاهم خيرالجزاء [1]

**ايا شق صدر سابقه انبياء كرامو عليهم السلام سره هم شوې دې؟** لكه څنګه چه نبى كريم ﷺ سره دَ شق صدر واقعه پيښه شوې ده دغه شان سابقه انبياء كرام عليهم السلام سره هم داسې امر پيښ شوې كه نه؟ په دې كښې اختلاف دې.
امام شامى رحمه الله سبل الهدى والرشاد كښې ليكلى دى چه "دَ علامه سيوطى رحمه الله په نيزدَ شق صدر معجزه زمونږ نبى كريم ﷺ سره خاص ده. سابقه انبياء كرامو كښې چاسره هم داسې واقعه نه ده پيښه شوې. دې نه پس ليكى چه صحيح خبره داده چه دا معجزه صرف حضورپاك سره خاص نه ده بلكه نور انبياء كرام هم په دې معجزه كښې حضورپاك سره شر يك دى لكه چه بعض رواياتو سره دې طرف ته اشاره ملاويږى." [2]
دجمهورو قول هم دغه دې چه دَ سابقه انبياء كرامو زړونه هم وينځلې شوې وو. البته په كوم تفصيل او اهتمام سره چه دنبى كريم ﷺ سره دَ پيښيدونكې معامله خبر ملاويږى دغه شان سابقه انبياء كرامو سره پيښيدونكې واقعې خبر نه ملاويږى صرف اشاره ملاويږى چه دَ سابقه انبياءكرامو زړونوته هم غسل وركولې شو. [3]

**قوله: ثُمَّ غَسَلَهُ بِمَاءِ زَمْزَمَ:** بيانى دا دَ زمزم په اوبوسره اووينځلو. زمزم دَهغه كوهى نوم دې كوم چه په مسجدحرام كښې دې. لفظ زمزم دَ تانيث اوعلميت په وجه غيرمنصرف دې. دې ته زمزام ، زوازِم او زُوَزِم هم وئيلې شى. په لغات كښې دَدې نورډير نومونه هم ذ كرشوى دى. په كوم كښې چه:

[1] انوار البارى شرح صحيح البخارى شق صدر اوسيرت النبى صلى الله عليه وسلم: ۱۱/۱۷-۱۶.
[2] سبل الهدى والرشاد الباب الرابع فى شق الصدر: ۹۱/۲.
[3] فتح البارى باب المعراج: ۳۵۷/۷شرح العلامة الزرقانى فى شق الصدر: ۲۸۶/۱السيرة الحلبية باب ذكر الإسراء والمعراج: ۵۱۷/۱سبل الهدى والرشاد: ۹۱/۲ذخيرة العقبى رقم الحديث ۴۴۸، ۲۹/۶.

مَكْتُومَةٌ، مَضْنُونَةٌ، شُبَاعَةٌ، سُقْيَا، الرَّوَاءُ، رَكْضَةُ جِبْرِيْلَ، هَزْمَةُ جِبْرِيْلَ، شِفَاءُ سُقْمٍ، طَعَامُ طُعْمٍ، حَفِيْرَةُ عَبْدِالْمُطَّلِبِ (۱)
دې ته دزمزم ونيلووجه ددغه اوبوزياتوالې دې يابياچه كله دزمكې نه اوبه وتلې وې هغه وخت حضرت هاجره بى بى ددې اوبونه چاپيره پوله جوړولوسره (دې دپاره چه اوبه اخوا ديخوا نه شى) اوونيل زم زم (اودريږه اودريږه) يا د دغه اوبو د راخوټكيدو په وخت حضرت جبرائيل عليه السلام دغه اوبوته اوونيل زم زم اوددې نه علاوه وجه هم كيدې شى. (۲)

**په زمزم سره د قلب اطهر د وينځلو وجه:** علامه زرقانى رحمه الله فرمانى چه د رسول الله ﷺ زړه مبارك په زمزم سره د وينځلو حكمت دادې چه دا اوبه زړه ته طاقت وركوى او ويره لرې كولوسره سكون پيدا كوى.حافظ زين الدين عراقى رحمه الله فرمانې چه په ليلة الاسراء كښې په دې اوبوسره د رسول الله ﷺ زړه مبارك ته غسل څكه وركړې شو چه د عالم ملكوت په رؤيت باندې حضورپاك ته تقويت حاصل شى.(۳)

**د رسول الله ﷺ زړهٔ مبارک د جنت په اوبوسره ولې اونه وينځلې شو؟** پدې ځائې كښې يو سوال پيدا كيږى چه كله د رسول الله ﷺ سينه مباركه څيرلوسره د حضورپاك زړه مبارك ته غسل وركړې شو نو د هغې دپاره فرښتو هم د آسمان نه پليټ راوړلو نودې سره به نى د جنت نه اوبه هم راخستې وې حالانكه داسې اونه شو بلكه هم د دنيا په اوبوسره دحضورپاك زړه مبارك اووينځلې شو داسې ولې اوشو؟

ددې په جواب كښې علامه ابن ابى جمرة رحمه الله فرمانې كه چرې د جنت په اوبوسره د رسول الله ﷺ زړه مبارك ته غسل وركړې شوې وې نودامت دپاره به ددې د بركت اثر باقى نه وې پاتې شوې څكه چه ددې اوبو مستقر دنيانه ده بلكه جنت دې. بل ددې وجې نه هم چه آب زمزم هم آسمانى يا جنتى اوبه دى او هغه دا شان چه د الله ﷻ قول ﴿وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً بِقَدَرٍ فَأَسْكَنَّاهُ فِي الْأَرْضِ ۖ وَإِنَّا عَلَىٰ ذَهَابٍ بِهِ لَقَادِرُونَ﴾ (۴) په تفسيركښې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول دې چه په زمكه كښې هم كومې اوبه دى هغه هم دهغه اوبونه دى كومې چه د آسمان نه نازل شوى او په يو روايت داهم دى چه كله باران راوريږى نو په هغې كښې د جنت د اوبونه څه حصه ملاؤ شوې وى او په دغه باران كښې بركت د دغه ملاؤ شوې اوبو په اندازه وى. چنانچه په دې معنى كښې ټولې اوبه هم د جنت اوبه دى يا څه اوبه د جنت وى

ددې نه علاوه د آب زمزم نور فوائد هم بيان كړې شوى دى په كوم كښې چه يو څو دلته ذكركولې شى مثلاً:

① دامت دپاره بركت باقى ساتل مقصود وو ② آب زمزم په هغه زمكه باندې واقع وو چرته چه بيت الله وو ③ دا اوبه د مبارك هستئى حضرت اسماعيل عليه السلام د اكرام دپاره پيدا كړې شوې ④ ددې اوبو يو خاصيت داهم دې چه په دې اوبوكښې دحضرت هاجره بى بى دپاره خوراك هم كيخودې شو ⑤ ددې اوبو ښكاره كيدل د يو خاص وجې او مقصد دپاره دخاص اومقرب فرښتې حضرت جبرائيل عليه السلام

---

۱) الصّحاح للجوهري، ص: ۱۴۵۸لسان العرب: ۸۶/۶القاموس المحيط ص: ۱۰۰۸ ذخيرة العقبى فى شرح المجتبى رقم الحديث: ۴۴۸، ۲۹/۶.

۲) فيض القدير رقم الحديث:۲۲، ۸۱/۱.

۳) شرح العلامة الزرقانى:۶۶/۸-۶۵.

۴) سورة المؤمنون:۱۸.

په ذريعه اوشو. لهذا په دې خاص اوبوکښې د حضورپاك زيات عزت او دَهغوی زيات تعظيم وو په دې وجه په دې اوبوسره دَحضورپاك زړه مبارك ته غسل ورکړې شو.
بعض داهم ونيلی دی چه کله دا اوبه دَحضورپاك دَ باباجان حضرت اسماعيل عليه السلام دَ حياة سبب جوړ شو نو زيات مناسب هم دغه وو چه هم دَدې په ذريعه دَ حضورپاك زړه مبارك ته غسل ورکړې شی.[1]
**اب زمزم غوره دی که اب کوثر؟**: دَ معراج دَ سفر نه وړاندې حضورپاك سره دَ شق صدر معجزه پيښه شوه په کوم کښې چه دَ حضورپاك زړه مبارك په آب زمزم سره اووينځلې شو. هغه وخت دَ آب زمزم دَ استعمال دَ وجې نه دا سوال پيدا شو چه په اوبوکښې آب زمزم غوره دی که آب کوثر؟ (چه په جنت کښې يوه چينه ده يا يو نهر دې). نو په دې باره کښې په مجموعی توګه باندې درې اقوال مخې ته راځی: دَ ټولونه ړومبې قول دادې چه آب زمزم دَ ټولو اوبونه غوره دی په دې وجه دَحضورپاك زړه مبارك ته په دې سره غسل ورکړې شو. که چرته نورې اوبه دَدې نه غوره وې نودکائنات دَ ټولو نه دَ عظيم اومبارکې هستئی دپاره به هم دَهغه اوبو انتخاب کيدلو نه چه دَ آب زمزم. دا قول اختيارونکې شيخ الاسلام السراج البلقيني رحمه الله دې. دا قول علامه قسطلانی رحمه الله علامه زرقانی رحمه الله علامه ابن ابی جمرة رحمه الله علامه سهيلی رحمه الله او امام يوسف الصالحی رحمه الله اوعلامه عينی رحمه الله ذکر کړې دې.[2]
دويم قول دَ علامه سيوطی دې چه آب زمزم ته مطلق دَ ټولو اوبونه افضل ونيل محل نظر دې البته داسې ونيلی شی چه آب زمزم دَ دنيا دَ ټولو اوبونه غوره دی اود جنت دَ اوبونه دټولو نه غوره آب کوثر دې. ځکه چه آب کوثر دارالبقاء سره تعلق لری لهذا دا په دارالفناء کښې نه شی استعمالولې. لهذا په دارالفناء کښې دَ هغه ځائې دَ ټولو نه غوره اوبوزمزم سره غسل ورکړې شو.
دَدوی په دې خبره باندې دا اشکال کيدې شی چه کوم پليټ په دې واقعه کښې استعمال کړې شو هغه خوهم دَ دارالبقاء يعنی جنت نه راو ړلې شوې وو او دَهغې استعمال په دارالفناء يعنی دنياکښې اوکړې شو. نودَدې جواب دَهغوی دَ طرف نه دا ورکړې شو چه دا اشکال ټيك نه دې ځکه چه پليټ او رکيبئی داسې څيز دې دَ کوم په استعمال سره چه هغه ختميږی نه په خلاف دَ اوبو چه دَهغې په استعمالولو سره خودَهغې ذات فنا کيږی په دې وجه دَهغه ځائې پليټ نی استعمال کړو ليکن اوبه نی استعمال نه کړې.
دَعلامه سيوطی رحمه الله دَدې خبرې هم جواب ورکړې شو چه کله تاسو دومره خبره اومنله چه دَ حضورپاك زړه مبارك ته هم په غوره اوبوسره غسل ورکړې شو نودهغوی دَ شيخ الاسلام البلقيني رحمه الله قول چه هم زمزم غوره اوبه دی تسليم کول هم لازم شو. په دې وجه دَهغوی ذکرکړې شوې دليل دَ وجې نه زمزم غوره اوبه ګرځولوباندې هم څه دليل نشته دې اودَهغوی دا وينا کول چه آب کوثر دَ جنت يعنی دارالبقاء اوبه دی په دې وجه دا په دارالفناء کښې استعمال نه کړې شو. دَدې خبرې تقاضا نه کوی چه په دې اوبوسره دَ حضورپاك زړه مبارك ته غسل مه ورکوئی ځکه چه دَ حضورپاك دَ شان اومنصب سره

[1] بهجة النفوس باب المعراج خرق العادة النبی صلی الله عليه وسلم: ۱۸۹-۳/۱۸۸ذخيرة العقبی فی شرح المجتبی باب فرض الصلاة رقم الحديث: ٤٤٨، ۲۹/٦الروض الأنف عن شق الصدر مرة: ۱۷٤/۲شرح العلامة الزرقانی:-٦٥ ٦٦/٨ سبل الهدی والرشاد الباب الرابع عشر:۹٦/۲.
[2] المواهب اللدنية المصدر الخامس: ۲٥٤/۲شرح العلامه الزرقانی٦٦/٨-٦٥ بهجة النفوس: ۱۸۸-۱۸۹/۳ الروض الأنف: ۱۷٤/۲ سبل الهدی والرشاد:۹٦/۲ عمدة القاری: ۳۱/۱۷مرقاة المفاتيح: ٥۲٨/۱۰التعليق الصبيح: ۱۳۹/۷ نسيم الرياض: ۱۱۰/۳الکوثرالجاری: ۲٨/۲.

حو لائق دا وو چه دَحضور پاك دَ پاره مطلقاً غوره اوبه استعمال كړې شوې وې نه چه صرف دَ دنيا دَ اوبونه غوره اوبه.

دويمه خبره دَهغوى دا وينا كول چه دَ طشت يا پليټ حال خو بل دې په دې باندې قياس كولو سره دې اشكال نه كوى، تسليم نه ده ځكه چه دغه وخت دَ حضورپاك كرامت ښكاره كول وو ګنى دَ سرو زرو استعمال خو حرام وو كوم وخت چه دا جائز اوګرځولې شو نو مونږ پوهه شو چه دا مقام اووخت دَ يو خرق عادت امر ښكاره كولو دې دې دپاره چه په هغې سره دَ حضورپاك دپاره دَ نور كرامت اوعزت اظهار اوشى.نودا خبره تقاضا كوى چه دكوثر اوبه استعمال شوې وې كه هغه چرته غوره وې خوچه كله دَدې باوجود دَ زمزم اوبه استعمال كړې شوې نودا په دې خبره باندې قرينه ده چه هم دغه اوبه هم دَ كوثر دَاوبونه غوره دى. دا قول علامه زرقانى رحمة الله اوعلامه مناوى رحمة الله ذكركړې دې.[1]

دريم قول دَ ابن الرفعة دې چه دَ ټولو نه غوره اوبه هغه دى كومې چه دَ حضورپاك دَ ګوتونه دَ معجزه په توګه جارى شوې. اوداسې دَ حضورپاك صلى الله عليه وسلم نه څو ځل شوى. دغه مواقع علامه يوسف الصالحى رحمة الله خپل كتاب سبل الهدى والرشاد لسم جلدكښې په تفصيل سره ذكركړى دى دَدې دَ غوره كيدو وجه داده چه دا اوبه دَحضورپاك دَ مباركو ګوتو نه جارى شوې او دَ زمزم اوبه دَحضرت اسماعيل عليه السلام دَ پوندو په مرلوسره، دَدې دواړو په مينځ كښې فرق صفا ښكاره دې. په دې وجه كومه معجزه چه دَحضورپاك دَ ګوتو مباركونه ښكاره شوه دا ډيره ابلغ ده دَ حضرت اسماعيل عليه السلام دَ معجزې نه.

البته دَدې خبرې دَ وجې نه دَعلامه بلقينى په دې خبره باندې اشكال نه شى كيدې چه هغوى فرمائيلى دَحضور پاك ﷺ زړه مبارك دَ ټولو نه په غوره اوبوسره اووينځلې شو ځكه چه هغه وخت څه نورې اوبه خاص كر دَحضورپاك دَ ګوتو مباركوراوتلې اوبه موجود نه وې پدې وجه دَ هغه وخت موجود اوبوكښې غوره اوبه مراد دى.

اودغه شان په ابن الرفعة باندې هم دَدې صحيح حديث دَ وجې نه څه اشكال نه شى كيدې په كوم كښې چه دَ زمزم دَ اوبو فضيلت راغلې دې.«خيرماءعلى وجه الأرض ماءزمزم»[2] چه حضورپاك ارشاد فرمائيلې دې په مخ دَ زمكې دَ ټولونه غوره اوبه دَ زمزم اوبه دى.

اشكال په دې وجه نه شى كيدې چه دَ حضورپاك دَدې فرمان په وخت هغه اوبه موجود نه وې كومې چه دَمعجزې په توګه دَهغوى صلى الله عليه وسلم دَ ګوتومباركونه راوتلې. مطلب دا چه هغه وخت دَدغه معجزې ظهور هم نه وو شوې.داقول علامه زرقانى رحمة الله علامه ابن ابراهيم حلبى رحمة الله علامه يوسف الصالحى الشامى رحمة الله اوملا على قارى رحمة الله ذكركړې دې.[3]

اوس په دې درېواړو اقوالوكښې راجح قول كوم يو دې؟ په دې باره كښې علامه عبدالرؤف المناوي رحمة الله دَ دې حديث «خيرماءعلى وجه الأرض ماءزمزم» په تشريح كښې ليكى چه دَدې نص دَ وجې نه دَهغه علماؤ دَپاره تقويت پيداكيږى چه دَ كوثر دَ اوبونه دَ زمزم اوبه غوره ګرځوى. بيا لړ شان وړاندې تلو سره كتلې شى چه دَ دې حديث «خيرماءعلى وجه الأرض ماءزمزم» دَ وجې نه بعض علماؤ آب زمزم ته دَ

[1] شرح العلامة الزرقاني المقصد الخامس فى تخصيصه عليه الصلاة والسلام بخصائص المعراج والإسراء: ۶۶-۶۷/۸فيض القدير بشرح الجامع الصغير حرف الهمزة رقم الحديث:۲۲، ۸۱/۱

[2] المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث: ۱۱۰۰۴، ۲۷۹/۵المصنف لعبدالرزاق باب زمزم وذكره رقم الحديث: ۹۱۱۹، ۱۱۶/۵جامع الأحاديث للسيوطى رقم الحديث: ۱۱۸۱۹حرف الخاء.

[3] شرح العلامة الزرقاني: ۶۸/۸السيرة الحلبية: ۴۱۳/۳سبل الهدى والرشاد: ۱۳/۱۰مرقاة المفاتيح: ۵۲۸/۱۰

هغه اوبونه هم غوره اوونيل كومې چه د حضورپاك د گوتو مباركونه جارى شوې وې حالانكه په هغه موقع چه دغه اوبوته غوره وئيلې شوې وو هغه وخت د حضورپاك د گوتو مباركونه جارى كيدونكې اوبو والامعجزه ښكاره شوې هم نه وه.[1]

دكلام خلاصه دا شوه چه دهغه وخت په اعتبارسره كوم وخت چه شق صدر اوشو دټولونه غوره اوبه اوبه د زمزم گرځولې شى اودې نه پس هغه اوبه كومې چه د حضورپاك د گوتونومباركود اثر نه پيدا شوې.

**قوله:: ثُمَّ جَاءَ بِطَسْتٍ مِنْ ذَهَبٍ**:بيانى د سرو زرو يو پليټ راوړو راغله. طشت يو د تهال په شان لوښې وى چه اكثرد پيتلو نه جوړ شوې وى اكثر دډې استعمال د لاسونو د وينځلو دپاره كيږى.

طشت د طاء فتحه او سين سكون سره وى. د ابن قرقول وينا ده چه دا لفظ "ط" په كسره سره هم استعماليږى ليكن دډې استعمال فتح سره زيات فصيح دې وئيلې شى چه د طشت اصل طس د سين تشديد سره دې يو سين د ثقيل كيدو د وجې نه په تاء سره بدل كړې شوې. نوچه كله دډې جمع راوړلې شى نو سين واپس راگرځى لكه طِساسٌ،طِيسٌ،أَطْسَاسٌ اوطُسُوسٌ

په طست كښې دَيونه زيات لغات هم موندلې شى مثلاً اَلطَّسُّ، اَلطَّسَّةُ، اَلطِّسَّةُ. دډې نه اَلطَّسُّ جمع اَطْسَاسٌ طُسُوسٌ اوطِيسٌ راځى او اَلطَّسَّةُ جمع طِسَاسٌ اوطِسٌ راځى.[2]

**دَزړه مبارك دَوينځلودپاره دَطشت استعمال ولې اوكړې شو؟** علامه عينى رحمه الله ليكى چه دډې لوښى خاصوالې نور لوښى پريخودو سره خكه اوكړې شو چه په عرف كښې دډې قسم وينځلو دپاره هم دډې لوښى استعمال كيږى.[3]

**دَ سرو زرو طشت ولې استعمال كړې شو؟** دَ شق صدر په موقع باندې دَ حضورپاك زړه مبارك دَ سرو زرو په طشت كښې كيخودوسره اووينځلې شو. نو په دې خائې كښې دا سوال پيداكيږى چه په شريعت محمدى كښې خود سرو زرو استعمال حرام دې نودا ولې استعمال كړې شو؟

دډې سوال د امت علماؤ ډير جوابونه وركړى دى: ① د سرو زرو د استعمال دحرمت حكم په دې دنياكښې په استعمال باندې دې په آخرت كښې نه دې لكه چه حضورپاك ارشاد فرمائيلې دې «هولهم فى الدنيا وهولنا فى الأخرة»[4] دَ سرو زرو استعمال دكافرانو اوغير مسلمو دپاره په دې دنيا كښې دې (زمونږ دپاره نه دې بلكه) زمونږ دپاره خوبه دډې استعمال په آخرت كښې وى (هلته به د هغوى دپاره نه وى)

بيا دډې طشت استعمال خود نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه نه دې شوې دډې استعمال خو هغه فرښتو كړې چه دغه لوښې نى خان سره راوړلې وو اود احكامو مكلف مونږ انسانان يو نه چه فرښتې

---

[1] فيض القدير حرف الخاء رقم الحديث: ٤٠٧٧، ٦٥٢/٣مرقاة المفاتيح باب علامات النبوة: ٥٢٨/١٠شرح العلامة الزرقانى: المقصد الخامس: ٦٨/٨الكنز المتوارى باب كيف فرضت الصلوت: ٧/٤.

[2] الصحاح للجوهرى ص: ٦٤٠النهاية فى غريب الحديث والأثر: ١١٠/٢المغرب: ٢٠/٢لسان العرب: ١٦٠-١٦١/٨القاموس المحيط ص: ١٤٣عمدة القارى: ٦٣/٤شرح النووى على صحيح مسلم: ٣٨٩/٢.

[3] عمدة القارى: ٦٣/٤فتح البارى: ٣٩٧/١سبل الهدى والرشاد: ٩٣/٢.

[4] سنن ابن ماجه باب كراهية اللباس رقم الحديث: ٣٥٩٠ص ١١٨٧، المصنف لابن أبى شيبة كتاب اللباس رقم الحديث: ٢٥١٤٠.

④ دا امر هغه وخت پېښ شو کوم وخت چه د دغه لوښو (يعنی د سرو زرو د لوښو) د استعمال ممانعت حکم نه وو نازل شوې. بلکه دَدې استعمال مباح وو اودَدې د حرمت حکم خو په مدينة المنورة کښې نازل شوې.

③ يوجواب دا هم ورکړې شوې دې چه دا امر د رسول الله ﷺ خصوصياتو سره تعلق لرى. دا جواب ملاعلى قارى رحمه الله په مرقاة کښې ذکرکړې دې.

④ حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلى دى چه داخبره هم ممکن ده چه د حرمت حکم د دنيااحوال سره مخصوص وى اوکوم څه چه په ليلة الاسراء کښې پېښ شوى هغه اکثر د غيبواحوالوسره وو په دې وجه به هغه احکام آخرت سره هم ملحق وى (او په آخرت کښې به د سرو زرو نه مستفيد کيدونکى خالصتاً هم مؤمنان وى).

⑤ علامه خفاجى رحمه الله ليکلى دې چه د سرو زرو استعمال څکه اوکړې شو چه هغه د جنت سره زر وو کوم چه زمونږ د دنيا د سرو زرو د جنس نه نه دى اود احکامو تعلق د دې دنيا د سرو زرو سره دې لهذا دلته د نورو جوابونو هډو ضرورت نه پاتې کيږى.([1])

**د سرو زرو د استعمال حکمت:** د رسول الله ﷺ د زړه مبارک د وينځلودپاره د سرو زرو استعمالولو څه حکمت وو؟ په دې باره کښې د ټولونه تفصيلى کلام علامه سهيلى رحمه الله کړې دې اودغه کلام څه نوره تشريح او اضافې سره علامه يوسف الصالحى الشامى اوعلامه زرقانى رحمه الله نقل کړى دى.

چنانچه علامه سهيلى رحمه الله فرمائى لکه څنګه چه د سرو زرو ظاهر او دهغې ذات دې دغه شان دهغې لفظ او صفات هم دى. اود دهات دلفظ اوصاف ظاهر اوذات د حضورپاک، وحى الهى اوقرآن مجيد سره مناسبت دې. که لفظ ذهب ته اوکتلې شى نودا به دهغه معنى په مناسبت شى دکومې چه رسول الله ﷺ سره اراده کړې شوې وه. يعنى الله ﷻ د حضورپاک سره د عقيدې د ناپاکوالى (شرک) د لرې کولواراده اوکړه اوحضورپاک ئې په هر اعتبار سره ظاهراً او باطناً پاک اوصفاکړو.

اوکه چرې د ذهب معنى او اوصاف ته نظر اوکړې نودَدې معنى يوڅيز دهرقسم خرابو وغيره نه پاکول او صفا کول دى. چنانچه د سرو زرو د طشت مناسبت دهغه څيز سره اوشو دکوم چه حضورپاک سره اراده اوکړې شوه يعنى د حضورپاک د زړه مبارک صفائى.

د سرو زرو د اوصاف نه يو دَدې ثقيل يعنى دروندوالې کيدل هم دى، تردې چه که دا په پاره کښې هم واچولې شى نوداپه هغې کښې هم لاندې کينى. بل طرف ته په حضورپاک باندې نازل کيدونکې کتاب قرآن مجيد اووحى هم ډير زياته دروندوالې لرلو لکه چه د الله ﷻ ارشاد دې ﴿إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا﴾([2]) چه مونږ اچونکى يوپه تاباندې يو بوج (وزندار) خبره.

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائى چه کله به په حضورپاک باندې وحى نازليدله اوهغوى به په اوښه باندې وو نو (د وحى د بوج د وجې نه) به هغه اوښه کيناستله بيا به هغې د حرکت کولو طاقت نه لرلو (تردې

---

[1] بهجة النفوس حديث الإسراء والمعراج: ۱۸۰/۳مرقاة الفاتيح كتاب الفضائل باب علامات النبوة: ۵۲۸/۱۰فتح الباري:كتاب المناقب باب المعراج رقم الحديث: ۳۸۸۷، ۲۵۷/۷، نسيم الرياض القسم الأولى فى تعظيم العلى الأعلى لقدر النبى ﷺ: ۳۶/۳|ارشادالسارى: ۵/۲عمدة القارى: ۶۳/۴-۶۲، ۳۱/۱۷التوضيح لشرح الجامع الصحيح: ۲۳۰/۵-۲۲۹شرح السيوطى على النسائى: ۲۱۷/۱.

[2] سورت المزمل: ۵

چه وحي به ختمه شوه). (۱)

چنانچه صفت معقوله (يعنى دَ وحي بوج) او صفت محسوسه (دَ سرو زرو سختي او دروندوالي كښي) مطابقت ښكاره شو. دَ سرو زرو دَ اوصاف نه دا هم يو صفت دي چه سره زر اور نه خوري. دغه شان قرآن پاك دي چه دَ قيامت په ورځ به اور داسې زره نه خوري په كوم كښي چه قرآن پاك محفوظ وي اونه به داسې بدن خوري چه دَ قرآن پاك مطابق عمل كوي.

دَ سرو زرو يو صفت دا هم دي چه زمكه (يعني خاوره) په سرو زرو باندې اثر نه شي كولې دغه شان قرآن دَ خپل خان په كثرت سره لوستلو سره زړيږي نه اونه بل څه بهتر په دې كښي تغير اوتبدل پيداكولې شي. بل سره زر په خلقو كښي يوخوښ او ښكلي څيز دي دغه شان قرآن حكيم هم دَ عزت والاكتاب دي لكه چه دَ الله ﷻ قول دي ﴿وَإِنَّهُ لَكِتَٰبٌ عَزِيزٌ﴾ اوهغه كتاب ډير كم ياب دي. (۲)

مذكوره بحث خودَ سرو زرو دَ اوصاف او اودَدې لفظ سره متعلق وو كه دَدې ذات اودَدې ظاهر طرف ته نظر اوكړې شي نوداَ دنيا ښائست او زينت دې او بل طرف ته قرآن مجيد دَ الله ﷻ دَ وحي په ذريعه نبي كريم ﷺ اودَهغوى امت دَ بادشاهانودَ خزانو مالكان جوړكړل. دَهغوى سره زر او سپين زر او ټول دَ زينت څيزونه دَ امت محمديه قبضه كښي راورسيدل. بيادَ نبي كريم په اتباع باندې دَ سرو زرو محلاتو وعده هم كړې شوې ده. رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلي دي (دَ مؤمن دپاره) به دوه جنتونه وي دكوم لوبني او ټول څيزونه چه به دَ سرو زرو وي. (۳)

او په قرآن پاك كښي دي﴿يُطَافُ عَلَيْهِم بِصِحَافٍ مِّن ذَهَبٍ﴾ يعني او دوى به اخلى ګرځى به دَ سرو زرو ركيبني خپل خان سره. (۴) لكه چه دې سرو زرو (كوم چه دَ طشت په صورت كښي حضورپاك له راوړلې شو) خبرئى وركولو دَهغه سرو زرو كوم چه به په جنت كښي وي اودَ قرآن او وحي الهى اتباع كونكوته به ملاويږي. اودَ دغه سرو زرو اوصاف خبر وركولو دَحق او دَ قرآن پاك دَ اوصاف اودَ سرو زرو لفظ (يعنى ذهب) خبر وركولو دَ آسمان طرف ته دَ اوړلو اودَ حضورپاك نه دَهر قسم ناپاكنى لرې كولو (۵)

**زرو په طشت سره "تحليته المصحف" دپاره دَ جواز استدلال** په دې مقام علامه سهيلي ﷫ تحلية المصحف په جواز باندې استدلال كړې دى لكه چه څنګه په دې موقع باندې دَ حضورپاك زړه مبارك ته دَ غسل وركولودپاره دَ طشت استعمال اوكړې شو دغه شان قران مجيد په سرو زرو سره ښائسته كول هم جائز دى. هم دا په څه تفصيل سره علامه ابن بطال هم ذكركړې دي. (۶)

حافظ ابن حجر ﷫ فرمائى چه دَدې واقعه نه استدلال كولونسره تحلية المصحف ته جائز ونيل محل نظر دى. دَدې دَ جواز دلائل نور دى دا نه دي. ځكه چه دَ دغه سرو زرودَ طشت استعمالونكي فرښتې وې انسانان نه وو. نوچه دَ كومو احكامو هغوى مكلف وې نودَهغې احكاماتو دي انسانان هم مكلف

---

(۱) المستدرك على الصحيحين كتاب التفسير سورة المزمل رقم الحديث: ۳۶۶۵، ۵۴۹/۲.
(۲) سورة حم سجدة: ۴۱.
(۳) صحيح البخاري كتاب التفسير باب سورة الرحمن رقم الحديث: ۴۵۹۷ صحيح مسلم كتاب الإيمان رقم الحديث: ۲۹۶
(۴) سورة الزخرف: ۷۱.
(۵) الروض الأنف لمّ اختير طست من ذهب: ۱۷۵/۲ سبل الهدى والرشاد الباب الرابع عشر: ۹۵/۲-۹۴ شرح العلامة الزرقانى المقصد الخامس فى تخصيصه بخصائص المعراج والإسراء: ۵۸/۸-۵۷ فتح البارى كتاب المناقب الأنصار باب المعراج: ۲۵۷/۷.
(۶) الروض الأنف لمّ اختير طست من ذهب: ۱۷۵/۲ شرح ابن بطال رقم الحديث: ۳۴۹، ۸/۲-۷.

وی ددې دپاره دلیل پکاردې او هغه ندارد دې. بل ددې واقعې په وخت کښې خو هسې هم سره زر استعمالول مباح وو خکه چه د سرو زرو د استعمال دحرمت حکم په مدینه منوره کښې راغلې لهذا دغه مذکوره استدلال صحیح نه دې.(۱)

**قوله: مُمْتَلِیٍ حکمةً وإیماناً، فأفرغَهُ فی صَدْرِیْ ثُمَّ أَطْبَقَهُ:** (هغه طشت، د حکمت او ایمان نه ډك وو (هغه فرښتې ایمان اوحکمت) زما په سینه کښې واچولو اوسینه ئې بنده کړه.

**د ممتلئی مذکر راوړلو توجیه:** د طشت صفت بیانولوسره ئې اوفرمائیل((ممتلئ حکمةً وإیماناً)) حالانکه طشت مؤنث دې او ممتلئی مذکر دې. نو علماء کرامو ددې جواب ورکړې دې چه په دې ځائې کښې ممتلئی د طست صفت نه جوړیږی بلکه معنی طست یعنی د لوښی صفت جوړیږی اوهغه مذکر دې لهذا هیڅ اشکال نشته دې.(۲)

**د حکمت معنی:** د حکمت په معنی کښې دعلماؤ ډیر اقوال دی. مثلاً قرآن مجید، فهم قرآن، خشیت، نبوت، اصابت فی القول والفعل وغیره.(۳)

علامه آلوسی رحمه الله دحکمت په معنی کښې تفصیلی کلام کړې دې. په کوم کښې چه دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما په حواله سره دعقل پوهې او هوښیارتیا معنې بیان کړې دی. اود حضرت مجاهد رحمه الله په حواله سره عقل فقه او اصابت فی القول معنی نقل کړې ده. امام رازی رحمه الله لیکلی دی دعلم مطابق دعمل توفیق ملاویدل حکمت دې. بعض دحکمت نه مراد داسې خبرې اترې اخستې دی د کوم نه چه خلق نصیحت حاصل کړی او هغوی ته په دغه خبرو باندې تنبیه یعنی خبردارې وی. بعض دا وئیلی چه دانسانی طاقت په اندازه د څیزونو د حقیقت پیژندګلونوم حکمت دې.(۴)

تاج العروس کښې لیکلی دی د حکمت نه مراد د الله ﷻ اطاعت د دین پوهه په دې عمل ویره پرهیزګاری د سوچ اوفکر صحیحوالې اود الله ﷻ احکام اودهغې په اتباع کښې غور اوفکر کولونه کار اخستل دی.(۵)ابن سیده لیکلی دی چه د حکمت باره کښې دوه اقوال دی. یو نبوت او بل قرآن. اود حکمت نه مراد قرآن اخستلو باندې داخبره کافی ده چه ټول امت هم د قرآن په ذریعه د جهالت په بدله کښې عمل حاصل کړې دې.(۶)

امام نووی رحمه الله لیکلی دی چه د حکمت په تفسیر کښې ډیر اقوال دی اوهر یو تعریف کونکی په بعض صفاتو باندې اقتصارکړې دې (امام نووی رحمه الله فرمائې چه) مونږ جامع اومانع تعریف کووچه حکمت نوم دې دداسې علم کوم چه احکامو سره متصف وی، د الله ﷻ په معرفت باندې مشتمل وی، او بصیرت، تهذیب نفس، حق، دې سره عمل اود خواهشاتو او باطل نه دبچ کیدو سره ملاؤشوې وی.(۷)

---

(۱) فتح الباری کتاب الصلوة رقم الحدیث: ۳۴۹، ۵۹۷/۱شرح العلامة الزرقانی: ۵۷/۸.

(۲) فتح الباری:۳۴۹، ۵۹۷/۱ إرشادالساری: ۵/۲تحفة الباری: ۲۸۱/۲التوضیح لشرح الجامع لابن ملقن: ۲۳۱/۵.

(۳) تفسیر الطبری، البقرة: ۲۶۹، ۵۷۶/۵.

(۴) روح المعانی لقمان:۱۱-۸۳/۱۲۸۲-۸۲التفسیر الکبیر لقمان:۱۲، ۱۲۷/۲۵تفسیر ابن کثیر: ۱۰۴/۵.

(۵) تاج العروس ماده حکم: ۵۲۹/۳۱.

(۶) المحکم والمحیط الأعظم: ۵۰/۳.

(۷) شرح اللنووی علی المسلم کتاب الإیمان رقم الحدیث: ۸۳، ۲۲۰/۲عمدة القاری: ۶۳/۴إرشاد الساری: ۵/۲تحفة الباری: ۲۸۱/۱فتح الباری: ۵۹۷/۱.

امام نووي رحمه الله دَ حكمت په تفسير كښې دَ ابن دريد رحمه الله قول نقل كړې دې چه هره يوه داسې كلمه چه تاته نصيحت اوكړي او تاخبردار كړي او تادعزت طرف ته ورانديې كړي يا دَهربدكار نه دې منع كړي هغه حكمت دې. (¹)

**دَايمان مطلب**. دَ ايمان لفظ دَ امن نه ماخوذ دې او امن ضد دې دَ ويرې. امن تسلّي او طمانيت ته وائي. دَ ايمان استعمال په څلورو طريقوسره كيږي. يو خودا چه دا متعدي بنفسه وي، كه دَ يومفعول طرف ته وي اوكه دَ دوو مفعولو طرف ته، چه دويم مفعول دَ حرف جر په واسطه سره راوړلې شي يا دَ جرد واسطې نه بغير. دويم صورت دادې چه دَ ايمان صله باء وي هغه وخت به ايمان دَ تصديق په معنى كښې وي.دريم صورت دادې چه دَايمان صله لام وي هغه وخت به دَدې معنى دَانقياد وي.څلورم صورت دادې چه دَ دې صله على وي نوهغه وخت به ايمان دَ اعتماد په معنى كښې استعماليږي دا صورت اقل قليل دې. (²)

دَ ايمان شرعي اواصطلاحي تعريف،په مختلف تعبيرات او مختلف عنوانات سره ډيرو علماؤ كړې دې جمهور علماؤ دَايمان تعريف په دې الفاظوسره كړې دې: "وهوالتصديق بما علم مجئى النبى ﷺ به ضرورة تفصيلاً فيما علم تفصيلاً واجمالاً فيما علم اجمالاً".

مطلب داچه دَحضورپاك ﷺ نه دكومو څيزونو علم بديهى توګه باندې شوې دې دَهغې تصديق كول ايمان دې. كه چرې دَ حضورپاك نه ثبوت اجمالي دې نواجمالي تصديق ضروري دې او كه چرې ثبوت تفصيلي دې نو دَ هغې تصديق په تفصيلي توګه كول ضروري دي. (³)

**په زړه كښې حكمت او ايمان څنګه واچولې شو؟**: علامه سهيلي رحمه الله فرمائي چه په دې ځائې كښې يو سوال پيداكيږي چه دَ سرو زرو په تهال كښې ايمان اوحكمت دَ ډكوالي څه مطلب دې؟ ځكه چه ايمان اوحكمت خو يو عرض او صفت دې چه يوذات سره قائم كيږي او په دې كښې دَ يو ځائي نه بل ځائي ته دَ منتقل كيدو (مثلاً ډكول يا اړول وغيره) ممكن نه دي ځكه چه انتقال وغيره دَ جسم خاصه ده دَ صفت يا عرض نه ده؟ نودَدې جواب دا وركړې شو چه دَدې معنى داده چه په طشت كښې څه داسې څيز وو دكوم په ذريعه چه دَ ايمان كمال اودحكمت كمال كښې زياتوالې حاصليدلې شو اودا خبره ممكن ده چه ددغه طشت ډكيدل په حقيقي توګه وي ځكه چه معاني دَ جسم په شكل كښې اچول ممكن دي. لكه چه په آحاديثوكښې دَسورت بقره اوسورت آل عمران باره كښې راځي (البقرة وآل عمران ظلتان أوغمامتان)، دا دواړه سورتونه (په خپل لوستونكو باندې) به سوري كونكي وي (⁴)

هم دغه شان دَ مرګ باره كښې راځي چه دَ قيامت په ورځ به مرګ راوستلې شي دَ ګډ په شكل كښې او هغه ته به هم مرګ وركړې شي يعني ذبح به كړې شي. (⁵)

---

¹) شرح اللنووى على المسلم كتاب الإيمان رقم الحديث: ۸۳ ۲/ ۲۲۰.

²) دَ ايمان لغوي اصطلاحي شرعي تعريف، دَايمان مختلف صلات سره استعمالات، دَدې مثالونه اودَ نورو علماؤ تعريفات اودَ هر اعتبار نه دَ جامع بيان دَپاره اوګورئ. كشف البارى كتاب الإيمان: ۵۶۱، ۱/ ۵۶۹.

³) روح المعاني، البقرة:۳، ۱/ ۱۱۰.

⁴) أخرجه مسلم فى كتاب صلاة المسافرين، باب فضل قراءة القرآن رقم الحديث:۱۸۷۳والترمذى فى كتاب فضائل القرآن باب ماجاء فى رسوة آل عمران رقم الحديث: ۲۸۸۳.

⁵) أخرجه صاحب المشكوة فى كتاب أحوال القيامة وبدء الخلق فى الفصل الأول رقم الحديث: ۵۵۹۱ وأخرجه البخارى فى صحيحه رقم الحديث: ۶۵۴۸

مطلب چه امر معنوی ته د امر محسوس صورت ورکړې شو دې دپاره چه هريو مشاهده کونکی ته يقيني کيفيت حاصل شي.[1] بل په دې دور کښې خودا خبره نوره هم يقيني کيدو سره مخې ته راغلې ده. مثلاً ګرمئي تودوخي، د بدن د ګرمائش ناپ کول، دهوا رفتار، د زمکې ګردش غرض دا چه هريو غيرمحسوس څيز په حسي انداز کښې محفوظ کولودپاره د زيات نه زيات کوشش کيږی نوهم دغه شان ايمان اوحکمت هم اوګڼرئی.[2]

**ايمان اوحکمت په حقيقت کښې ورکړې شو که حکماً؟** په دې ځانی کښې دا سوال پيداکيږی چه د حضورپاک په زړه مبارک کښې ايمان اوحکمت په حقيقي توګه ورډك کړې شو که داسې حکماً اوفرمائيلې شو؟ نودې په جواب کښې علامه عيني رحمه الله فرمائيلي چه داسې حقيقتاً پيښې شوی ځکه چه معاني دجسد په صورت کښې اچول ممکن دی.لکه چه صبا به په قيامت کښې د اعمالو وزن کيږی.[3]

**قوله: ثُمَّ أَطْبَقَهُ:** حضرت جبرائيل عليه السلام په طشت کښې موجود حکمت او ايمان د رسول الله ﷺ په زړه مبارک کښې ورډك کړه او زړه مبارک ئې ورله بند کړو او په هغې باندې ئې مهر اولګولو لکه چه د يو ډك لوښي خله بنده کړې شی او مهر پرې اولګولې شی ځکه مهر لګولې شوې لوښي محفوظ وی. مطلب دا چه په حضورپاك کښې ئې د نبوت اجزاء راجمع کړل او مهر ئې اولګولو دې دپاره چه په دې باره کښې يودښمن يعنی شيطان وغيره ته لار ملاؤنه شی.[4]

**قوله: ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِي:** بيا جبرائيل عليه السلام زما لاس اونيولو. په دې روايت کښې اختصار دې. ددې سفر رومبې حصه کوم چه د اسراء په نوم سره ياديږی نه ده ذکرکړې شوې. ددې نه بعض خلقو په دې خبره باندې استدلال کړې دې چه د اسراء قصه چرته په بله شپه پيښه شوې ده اودمعراج واقعه په بله شپه کښې.ددې په جواب کښې حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلی چه دا استدلال ټيك نه دې بلکه په دې ځانی کښې به داسې وئيلی شي چه په دې روايت کښې راوی د اختصار نه کاراخستې دې.[5] دمسلم په روايت کښې د اسراء او معراج دواړو ذکر موجود دې.[6]

دويمه خبره په روايت کښې دی «ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِي» ثم د تراخي دپاره راځی لهذا د شق صدر نه پس سينه يوځائی کول اود آسمانونوطرف ته ورختل ددواړو امورو په مينځ کښې د بيت المقدس سفر عين ممکن دې. د کوم قرينه چه ثم جوړيدې شی.حاصل دا شو چه بعض رواة د اسراء واقعه ذکرکړه او بعض رواة ذکرنه کړه.[7]

---

[1] الروض الأنف لم اختير طست من ذهب: ١٧٤/٢ إرشادالساري:٥/٢ تحفة الباري: ٢٨١/١ شرح النووي: ٣٩٠/٢ مرقاة المفاتيح: ٥٥٠/١ بهجة النفوس: ١٨٥/٣ التوضيح: ٢٣١/٥ سبل الهدى والرشاد: ٩٨/٢.

[2] الكنزالمتواري: ١٧/٤ الكوثر الجاري: ٢٨/٢.

[3] عمدة القاري: كتاب مناقب الأنصارباب المعراج رقم الحديث: ٣٨٨٧، ٦٣/٤ شرح الكرماني: ٣/٤ فتح الباري لابن رجب: ٧/٢ شرح العلامة الزرقاني: ٥٩/٨.

[4] عمدة القاري: ٦٣/٤ إرشادالسار ي:٥/٢ التوضيح: ٢٣١/٥.

[5] فتح الباري: ٥٩٨/١-٥٩٧ التوشيح للسيوطي: ٤٥٢/٢ شرح العلامة الزرقاني: ٧٠/٨-٦٩

[6] صحيح مسلم كتاب الإيمان باب الإسراء رقم الحديث: ٢٥٩.

[7] فتح الباري: باب كيف فرضت الصلاة فى الإسراء رقم الحديث: ٣٤٩، ٥٩٨/١ التوشيح للسيوطي: ٤٥٢/٢ شرح المواهب: ٧٠/٨-٦٩

بل دَ امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب قائم کول هم ښائی چه دواړه هم په يوه شپه واقع شوی.(۱) ددې تفصيل دَترجمة الباب دَ مقصد لاندې تيرشوې دې.

**قوله: فَعَرَجَ بِي إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا:** بيائي زه واخستم اودَ دنيادَ آسمان طرف ته ئې اوخيژولم. په دې نسخه کښې فَعَرَجَ بِيْ دې.اودکشميهنی رحمه الله په روايت کښې دَ بِيْ په ځائې بِهٖ يعنی دَمتکلم نه دَ غائب طرف ته التفات سره ذکر کړې شوې دې. (۲)

عَرَجَ دَصعد په معنی کښې دې دکوم مطلب چه ختل او اوچتيدلو راخي. دا دَ نَصَرَ يَنْصُرُ نه فعل ماضی دې. يعنی عَرَجَ يَعْرُجُ عُرُوْجًا او معراج دَ اسم آله صيغه يعنی آله صعود کوم چه پاړنی ته ونيلی شی. ددې په عموم کښې دَ معراج په سفرکښې دَ حضورپاك سورلی براق هم داخليږی.(۳)

**دنياوی اسمان:** السَّمَاءُ مذکر اومؤنث دواړه شان استعماليدې شی. علامه ابن ملقن رحمه الله دَ علامه ابن حزم رحمه الله قول نقل کړې دې چه آسمان دَ انبياء کرامو نه علاوه بل هيڅ بشر نه دې ليدلې. په دې روايت کښې دَ السماء صفت الدنيا راورلې شوې دې. دنيا دَ فعلی په وزن باندې الدُّنُوُّ نه ماخوذ دې. اودَ دُنُوٌّ مطلب قرب دې لهذا رومبې آسمان په الدنياسره يادول دَدغه آسمان په زمکه باندې اوسيدونکوته دَ نيزدې کيدو په وجه دې او په يو روايت کښې سماءالدنيا اضافت سره هم دې.(۴)

**دَ اسمانونو پيروالې:** ابن عساکر رحمه الله دَحضرت عبدالله ابن مسعود او ابن عباس رضی الله عنهم نه روايت کړې دې چه الله ﷻ دَ دنيا آسمان دَموج مکفوف اودرولې شوې چپې نه پيدا کړې. يوبل ځائې کښې دی چه دَ لوګی او اوبونه ئې پيدکړې. بيائې په دې آسمان کښې نمر اوسپوږمئی کيخودل او دَ ستورو په ذريعه ئې دَشيطانانونه ددې حفاظت اوکړو. (۵) دا آسمان دَ الر قيع، سقف محفوظ او موج مکفوف په نوم سره هم يادولې شی. دَ زمکې او آسمان په مينځ کښې دَ پنځو سوو کالو دَمسافت سفر دې اوهم دغه شان دَهر آسمان په مينځ کښې هم دومره مسافت دې.(۶)

**ايا دَ اسمان دروازې هم شته؟:** علامه ابن ملقن رحمه الله او نورو داسې ډير علماء کرامو ذکر کړې دې چه په آسمان کښې دروازې دی. ددې دَ حفاظت دپاره فرښتې مقرردی. هيڅ څوك تلونکې راتلونکې بښکته پورته نه شی راتلې. ابن ابی جمرة رحمه الله ليکلی دی دې نه معلومه شوه چه دَ چاباره کښې الله ﷻ غواړی صرف هم هغه پورته تلې شی يعنی دَ دې ځائې نه دَ الله ﷻ دَ عظيم قدرت ظهورکيږی.(۷)

**دَ دنيا دَ اسمان دَ فرښتې نوم:** په مذکوره روايت کښې دی چه زه ئې دَ دنيا آسمان طرف ته بوتلم حو په

---

(۱) شرح صحيح البخاری لابن رجب: ۵/۲فيض البارى:۵/۲فتح البارى: ۵۶۹/۱سبل الهدى والرشاد:۶۸/۳

(۲) فتح البارى: باب كيف فرضت الصلاة فى الإسراء ۵۹۸/۱-۵۹۷إرشاد السارى:۵/۲التوشيح للسيوطى:۴۵۲/۲.

(۳) الصحاح للجوهرى ص: ۶۸۶النهاية فى غريب الاثر: ۱۷۹/۲-۱۷۸عمدة القارى: ۶۸/۴ التوضيح لابن ملقن: ۲۳۵/۲شرح النووى على مسلم:۳۸۶/۲مرقات المفاتيح: ۵۶۰/۱۰.

(۴) التوضيح لابن ملقن:۶۳۵ ۶۳۸/۶الذخيرة العقبى:۴۲/۶.

(۵) كنزالعمال خلق السماء والسحاب رقم الحديث: ۱۵۱۸۴، ۶/۵۸

(۶) سنن الترمذى باب صفة الثياب أهل الجنة رقم الحديث: ۲۵۴۰ إتحاف الخيرة المهرة باب ماجاء فى خلق السموات رقم الحديث: ۵۵۸۵، ۱۶۵/۶كنزالعمال رقم الحديث: ۱۵۱۸۵.

(۷)التوضيح لابن ملقن: ۶۳۸/۶إكمال المعلم: ۵۰۱/۱السراج الوهاج: ۱۰۶/۱بهجة النفوس: ۱۹۵/۳ الكنز المتوارى :۸/۴.

يو روايت كښې راځي چه د آسمان د دروازو نه نى د يوې دروازې طرف ته بوتلم. حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلى دى چه د دغه دروازې نوم باب الحفظة دې. په دې باندې يوه فرښته مقرر ده دكوم نوم چه اسماعيل دې. د دې لاندې دوولس زره فرښتې دى.(١)

**قوله:: فَلَمَّا جِئْتُ السَّمَاءَ الدُّنْيَا، قَالَ جِبْرِيلُ لِخَازِنِ السَّمَاءِ افْتَحْ، قَالَ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ، قَالَ: هَلْ مَعَكَ أَحَدٌ؟ قَالَ: نَعَمْ، مَعِي مُحَمَّدٌ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:** بيا چه زه كله ددنيا اسمان ته اورسيدم نو جبرائيل عليه السلام د اسمان (په دروازه باندې متعين) پهره دار ته اووئيل دروازه كولاؤكړه. هغه (پهره دار) اووئيل څوك دى؟ هغه جواب وركړو (زه) جبرائيل هغه تپوس اوكړو چه تاسره نورهم څوك شته؟ نو جبرائيل عليه السلام جواب وركړو او زماسره حضرت محمد ﷺ دې.

**قوله:: اِفْتَحْ:** په دې ځاى كښې مفعول محذوف دې يعنى افتح الباب دروازه كولاؤكړه. د دې نه معلومه شوه چه د آسمان دروازې هم دى او په دغه دروازو باندې باقاعده نگرانان هم متعين دى.

دويمه خبره دامعلومه شوه چه دروازه بنده وه هغه كولاؤ كړې شوه. په دې كښې دحضورپاك زيات اعزاز اواكرام وو چه باقاعده دحضورپاك دپاره دروازه كولاؤ كړې شوه په خلاف د دې چه كه دروازه كولاؤ وه نوداخبره به نه وه بلكه په دې كښې خو به څه د بې ادبئ شك هم وو اوهغه داسې چه د دروازې د كولاويدو نه باوجود دومره لويه هستى اودرول او پوښتنه كول.(٢)

**ددربان دسوال په جواب كښې څه وئيل پكاردى؟** په دې ځاى كښې يو ادب معلوم شوچه كه د چا دروازه اوټكولې شى او د كور والاسوال اوكړى چه دروازه كښې څوك دې؟ نو په جواب كښې داسې لفظ وئيل پكاردى چه دكوروالامخې ته راتلونكى بنه شان سره پيژندگلو اوشى لكه څنگه چه حضرت جبرائيل عليه السلام خپل نوم په جواب كښې ذكركړو. علماء كرامو په دې مقام باندې داخبره هم كړې ده چه په نوم كښې هم خپل نوم داسې ښكاره كړې شى چه د سړى پوره شخصيت واضحه شى. او چونكه په فرښتوكښې د جبرائيل د نوم بله فرښته نه وه په دې وجه هغه صرف جبرائيل وئيل كافى اوگنړل گنى دې سره نور هم څه ملاوول وو.

د دې نه علاوه د سوال كونكى په جواب كښې د خپل نوم اخستلو په ځاى "زه يم" وئيل صحيح نه دى داسې وينا كونكى باندې د الله ﷻ رسول ﷺ نكير كړې دې.(٣)

حضرت جابر رضي الله عنه فرمائى چه (يوځل) ما د نبى كريم ﷺ دروازه اوټكوله. حضورپاك معلومات اوكړو چه څوك؟ ما په جواب كښې اووئيل زه يم، نو په دې باندې حضورپاك د خفگان اظهار كولوسره اوفرمائيل زه يم زه يم.(٤)

**په جسمانى معراج باندې يوبل دليل:** دجبرائيل عليه السلام ددروازې كولاوولونه معلوميږى چه دحضورپاك معراج جسمانى وو نه چه روحانى گنى د دروازې كولاوولوهډو ضرورت نه ووهم داسې به تيرشوى وو.(١)

(١) إتحاف الخيرة المهرة كتاب الإيمان رقم الحديث: ١٤٦، ١٤٧/١دلائل النبوة للبيهقي: ٣٩١/٢ فتح البارى باب المعراج: ٢٦٢/٧عمدة القارى:باب المعراج: ٣٣/١٧شرح العلامة الزرقانى: ١١٧/٨.

(٢) عمدة القارى: ٦٤/٤فتح البارى: ٥٩٨/١التوشيح للسيوطى: ٤٥٢/٢الكنزالمتوارى: ٨/٤سبل الهدى والرشاد: ١٤٩/٣شرح العلامة الزرقانى: ١١٩/٨.

(٣) صحيح البخارى كتاب الاستئذان باب إذا قال: من ذا فقال أنا رقم الحديث: ٦٢٥٠

(٤) فتح البارى: ٥٩٨/١إرشادالسارى: ٦/٢سبل الهدى والرشاد: ١١٩/٣الكنزالمتوارى: ٨/٤

**قوله:: هَلْ مَعَكَ أحدٌ؟:** فرښتو دَ حضرت جبرائيل عليه السلام نه سوال اوكړو آيا تاسوسره بل څوك هم دي؟ سوال دادي چه هغوى ته دَدې خبرې احساس څنګه اوشو چه دوى سره بل څوك هم دې؟
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا احساس يا خودَ شاهد دَ وجې نه اوشو يا په دې موقع باندې انوار او بركاتو كښې زياتوالې محسوس كولوسره هغوى داخبره محسوس كړه چه دوى سره بل څوك هم دى.(۲)

**قوله:: محمد" صلى الله عليه وسلم:** دَ فرښتې دَ سوال په جواب كښې حضرت جبرائيل عليه السلام جواب وركړو چه ما سره محمد ﷺ دې. دا جواب دَدې خبرې دليل دې چه دَ كنيت نه زيات دَ حضورپاك نوم مبارك زيات مشهور دې. په دې وجه په جواب كښې دَ كنيت په ځائې اسم ذكركړې شو ځكه چه حضورِ پاك هم په دې نوم سره په ټولو جهانونو كښې مشهور اومعروف وو. كه چرې كنيت دَنوم نه زيات دَ عزت والاوې نو په جواب كښې به ئې كنيت ذكر كولو.(۳)

**قوله:: فقال: أأُرسِلَ إليه؟ قال: نعَمْ:** دربارن فرښتې تپوس اوكړوچه آيا حضورپاك ته پيغام ورليګلوسره راغوښتلې شوې دې؟ نوجبرائيل عليه السلام جواب وركړو چه او.
**ايا دَ فرښتې سوال دَ رسالت باره كښې وو؟:** دَ فرښتې دَ مذكوره سوال دَ وجې نه بعض علماؤ دَ طرف نه داخبره كړې شوې ده چه دا سوال دَ حضورپاك دَبعثت سره متعلق وو چه آيا حضورپاك مبعوث شوې دې؟ ځكه چه دومره خبره خو هغوى ته معلومه شوې وه چه دَ حضورپاك بعثت كيدل دى البته كله به كيږى؟ په دې باره كښې دَ كثرت مشاغل دَ وجې نه هغوى ته دا معلومه نه وه نو په دې موقع باندې هغوى دا سوال اوكړو.ليكن دَ جمهور علماؤ دَ طرف نه دا جواب وركړې شوې دې چه دا خبره ټيك نه ده ځكه چه دَحضورپاك ﷺ دَ بعثت خبر خو هرطرف ته خورشوې وو. په آسمانونو باندې دَ جناتو او شيطانانو تګ منع كړې شوې وواوسركش شياطين به په ستورو ويشتلوسره تختولې شونودا څنګه ممكن وه؟ چه دَ آسمانونو دربانانوته داخبره معلومه نه وى. حقيقت دادې چه سوال دَ بعثت باره كښې نه وو بلكه دې باره كښې وو چه آيا دَحضورپاك ﷺ طرف ته پيغام ليګلوسره راغوښتلې شوې دې؟
علامه كرمانى رحمه الله ليكلې دى دا سوال دَ تعجب دَ اظهارد پاره وو چه الله ﷻ په خپل يو بنده باندې دومره لوئى انعام اوكړو يا بيا دَ زيرى په توګه دا ووچه ترننه پورې يوكس ته دومره لوى عزت نه دې حاصل شوې چه څومره دَحضورپاك ﷺ درجه لويه ده چه حضورپاك ﷺ پخپله راغوښتلې شوې ماشاء الله كان (۴)

**قوله:: فلمّا فتحَ علَوْنا السّماءَ الدنيا، فإذا رجُلٌ قاعدٌ على يمينه أسْودَةٌ وعلى يسارِه أسودَةٌ، إذانظَرَ قِبَلَ يمينه ضَحِكَ، وأذانظَر قبلَ يَسارِه، بكَ:** بيا چه كله دروازه كولاؤكړې شوه نومونږ دَ دنيا آسمان ته ورا وختلو نوهلته مونږ يو سړې اوليدلو چه ناست وو. دَهغه ښى طرف ته څه تت شان

---

۱) عمدة القارى: ٤/٦٤التوضيح: ٦/٢٣٧الكنزالمتوارى: ٤/٨
۲) فتح البارى:٧/٢٦٢شر ح العلامة الزرقانى:٨/١٢٢٢سبل الهدى والرشاد:٣/١١٩.
۳) عمدة القارى: ٣/٣٤سبل الهدى والرشاد: ٣/١٢٠.
۴) شرح الكرمانى: ٤/٥عمدة القارى: ٣/٣٤ فتح البارى:١/٥٩٨فتح البارى لابن رجب:٢/٧ الكوثرالجارى: ٢/٢٩إرشادالسارى: ٢/٦الكنزالمتوارى: ٤/٨ المفهم: ١/٣٨٩إكمال المعلم: ١/٥٠٢الر وض الأنف: ٣/٤٣٢بهجة النفوس: ٢/١٩٥سبل الهدى والرشاد: ٣/١٢٠-١١٩.

شکلونه وو او کس طرف ته هم څه تت غونډي شکلونه وو. کله چه به هغه خپل ښی طرف ته کتل نومسکې کیدو به او کله چه به نې گس طرف ته کتل نو ژړیدلو به. هغوی «ماته په کتو سره» اوونیل "مرحبا بالنبی الصالح والابن الصالح" بخیر راغلې اې صالح نبی اواې صالح خويه. ما د جبرائیل علیه السلام نه تپوس اوکړو دا څوك دې هغوی اوونیل آدم علیه السلام دې. اودا د دوی ښی او گس طرف ته چه کوم خلق دی د دوی اولاد دې. ښی طرف ته جنتی روحونه دی او گس طرف ته جهنمی روحونه دی. په دې وجه چه هغه کله خپل ښی طرف ته او گوری نو مسکې شی کله چه خپل گس طرف ته گوری نو ژاړی.

**د اسودة لغوی تحقیق:** أسودة د سواد جمع ده لکه أزمنة چه د زمان جمع ده. د دې مطلب سرې دې چه کله یو څیز د لرې نه اولیدلې شی نوهغه د تور په شان معلومیږی یعنی تت تت. دغه شان د هغې په شکلونو کښې فرق نه شی کیدې. په مذکوره قصه کښې روحونو ته د أسودة ونیلو وجه هم دغه ده چه په هغې کښې د شکلونو په اعتبار سره فرق ممکن نه وو بس صرف تت تت سوری شان معلومیدل.[1]

**د مرحبا تحقیق:** دا د "رُحِبَ يَرْحَبُ" نه ظرف صیغه ده. د کوم مطلب چه ارت خائی دې. دا کلمه د راتلونکی د خوشحالولو د پاره ونیلې شی. دا کلمه د فعل محذوف د پاره ظرف مکان کیدو سره به مفعول فیه واقع کیږی، یعنی "رحبت مرحبا" تاسو به دغه خائی کولاؤ اوموموئی.[2]

**د النبی الصالح ونیل حکمت:** حضرت آدم علیه السلام نبی کریم ﷺ ته "بالنبی الصالح" ونیلو سره مخاطب کړو. په دې خطاب کښې د نبی کریم ﷺ ډیر عظیم الشان تعریف کړې شوې دې. هغه داسې چه د نبوت صفت سره وصف صلاح جمع کړې شو یعنی په دې خطاب کښې رسول الله ﷺ ته د دې وصف په ذریعه فضیلت ور او ښخنیلې شو.

په دې مقام علماء کرام فرمائې چه د انبیاء کرامو صلاح، د عامو انسانانو د صلاح نه جدا او خاص ده. د دې خبرې دلیل دا دې چه د انبیاء کرامو په ادعیه کښې ملاویږی چه هغوی په صالحین کښې د داخلیدلو خواهش اوکړو حالانکه اعلی د ادنې خواهش نه شی کولې او په دې خبره کښې څو څه اختلاف نشته دې چه نبوت د عامو انسانانو د صلاح نه اعلې دې. لهذا دا امر به محقق شی چه د انبیاء کرامو صلاح خاص او د اوچتې درجې صلاح ده د کومې د حاصلولو ارزو او خواهش چه د نبی کریم ﷺ د کلام نه معلومیږی.

**د صلاح مطلب:** صلاح د هغه وصف نوم دې په کوم سره چه صفت کړې شوې سړې په خپل ځان باندې لازم کړې شوی ټول حقوق الله او حقوق العباد پوره پوره اداکونکې وی او دا یو داسې جامع لفظ دې چه هر قسم ښکلې خصلت په کښې شامل دې. هم په دې وجه چا حضور پاك ته النبی الصادق او النبی الأمین ونیلو سره نه دې مخاطب کړې ځکه چه د صالح لفظ په ټولو صفاتو باندې حاوی وو.[3]

---

[1] النهاية فى غريب الحديث والأثر، مادة "سود": ۸۲۱/۱ فتح البارى: ۵۹۸/۱ شرح الكرمانى: ۵/۴ عمدة القارى: ۶۴/۴ إرشادالسارى: ۶/۲ فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ۸/۲ الكوثرالجارى: ۲۹/۲ شرح العلامة الزرقانى: ۱۲۴/۸ الكنزالمتوارى: ۸/۴.

[2] معجم الصحاح ص: ۳۹۴ النهاية فى غريب الحديث والأثر، ۶۴۳/۱ عمدة القارى: ۶۴/۴ إرشادالسارى: ۶/۲ الكوثر الجارى: ۳۰/۲ شرح العلامة الزرقانى: ۱۲۳/۸.

[3] سبل الهدى والرشاد: ۱۲۲/۳-۱۲۳ عمدة القارى: ۶۴/۴ فتح البارى: ۲۶۳/۷ إرشادالسارى: ۶/۲ شرح العلامة الزرقانى: ۱۲۴/۸.

**دَ ابن الصالح وئيلوحكمت:** علامه عيني رحمه الله ليکلي دي چه حضرت آدم عليه السلام دَ فخر په توګه حضور پاك ته ابن صالح وئيلوسره هم مخاطب کړي ځکه چه حضورپاك هم دَهغوي دَ اولاد نه دي.[1]

**قوله:: قلت لجبريل من هذا؟:** دَدي روايت نه معلوميږي چه اول حضرت آدم عليه السلام نبي کريم ﷺ ته پخير راغلي اووئيل. بيا حضورپاك دَحضرت جبرائيل عليه السلام نه دَدوي باره کښي معلومات اوکړه چه داڅوك دي؟ کله چه دَ مالك بن صعصعه رضي الله عنه والا روايت چه په كتاب المناقب کښې دَ باب المعراج لاندې موجود دي کښې دي دَ حضورپاك اول نه دَهغوي باره کښې معلومه کړه دَهغې نه پس حضرت آدم عليه السلام حضورپاك ته مرحبا اووئيل.

چنانچه ابن حجر رحمه الله فرمائيلي دي چه اصل ترتيب هم هغه دې کوم چه دَ مالك بن صعصعه رضي الله عنه په روايت کښې دې. په دې روايت کښې وړاندېوالې روستووالې واقع شوې دې.حضورپاك "قلت لجبريل" اووئيل "فقلت لجبريل" نې نه دې وئيلې کوم چه په ترتيب باندې دلالت کوي. لهذا راجح خبره هم هغه جوړيږي کومه چه حضرت مالك بن صعصعه رضي الله عنه والا روايت کښې ده.[2]

**قوله:: "نَسَمُ بنيه":** نَسَم دَ نون او سين فتح سره دې. دا جمع ده دَدې واحد النَّسَمَةُ دې. روح ته النسمة وائي. مراددَدې نه دَحضرت آدم عليه السلام دَ اولادروحونه دي. حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلي دي چه دَابن التين په روايت کښې دَ شين کسره او ياء فتح سره نَشِيَمْ دې.[3]

**دَکافرانو روحونه اسمان ته څنګه اورسيدل؟:** نبي کريم ﷺ دَ حضرت آدم عليه السلام ښي اوګس طرف ته دَ مؤمنانو او کافرانو روحونه اوليدل. په دې قاضي عياض رحمه الله فرمائي[4] چه په دې خبره کښې دلالت دې چه دَ جهنميانو روحونه په سجين کښې دي اودَ مؤمنانوروحونه دَ جنت په انعامونوکښې دي نو بيا دواړه قسم روحونه په آسمان کښې څنګه راجمع شو؟

بيانی دَدې خبرې داجواب ورکړوچه په دې خبره کښې احتمال دې چه دادَدوزخيانو روحونه په مختلف وختونوکښې به حضرت آدم عليه السلام ته پيش کيدل. بياچه کله حضورپاك پورته تشريف يوړو نو هم دغه وخت کښې دَ دې روحونودَ پيش کيدو وخت وو اودغه شان رسول الله ﷺ دغه روحونه هلته اوليدل.

**يواشکال اودَهغې جواب:** په مذکوره جواب باندې يو اشکال کيدې شي چه دَ کافرانودَ روحونودَپاره خودَ آسمان دروازې کولاوولې نه شي بيا هغه پور ته څنګه اورسيدل؟ نودَدې دا جواب ورکړې شوچه جنت دَ آدم عليه السلام ښي طرف ته دې او دوزخ ګس طرف ته نودَ هغه ځائي نه به دَ دوزخيانو حالت په آدم عليه السلام باندې منکشف کيدلو.

دويم جواب دا ورکړې شو چه دا روحونه هغه وو چه تردغه وخته په اجسام کښې نه وو داخل کړې شوي دَهغوي مستقر دَ آدم عليه السلام ښي او ګس طرف ته وو.الله ﷻ دمستقبل دحالاتوپه اعتبار سره دَدوي جنتي او دوزخي کيدل حضرت آدم عليه السلام ته خودلي وو. هم په د وجه چه هغوي به ښي طرف ته کتل نو

---

[1] عمدة القاري: ۳٤/۱۷سبل الهدى والرشاد: ۱۲۰/۳.

[2] فتح الباري: ۵۹۸/۱سبل الهدى والرشاد: ۱۲۰/۳شرح العلامة الزرقاني:۱۲۵/۸.

[3] فتح الباري: ۵۹۸/۱عمدة القاري: ٦٤/٤فتح الباري لابن رجب الحنبلي: ۸/۲إرشادالساري: الكوثر الجاري: ۳۰/۲الكنز المتواري: ۸/٤فيض الباري: ۵/۲.

[4] إكمال المعلم لقاضي عياض: ۵۰۳/۱.

خوشحاليدو به او گس طرف ته كتو باندې به خفه كيدو.
په رومبى جواب كښې دومره خبره پاتې كيږي چه جنت خو په آسمان كښې دې اودوزخ د زمكې لاندې بيا هغوى ښي او گس طرف ته څنګه اوكتل؟ نودې دا جواب وركړې شو چه دا جهالت په زمكه كښې دې په آسمان كښې نه دې د جنت او دوزخ په اعتبارسره نى ښې اوگس طرف خودلې شوى.[1]

**قوله:: حتى عرج بى، إلى السماء الثانية، فقال لخازنها: افتح. فقال له خازنها مثل ما قال الأول، ففتح:** يعنى تردې چه حضرت جبرائيل عليه السلام زه خان سره كړم او دويم آسمان طرف ته اوختلو بيائى د دويم اسمان دربان ته اووئيل دروازه كولاؤ كړه نو ددې آسمان دربان فرښتې هم هغه شان سوال اوكړو څنګه چه د رومبى آسمان فرښتې كړې وو. بيا هغې دروازه كولاؤ كړه.

**قوله:: قال أنس: فذكر أنه وجد فى السموات آدم وادريس وموسى وعيسى وابراهيم صلوات الله عليهم، ولم يثبت كيف منازلهم:** يعنى حضرت انس رضي الله عنه اوفرمائيل چه حضرت ابوذر رضي الله عنه اوفرمائيل چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم په اسمانونوكښې حضرت آدم عليه السلام حضرت ادريس عليه السلام حضرت موسى عليه السلام حضرت عيسى عليه السلام اوحضرت ابراهيم عليه السلام اوليدل (ليكن) هغوى د انبياء كرام عليهم السلام (په آسمانونوكښې) منازل بيان نه كړل. (چه كوم يونبى په كوم آسمان باندې وو).

**قوله:: غيرأنه وجد آدم فى السماء الدنيا، وابراهيم فى السماء السادسة:** حضرت انس رضي الله عنه اوفرمائيل چه، حضرت ابوذر رضي الله عنه داخبره ذكركړه چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم د دنيا په اسمان كښې حضرت آدم عليه السلام سره ملاقات اوكړو او په شپږم آسمان كښې حضرت ابراهيم عليه السلام سره.

**قوله:: لم يثبت منازلهم:** په دې مقام باندې حضرت انس رضي الله عنه دحضرت ابوذر رضي الله عنه په ذكرشوى روايت باندې خپله تبصره نقل كوى فرمائى چه هغوى د هر نبى دپاره آسمان معين ذكرنه كړو علاوه ددې نه چه آدم عليه السلام سره د دنيا په آسمان كښې ملاقات اوشو او حضرت ابراهيم عليه السلام سره په شپږم آسمان كښې ملاقات اوشو. په صحيحين كښې دحضرت انس رضي الله عنه روايت (كوم چه د حضرت مالك بن صعصعه نه نقل كوى) كښې دى[2] چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم د دنيا په آسمان كښې حضرت آدم عليه السلام سره ملاقات اوكړو (دومره خبره خو د ټولو رواياتو مطابق متفق عليه ده) او دويم آسمان كښې حضرت عيسى عليه السلام او حضرت يحيى عليه السلام دريم آسمان كښې حضرت يوسف عليه السلام څلورم آسمان كښې حضرت ادريس عليه السلام پنځم آسمان كښې حضرت هارون عليه السلام شپږم آسمان كښې حضرت موسى عليه السلام او په اووم آسمان كښې حضرت ابراهيم عليه السلام سره ملاقات اوكړو.

مذكوره روايت اوحديث باب د حضرت ابوذر رضي الله عنه په دې باره كښې مخالف دې چه حضرت ابراهيم عليه السلام په شپږم آسمان كښې وو كه په اووم كښې؟ ددې جواب وركولوسره وئيلې شوى كه چرې معراج د ير خل وى نوبيا خو څه اشكال نشته چه يو خل په شپږم آسمان كښې وو او په دويم خل په اووم آسمان

[1] فتح البارى:۵۹۸/۱ عمدة القارى:۶۴/۴ إرشادالسارى:۶/۲فتح البارى لابن رجب الحنبلى:۸/۲ الكوثرالجارى:۲۹/۲شرح العلامة الزرقانى: ۱۲۵/۸سبل الهدى والرشاد: ۱۲۱/۳الكنزالمتوارى: ۹/۴فيض البارى:۵/۲التوضيح لابن ملقن: ۲۴۰/۵.

[2] صحيح البخارى كتاب بدء الخلق باب ذكر الملائكة رقم الحديث: ۳۲۰۷صحيح مسلم كتاب الإيمان باب الإسراء رقم الحديث: ۱۶۴.

كښې به دې دوارو آسمانونوكښې يو دَدوى وطن او دَ قيام ځائې وو او بل آسمان دَ دوى دپاره غيروطن وو
اوكه چرې معراج هم يو ځل اومنلې شى (لكه چه دَ جمهورو مسلك دې) نو وئيلې به شى چه په رومبى ځل ئې هم په شپږم آسمان كښې اوليدلو اوبيا هغوى حضورپاك سره دَ اووم آسمان طرف ته لاړل
يو جواب دا هم وركړې شوې دې چه په معراج كښې دَحضرت ابراهيم عليه السلام دكتلو باره كښې راجح خبره داده چه حضورپاك هغوى بيت المعمور سره ډډه لګولوسره اوليدلو او بيت المعمور په اووم آسمان كښې دې لهذاحضرت ابراهيم عليه السلام هم په اووم آسمان كښې وو دَدې خبرې قائل دا خبره بغيرد څه ويرې وئيلو سره نقل كړې ده. علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دې خبرې ته بغير دَ څه ويرې وئيل صحيح نه دى ځكه چه دَحضرت ابراهيم عليه السلام باره كښې درې قسم روايات دى. په رومبى كښې دى چه حضورپاك هغوى دَ دنيا په آسمان كښې اوليدلو او دويم كښې دى چه په شپږم آسمان كښې او دريم روايت كښې په اووم آسمان كښې. په دې باندې اووئيلې شو چه په دې رواياتوكښې خو منافات دې دا ټول به څنګه جمع كيږى؟ يا په دې كښې به ترجيح كوم يوته وى؟
نودې جواب دا وركړې شوچه ددې خبرې احتمال دې چه الله ﷻ هغوى دَمعراج په شپه شپږم آسمان ته راؤغوښتل. دَهغه ځائې نه دَ نبى كريم ﷺ په اعزازكښې دَ اووم آسمان پورې لاړل بيا هغوى دَ دنيا آسمان ته واپس راؤكرځولې شو(١)

**قوله: قال أنس فلمّا مرّ جبريل بالنبي ﷺ بإدريس، قال: مرحباً بالنبي الصالح والأخ الصالح، فقلت: من هذا؟ قال: هذا إدريس، ثم مررتُ بموسى، فقال مرحباً بالنبي الصالح والأخ الصالح، قلت: من هذا؟ قال: هذا موسى، ثم مررتُ بعيسى، فقال: مرحباً بالأخ الصالح والنبي الصالح، قلت: من هذا؟ قال: هذا عيسى، ثم مررت بإبراهيم، فقال: مرحباً بالنبي الصالح والابن الصالح، قلت: من هذا؟ قال: هذا إبراهيم**: حضرت انس رضى الله عنه بيان اوكړو چه كله حضرت جبرائيل عليه السلام نبى كريم ﷺ سره دَ حضرت ادريس عليه السلام خواكې تيريدو نوهغه "مرحباً بالنبي الصالح والأخ الصالح" (پخير راغلې اې نبى صالح او اې روره صالح) اووئيل (حضورپاك فرمائى چه) ما دَحضرت جبرائيل عليه السلام نه) تپوس اوكړو دا څوك دې؟ جبرائيل عليه السلام اووئيل داحضرت ادريس عليه السلام دې بيازه موسى عليه السلام سره تيريدم نوهغوى (زه په ليدوسره) اووئيل "مرحباً بالنبي الصالح والأخ الصالح" ما دَ (جبرائيل عليه السلام نه) تپوس اوكړو دا څوك دې؟ جبرائيل عليه السلام اووئيل دا موسى عليه السلام دې بيا زه حضرت عيسى عليه السلام سره تيريدم نوهغوى اووئيل (مرحباً بالأخ الصالح والنبي الصالح) مادَ (حضرت جبرائيل عليه السلام نه)تپوس اوكړو دا څوك دې؟ جبرائيل عليه السلام جواب راكړو دا عيسى عليه السلام دې. بيا زه حضرت ابراهيم عليه السلام سره تيريدم نوهغوى (زما په ليدو سره) اووئيل "مرحباً بالنبي الصالح والابن الصالح" (پخير راغلې اې صالح نبى او صالح خويه) ما دَ (جبرائيل عليه السلام نه) تپوس اوكړو دا څوك دې؟ جبرائيل عليه السلام اووئيل دا حضرت ابراهيم عليه السلام دې.

(١) التوضيح لابن ملقن: ٢٤٣/٥-٢٤٢ شرح الكرمانى: ٤/٤ الروض الأنف: ٣٤٥/٣ فتح البارى: ٥٩٩/١ عمدة القارى: ٦٥/٤ فتح البارى لابن رجب: ٨/٢ مرقاة المفاتيح: ٥٦٥/١٠.

**قوله: قال أنس:** په ظاهره دَدې نه پس راتلونکې عبارت حضرت انس ﷺ دَ حضرت ابوذر ﷺ نه نه دې اوريدلې بلکه هغوی پخپله دَ نورو راويانو نه اوريدلې شوې تفصيل نقل کړې دې.[1]

**قوله: فلما مرّ جبريل بالنبي بإدريس:** په دې جمله کښې چه په "النبي" باندې کومه باء داخله ده هغه دمصاحبة دپاره ده او په ادريس باندې داخليدونکې باء الصاق دپاره ده. يا دَ علي په معنی کښې ده او دواړه باء به "مرّ" سره متعلق وی. ترجمه به داشی جبرائيل نبی کريم ﷺ سره دحضرت ادريس خوا کې تيرشو.[2]

**قوله: مرحباً بالأخ الصالح:** کوم وخت چه حضورپاك حضرت ادريس عليه السلام سره تيرشوې وو نوهغوی "مرحباً بالأخ الصالح" يعنی پخير راغلې اې صالح رور ونيلو سره مخاطب کړو. دلته دا سوال پيدا کيږی چه هغوی دَ حضرت آدم عليه السلام او حضرت ابراهيم عليه السلام په شان صالح خونی ونيلو سره خطاب ولې اونه کړو؟

دَدې جواب دا ورکړې شوې چه دَحضورپاك په آباء او اجداد کښې دَحضرت ادريس عليه السلام کيدو يا نه کيدو کښې اختلاف دې کوم چه علامه زرقانی رحمه الله په تفصيل سره ذکر کړې دې. چنانچه که چرې هغه دَ حضورپاك په آباء او اجداد کښې داخل نه وی نوبيا خو معامله واضحه شوه اوکه چرې داخل وی نوبيابه داخطاب په دې باندې محمول کولې شی چه هغوی داسې دَ اسلامی او نبوی اخوت په وجه اوونيل په دې وجه داسې ونيلوکښې هيڅ حرج نشته دې. لهذا هيڅ دَ اشکال والاخبره نشته دې.[3]

**يواشکال اودهغې جواب:** پدې روايت کښې تيرشوچه حضرت ابوذر ﷺ دَ پيغمبرانو عليهم السلام په آسمانونو کښې منازل نه دی بيان کړی حالانکه هم دَدې روايت په آخره کښې "ثمّ" سره دَ انبياء منازل په متعين توګه مخې ته راځی نوبيا دَ روايت دا الفاظ ((لم يثبت کيف منازلهم)) محمل به څه وی؟

دَدې داجواب ورکړې شوې دې چه دَانبياء دَ آسمانی مکان باره کښې "ثمّ" سره چه کوم ترتيب راځی هغه دَحضرت ابوذر ﷺ بيان کړې شوې نه دې بلکه دَحضرت انس ﷺ بيان کړې شوې دې. لهذا څه اشکال نه پاتې کيږی.

دويم جواب دا ورکړې شو چه دې ځائی کښې "ثمّ" دَ ترتيب زمانی يا مکانی دپاره نه دې بلکه دَ ترتيب اخباری دپاره دې. په دې وجه په دې ځائی کښې اول دَحضرت موسی عليه السلام سره ملاقات ذکرکړې شوې دې بيا دَحضرت عيسی سره دَ ملاقات ذکرکړې. حالانکه ټول روايات په دې باندې متفق دی چه حضرت عيسی عليه السلام سره اول ملاقات شوې اوحضرت موسی عليه السلام سره روستو.

بله داخبره ده چه ابهام خو دَ "ثمّ" باوجود دې اوهغه داسې چه دَحضرت آدم عليه السلام او حضرت ابراهيم عليه السلام په مينځ کښې صرف دَ دريو پيغمبرانو دَملاقات ذکرموجود دې حالانکه دَهغوی په مينځ کښې پنځه آسمانونه وو نودَ څه انبياء تذکره خو دلته هم نه ده کړې شوې.[4]

---

[1] عمدة القاری: ٦٥/٤ فتح الباری: ٥٩٩/١ تحفة الباری: ٢٨١/١ إرشادالساری: ٦/٢.

[2] شرح الکرمانی: ٥/٤ التوشيح للسيوطی: ٤٥٣/٢ تحفة الباری: ٢٨١/١ إرشادالساری: ٧/٢-٦ فتح الباری: ٥٩٠/١.

[3] شرح الکرمانی: ٥/٤ الکوثرالجاری: ٣٠/٢ تحفة الباری: ٢٨١/١.

[4] شرح الکرمانی کتاب الصلاة باب کيف فرضت الصلوت: ٥/٤ إرشادالساری کتاب الصلاة باب کيف فرضت الصلوت: ٧/٢ عمدة القاری: ٧٤/٤ تحفة الباری: ٢٨١/١ الکنزالمتواری: ١٠/٤.

**قوله: قال ابن شهاب فأخبرني ابن حزم أن ابن عباس وأبا حبة الأنصاري كانا يقولان: قال النبي ﷺ: ثم عُرِجَ حتى ظهرت المستوى، أسمع فيه صريف الأقلام:** ابن شهاب رحمه الله وائي چه ماته ابن حزم رحمه الله خبرراکړو چه ابن عباس او ابوحبه انصاري رضي الله عنهما وائي چه بیا زه نور اوچت اوخیژولې شوم تردې چه زه یو داسې اوچت مقام ته اورسیدم چرته چه ما د فرښتو د قلمونو (کرپارې یا کشارې) واوریدو.

**ابن شهاب:** دَدوی پوره نوم ابوبکر محمدبن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب رحمه الله دې.[1] دَدوی تفصیلی حالات کشف الباري رومبې جلد کتاب بدء الوحی دریم حدیث لاندې تیرشوی دی.[2]

**ابن حزم:** دا ابوبکربن محمدبن عمرو بن حزم الانصاری رحمه الله دې. دَ ولید په زمانه کښې دَ مدینې منورې قاضی اوامیر وو[3] دَدوی تفصیلی حالات کشف الباری څلورم جلدکښې تیرشوی دی.[4]

**ابن عباس:** داحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې. دَدوی تفصیلی حالات کشف الباری رومبې او دویم جلدکښې تیر شوی دی.[5]

**ابوحبة:** دَدوی دَنوم باره کښې اختلاف دې. بعض وئیلی دی چه دَدوی نوم عامر دې اوبعض وائی چه عمر دې. اودبعض په نیزثابت دې. واقدی دَدوی نوم مالك ذکرکړی دې. علامه عینی لیکلی دی چه په دې سندکښې هم کلام کړې شوې دې چه دَابن حزم نه مراد پخپله ابوبکر دې یادَدوی پلار محمد دې. که چرې ابوبکر مراد وی نو هغوی ابوحبه نه دې لیدلې او که چرې دَهغوی پلار محمد مرادوی نو هغوی زهری نه دې لیدلې. نودَدې دا جواب ورکړې شوې دې چه ابن حزم رحمه الله أنّ سره مرسلاً دا روایت بیان کړې دې. (سمعت یا أخبرني) وغیره سره ئی بیان نه دې کړې لهذا هیڅ اشکال نه وارد کیږی.[6]

**عرج بي:** دا فعل عُرِجَ معروف اومجهول دواړه شان نقل کړې شوې دې.[7]

**قوله: ظهرت:** دا دَ علوت او ارتفعت په معنی کښې دې چه زه پورته اوختلم.[8]

**قوله: لمستوی:** په مستوی کښې لام دَعلت دَپاره دې دَ اوچتوالی دَپاره، دَعزت دَپاره یو لوړ مقام ته اورسیدو.[9]

**قوله: صریف الأقلام:** دادکراماً کاتبین دَ قلمونودَ لیکلو آواز ووهغوی دلوح محفوظ نه احکامات

---

[1] عمدة القاری کتاب الصلاة باب کیف فرضت الصلوت: ۶۵/٤ إرشادالساری: ۷/۲.

[2] کشف الباری: ۳۲۶/۱.

[3] شرح الکرمانی: ٦/٤ فتح الباری: ۵۹۹/۱ عمدة القاری: ۶۵/٤ إرشادالساری: ۷/۲.

[4] کشف الباری: ۶۹/٤

[5] کشف الباری: ٤۳۵/۱، ۲۰۵/۲.

[6] عمدة القاری: ۶۵/٤ إرشادالساری: ۷/۲ تحفة الباری: ۲۸۱/۱.

[7] فتح الباری: ۵۹۹/۱ إرشادالساری: ۷/۲ تحفة الباری: ۲۸۱/۱.

[8] شرح الکرمانی: ٦/٤ إرشادالساری: ۷/۲.

[9] شرح الکرمانی: ٦/٤ إرشادالساری: ۷/۲.

نقل كول.(١)

قال ابن حزم وأنس بن مالك: قال النبي ﷺ: "ففرض الله على أمتي خمسين صلاةً، فرجعت بذلك حتى مررتُ على موسى. فقال: ما فرض الله لك على أمتك؟ قلت: فرض خمسين صلاةً. قال: فارجع إلى ربك، فإن أمتك لا تُطيقُ لك. فراجعني فوضع شطرها. فرجعتُ إلى موسى، قلت: وضع شطرها فقال: راجع ربك، فإن ذا أمتك لا تُطيقُ. فراجعتُ، فوضع شطرها. فرجعتُ إليه، فقال: ارجع إلى ربك، فإن أمتك لا تُطيقُ ذلك. فراجعتُهُ، فقال: هي خمسٌ، وهي خمسون، لا يُبَدَّلُ القولُ لديَّ. فرجعتُ إلى موسى. فقال: راجع ربك، فقلتُ: استحييتُ من ربي": ابن حزم دَ (خپل شيخ نه) حديث بيان كړي او انس بن مالك رضي الله عنه (دَ ابوذر رضي الله عنه په واسطه سره) بيان كړي چه نبي كريم ﷺ ارشاد فرمائيلي، الله ﷻ زما په امت باندې پنځوس مونځونه فرض كړل، كله چه زه دې فريضې اخستوسره واپس شوم، تردې چه حضرت موسیٰ علیه السلام سره تيريدم نوهغوى تپوس اوكړو الله ﷻ ستاسو په امت باندې څه فرض كړي دي؟ ما جواب وركړو پنځوس مونځونه ئې فرض كړي دي. موسیٰ علیه السلام (دې اوريدوسره) اووئيل تاسو ﷺ خپل رب ته واپس تشريف يوسئى څكه چه ستاسو امت ددومره عبادت كولو طاقت نه لري. نوزه واپس شوم. نو الله ﷻ (دَدې عبادت يوه حصه) معاف كړه، بيا موسیٰ علیه السلام ته واپس راغلم او ورته مې اوخودل چه الله ﷻ يوه حصه معاف كړه. حضرت موسیٰ علیه السلام بيا هم هغه خبره اوكړه چه تاسو خپل پروردګار ته رجوع اوكړئى ستاسو امت دَدې هم طاقت نه لري. ما بيا رجوع اوكړه نو الله ﷻ دَدې يوه بله حصه معاف كړه. بيا زه هغوى له واپس راغلم (اوخبر مې وركړې) نوهغوى اووئيل ته دَ خپل پروردګار طرف ته واپس شه څكه چه ستاسو امت (ددې هم) طاقت نه لري. چنانچه ما بيا الله ﷻ ته رجوع اوكړه نو الله ﷻ ارشاد اوفرمائيلو چه بنه ده (اوس) دا پنځه مونځونه (مقرركولې) شي اودا (په حقيقت كښې دَ ثواب په اعتبار سره) پنځوس دي. زه خبره نه بدلوم. بيا هم هغه ځائې كښې موسیٰ علیه السلام له واپس راغلو نوهغوى اووئيل خپل رب ته رجوع اوكړه ما اووئيل (چه اوس) ماته دَخپل پروردګار نه (بار بار وينا كولوسره) شرم راځي.

**قوله: قال ابن حزم وأنس بن مالك:** دَدې ځائې نه دَحديث شريف باقي پاتې ټكړه دَ ابن حزم رحمه الله او حضرت انس بن مالك رضي الله عنه طرف ته منسوب ده او په ظاهره دا پوره ټكړه دَ ابن شهاب رحمه الله قول دې. او يو احتمال داهم دې چه دادَ امام بخاري رحمه الله تعليق وي او په دې ځائې كښې دَحضرت انس رضي الله عنه او نبي كريم ﷺ په مينځ كښې دَ حضرت ابوذر رضي الله عنه واسطه هم نشته دې. اودغه شان دَ ابن حزم رحمه الله او رسول الله ﷺ په مينځ كښې دَحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما يا دَ ابوحبه رضي الله عنه واسطه نشته دې. چنانچه دا ټكړه خو يا مرسل ده يا بيا به داسې وئيلې شي چه راوي دَ مينځ واسطه په سابقه ذكر كولوباندې يقين كولوسره پريخودې ده. اوداخبره هم ښكاره ده چه دَ رسول الله ﷺ صحابي كله ((قال رسول الله صلى الله عليه وسلم)) ونيلو سره خبره كوي نومراد هم دغه وي چه دې صحابي رضي الله عنه دغه خبره بغيردَ واسطې دَ جناب رسول الله ﷺ نه اوريدلې ده. چنانچه دا احتمال هم دې چه حضرت انس رضي الله عنه څه حديث نيغ په نيغه دَ نبي كريم ﷺ نه اوريدلې وي اوڅه ئې دَحضرت ابوذر رضي الله عنه نه اوريدلې وي.(٢)

---

(١) فتح الباري: ٥٩٩/١ إرشادالساري: ٧/٢ الكوثر الجاري: ٣١/٢.
(٢) شرح الكرماني: ٧/٤ فتح الباري: ٦٠٠/١ تحفة الباري: ٨٢/١ عمدة القاري: ٦٦/٤ الكوثر الجاري: ٣١/٢ إرشادالساري: ٧/٢ الكنز المتواري: ١١/٤

**قوله: فرض الله على أمتي:** په دې روايت كښې دى چه الله ﷻ زما په امت باندې پنځوس مونځونه فرض كړى دى. خو په كتاب المناقب كښې دحضرت مالك بن صعصعه رضی الله عنه روايت او صحيح مسلم باب الاسراء كښې دحضرت انس رضی الله عنه په روايت كښې **(فرض على خمسين صلاة كل يوم وليلة)** الفاظ دى چه الله ﷻ په ما باندې په ورځ او شپه كښې پنځوس مونځونه فرض كړى دى.[1]

په دې ځانى كښې داسې تطبيق وركړې شوې دې چه په بوځانى كښې د اختصار د وجې نه خپل طرف ته حكم منسوب كړې دې اوچرته ئې د امت ذكر كړې دې. دويمه خبره داكړې شوې ده چه په حضورپاك باندې د فرض ذكر دې خبرې ته هم مستلزم دې چه هغه حكم په امت باندې هم فرض وى. مګردا چه د حضور پاك د خصوصيت د وجې نه څه حكم ددې قاعدې نه خارج وى، مطلب دادې چه دا خبره هم كله ممكن وى چه دحضورپاك د خصوصيت د وجې نه څه حكم صرف په رسول الله ﷺ باندې فرض وى اوهم دغه كار د حضورپاك په امت باندې فرض نه وى.[2]

**قوله: فَرَاجَعْنِي:** په دې نسخه كښې د فراجعنى الفاظ دى خود كشميهنى رحمه الله په روايت كښې "فَرَاجَعْتُ" الفاظ دى د دوارو معنى هم يوه ده.[3]

**په هرچكر كښې څومره څومره مونځونه كم شوى؟:** په دې روايت كښې دى چه "فوضع شطرها" الله ﷻ د مونځونويوه حصه كمه كړه. خود حضرت مالك بن صعصعه رضی الله عنه په روايت كښې **(فوضع عنى عشراً)** الفاظ دى. او د حضرت شريك بن عبدالله رحمه الله په روايت كښې **(فوضع عنه عشر صلوت)** الفاظ دى او د ثابت البنانى رحمه الله په روايت كښې **(فحط عنى خمساً)** الفاظ دى.[4]

علامه كرمانى رحمه الله د شطر معنى نصف اخستې ده. چنانچه ددې مطابق به مطلب داسې جوړشى چه په رومبى چكر كښې پنځه ويشت (۲۵) مونځونه كم كړې شو او په دويم چكر ديارلس (۱۳) مونځونه كم كړې شو او دريم چكر كښې اووه (۷) مونځونه كم كړې شو.[5]

علامه عينى رحمه الله په دې باندې ليكى چه دا تفصيل قابل قبول نه دې. ځكه چه په روايت كښې د الله ﷻ طرف ته د تلو راتلو درې چكرې ذكر دى او د مونځونو كمې خو صرف په رومبو دوو چكروكښې شوې. په دريم چكر كښې خودا اوفرمائيلې شو چه د اداكيدو په صورت كښې خودا پنځه مونځونه دى ليكن د ثواب په اعتبارسره پنځوس دى. او د علامه كرمانى رحمه الله د كلام نه خودا لازم كيږى چه د حضورپاك څلور چكرې لګيدلې دى. رومبى ځل نيم مونځونه كم شو په دويم ځل ديارلس كم شو په دريم ځل اووه كم شو او په څلورم ځل دا اوفرمائيلې شو چه دا پنځه مونځونه د پنځوسو برابر دى حالانكه د روايت مطابق معامله داسې نه ده پيښه شوې.

---

[1] صحيح البخارى كتاب مناقب الانصار باب المعراج رقم الحديث: ۳۸۸۷ صحيح مسلم كتاب الإيمان باب الإسراء رقم الحديث: ۱۶۳.

[2] فتح البارى: ۶۰۰/۱ عمدة القارى: ۶۶/۴ الكوثر الجارى: ۳۱/۲ إرشادالسارى: ۸/۲.

[3] عمدة القارى: ۶۶/۴ تحفة البارى: ۲۸۲/۱ الكنز المتوارى: ۱۲/۴.

[4] صحيح البخارى كتاب مناقب الأنصار باب المعراج رقم الحديث ۳۸۸۷ صحيح البخارى كتاب التوحيد رقم الحديث: ۷۵۱۷ صحيح مسلم كتاب الإيمان باب الإسراء رقم الحديث: ۱۶۲.

[5] شرح الكرمانى: ۷/۴.

او محدث ابن المنير رحمه الله فرمائي شطر د نصف په معنى كښې نه دې بلکه د دې په معنى كښې عموم دې چه كمې ضرورى نه دې چه ټول مونځونه هم په يو چكر كښې كم شوې وى.(١)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي زما په نيزيه په ټولو رواياتو كښې د تطبيق دا صورت وى چه ټول اووه چكرې لګيدلې دى په رومبو دوو چكروكښې لس لس مونځونه كم شوى او په پنځو چكروكښې پنځه پنځه مونځونه كم شوى. په دې باندې علامه عينى رحمه الله فرمائي چه په دې ځائى كښې دا احتمال هم دې چه ټول دوه چكرې لګيدلى په رومبى چكر كښې دوه ځل لس لس مونځونه كم شو او په دويم چكر كښې پنځه ځل پنځه پنځه مونځونه كم شو اوهغه احتمال هم شته كوم چه حافظ صاحب رحمه الله ذكر كړې دې.(٢)

**قوله::هي خمس وهي خمسون:** په دې روايت كښې خو دخمس اوخمسون مبتداء هي دې خو هم په دې ځائى كښې په بل روايت كښې هن خمس وهن خمسون هم دې. مراد دا دې چه په عمل كښې خودا پنځه مونځونه دى ليكن په ثواب كښې د پنځوسو برابر دى.(٣)

**ايايوحكم دعمل نه وړاندې منسوخ كيدې شي؟:** په دې ځائى كښې چه په پنځوسو مونځونوكښې كمې اوشو او باقى پنځه پاتې شو نودا سوال پيداكيږى چه تردې وخته پورې خو امت ته د پنځوسو مونځونوحكم رارسيدلې نه وو او په دې حكم باندې تردغه وخته پورې د عمل نوبت هم نه وو راغلې نو بيا د دغه حكم نسخ څنګه اوشوه؟ځكه چه د عمل نه وړاندې د يوحكم منسوخ كيدل معقول نه دى.
د دې جواب علامه عينى رحمه الله دا وركړې دې د پنځوسو مونځونوحكم اول د نبى كريم ﷺ دپاره وو اوبيا دحضورپاك په واسطه سره دحضورپاك امت ته وو. نوچه كله حضورپاك ته حكم ملاؤشو نو حضورپاك په هغې باندې دعمل كولو كلكه اراده كولوسره امت ته دغه حكم كولودپاره كلكې ارادې سره واپس شوې وو بيا چه كله دموسى عليه السلام په وينا سره الله ﷻ ته دعرض معروض كولوسره كوم كمې اوشو دا نسخ حقيقى او صحيح ده.
غرض دا چه د دې مونځونود حكم كيدلونه پس د الله ﷻ په حضور كښې دحضورپاك د شفاعت دنسخ دپاره خو سبب ضرور جوړشو. ليكن دا شفاعت د حكم باطل كولودپاره نه وو. نودحضورپاك شفاعت منظور شو اودحضورپاك په حق كښې د پنځوسو مونځونو حكم اوامت ته دغه حكم رسول منسوخ شو. او د امت په حق كښې خونسخ قبل العمل څه اعتراض كيدې نه شى ځكه چه امت ته دغه حكم رسيدلې نه وو.
دويم جواب دادې چه د پنځوسو مونځونو حكم تعبدى نه وو بلکه دا حكم نبى كريم ﷺ ته د خبر په توګه خودلې شوې وو. يعنى الله ﷻ حضورپاك ته دا خبر وركړې وو چه په لوح محفوظ كښې ستادپاره پنځوس مونځونه مقرر شوې وو. د دې مطلب حضورپاك بالفعل پنځوس مونځونه اداكول اخستې وو بيا چه كله په دې باره كښې مراجعت اوشو نو واضحه شوه چه د پنځوسو شمير خو د ثواب په اعتبار سره وو دعمل په اعتبارسره نه وو.(٤)

١) عمدة القارى: ٦٦/٤سبل الهدى والرشاد:١٤٥/٣.
٢) فتح البارى: ٦٠٠/١عمدة القارى: ٦٦/٤إرشادالسارى: ٨/٢تحفة البارى:٢٨٢/١الكنزالمتوارى: ١٢/٤.
٣) عمدة القارى: ٦٦/٤فتح البارى: ٦٠٠/١شرح الكرمانى: ٧/٤.
٤) فتح البارى: ٦٠١/١عمدة القارى: ٧١/٤ شرح الكرمانى: ٩/٤إرشادالسارى: ٨/٢ الكوثرالجارى: ٣١/٢تحفة البارى:٢٨٢/١ سبل الهدى والرشاد: ١٥٣/٣-١٥٠ شرح العلامة الزرقانى:٢٦٥/٨-٢٦٤.

**قوله: لَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ:** دَ الله ﷻ رب العزت په دې فرمان "چه زما په نيزخبرې بدليدې نه شی" باندې سوال پيدا کيږی. که چرې داسې وی نو پنځوس مونځونه کميدوسره پنځه څنګه کړې شو؟
دَدې جواب دا ورکړې شوې دې چه داخبره ټيك ده چه دَ الله ﷻ په قول کښې بدلون نه کيږی ليکن دَدې نه مراد اخبارات دی نه چه امور تکليفيه، په امور تکليفيه کښې بدلون ممکن دې په اخبارات کښې نه لکه دَ پنځو مونځونو ثواب دَ پنځوسو برابر کيدل. دويم جواب دادې چه دې نه مراد قضاء مبرم دې چه هغه نه بدليږی قضاء معلق نه دې په دې کښې بدلون ممکن دې. لکه دَ قرآن پاك دَ دې آيت ﴿يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَيُثْبِتُ﴾ [1] يعنی الله ﷻ چه څه غواړی اخوا کوی اوڅه چه غواړی باقی ساتی نه ښکاره معلوميږی. يا بيا دريم جواب دا ورکړې شوې دې چه مقصد دا وو چه دې (آخری فيصلې) نه پس به زمونږ په حکم کښې څه بدلون کيږی.
په دې ځائی کښې علامه يوسف صالحی شامی رحمه الله ليکلی دی چه مراد دا وو چه الله ﷻ دَ فرښتو په ژبه باندې په په صحف کښې دا وعده کړې ده چه دَدوی (امت محمديه) دَپاره په هره يوه شپه ورځ کښې دَ پنځوسو مونځونواجر دې.بياچه کله دَ پنځوسوشمير منسوخ کړې شو اوپنځه کړې شو نو صرف په شمير کښې بدلون اوشو اجر باقی پاتې شو. اوهم دَدې وجې نه دَ الله ﷻ ارشاد هن خمس وهن خمسون نه مراد دشمير په اعتبارسره پنځه او دَ ثواب په اعتبارسره هم پنځوس دی.او دادَ الله ﷻ دَ طرف نه په دې امت باندې صرف فضل اواحسان دې ګنی په ځليريشت ګهنټوکښې دَ پنځوسو مونځونو اداکول يوداسې امر وو په کوم سره چه امت په مشقت کښې پريوتلې شو.
الغرض لَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ کښې دَ قول نه مراد اجرهم اخستې شی چه په اجرکښې بدلون نه کيږی. [2]

**قوله: استحييتُ ربي:** دَ اصيلی په روايت کښې دَدې جملې نه وړاندې دَ "قد" اضافه ده يعنی "قد استحييت". [3]
کله چه مونځونه دَ پنځوسونه کم شو پنځه باقی پاتې شو نوحضرت موسىٰ عليه السلام بيا اوفرمائيل چه تاسو بيا الله ﷻ ته تشريف يوسئی اودکمی درخواست اوکړئی نو په دې باندې نبی کريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو اوس دَ نورکمی درخواست کولوکښې ماله دَ خپل رب نه حيا راځی. دَ حضورپاك په دې ځل باندې دَ الله ﷻ دربارته واپس تللو کښې دَ حيا راتللو وجوهات ذکرکړې شوی دی.
حافظ ابن حجر رحمه الله دَ ابن المنير قول نقل کړې دې چه حضورپاك اندازه لګولې وه چه که دې ځل مې درخواست اوکړو نوهسې نه چه دا آخری ځل دَ کمی سوال بالکليه دَ ټولو مونځونودَ معاف کولوسوال جوړنه شی په دې وجه حضورپاك دا جمله اوفرمائيله په خلاف دَدې نه وړاندې دَ کمی دَ سوال. په هرځل باندې دَ الله ﷻ دَ طرف نه په مونځونوکښې دَ کمی کولو اعلان قطعی نه وو. اودَدې آخری ځل په چکرکښې کله چه الله ﷻ دا ارشاد اوفرمائيلو ﴿مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ﴾ نوحضور پاك په دې باندې پوهه شو چه اوس دَ نور کمی درخواست کول دَ الله ﷻ دَ منشانه خلاف دی.

---

[1] سورت رعد: ٣٩.
[2] شرح الکرمانی: ٤/٨-٧شرح ابن بطال:٢/٨عمدة القاری: ٤/٧٤ارشادالساری:٢/٨تحفة الباری:١/٢٨٢سبل الهدی والرشاد: ٣/١٤٩.
[3] ارشادالساری: ٢/٨تحفة الباری:١/٢٨٢.

دَ رسول الله ﷺ دَدې قول په توجيه كښې يوه خبره دا هم ذكركړې شوې ده چه كيدې شي په دې آخرى خل باندې حضورپاك ته انديښنه شوې وى چه دا بار بار سوال كول ښه خبره نه ده. ليكن ددې دا جواب وركړې شوې دې چه نه داخبره ټيك نه ده خكه چه الله ﷻ ته سوال زارى كول هيڅ كله بد نه دى بلكه خوښ اومحمود عمل دې. په دې باندې حافظ صاحب رحمه الله ليكلى دى ممكن دى چه حضورپاك دَ الله ﷻ په دې نعمت باندې په پوره طريقه باندې دَ شكر نه كولو دَ انديښنې نه دا جمله فرمائيلې وى. والله اعلم.([1])

ثم انطلق بى حتى انتهى بى إلى سدرة المنتهى وغشيها ألوان لاأدري ماهي؟ ثم أدخلت الجنة، فإذا فيها حبائل اللؤلؤ، وإذا ترابها المسك: بيا حضرت جبرائيل عليه السلام زه سدرة المنتهى ته بوتلم. دا (ونه) داسې رنګونو پټه كړې وه چه دَهغې متعلق ماته معلومه نه شوه چه هغه څه وو. دې نه پس زه جنت ته بوتلې شوم. ما په جنت كښې دَ مرغلرو هارونه اوليدل اودَهغې خاوره دَ مشك (په شان) وه.

**سدرة المنتهى څه څيزدې؟** سدرة دَ بيرې ونې ته وائى اودَ منتهى نه مراد دادې چه دلته دَهرڅا خاتمه كيږى. دې ونې ته سدرة المنتهى څكه وائى چه دا جنت دَدې په آخرى غاړه باندې واقع دې دكوم نه وړاندې چه هيچاته څه علم نشته دې. دې نه وړاندې يوه فرښته هم نه شى تللې تردې چه حضرت جبرائيل عليه السلام هم دَدې نه وړاندې نه شى تللې. صرف اوصرف محمد ﷺ دَدې نه وړاندې بوتلې شو. دا ونه دَ يو روايت مطابق په شپږم آسمان كښې ده، ليكن دَ مشهور روايت مطابق دا په اووم آسمان كښې ده. دَدې دواړو روايتونو په مينځ كښې داسې تطبيق وركړې شوې دې چه دَدې ونې جرړې په شپږم آسمان باندې دى او ښاخونه ئې په اووم آسمان باندې.([2])

دَدې ونې دَ صفاتو باره كښې حضرت اسماء بنت ابى بكر رضي الله عنهما دَ نبى كريم ﷺ ارشاد نقل كولوسره فرمائى چه كله دَ حضورپاك مخې ته دَ سدرة المنتهى ذكراوكړې شو نوما حضورپاك داسې فرمائيلو سره واورېدو چه يو (تيزرفتار) سور دَدې ونې دَ ښاخونو په سورى كښې ترسل كالوپورې روان وى ياداني ارشاد فرمائيلې چه دَدې په سورى كښې په يو خل سل سواره دم (دَ سكون سره ساه) واخستې شى. په دې ونه باندې دَ سرو زرو ملخان دى اولكه چه دَدې ميوې دَ منګو برابر دى.([3])

**دَ سرو زرو ملخان:** په دې ونه باندې دَ سرو زرو ملخان دى دَدې نه څه مراد دې؟ په دې كښې مختلف احتمالات دى. يو احتمال دادې چه په دې ونه باندې دَ نورانى فرښتو وزرې داسې پرقيږى لكه چه دَدې په ښاخونوباندې دَ سرو زرو پرقيدونكى ملخان يوخوا بل خوا ټوپونه وهى اودا هم مراد كيدې شى دَدغه ونې نه چه كوم انوار راڅڅيږى او په ښاخونو باندې چه يوخاص قسم رڼا وى هغه ئې دَ سرو زرو ملخانو سره تعبيركړې وى.([4])

**دَسدرة المنتهى باره كښې دحضرت كشميرى رحمه الله تحقيق:** حضرت مولنا أنور شاه كشميرى رحمه الله فرمائى زما په نيز دا دنيايعنى اووه زمكې اوټول آسمانونه ټول په ټول دَ جهنم علاقه ده اودَ جنت

---

[1]) فتح البارى: ۶۰۰/۱عمدة القارى: ۶۷/۴ارشاد السارى: ۸/۲تحفة البارى: ۲۸۲/۱فيض البارى: ۷/۲.

[2])فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ۱۳/۲فتح البارى:عمدة القارى: ۶۷/۴ارشادالسارى: ۸/۲تحفة البارى: ۲۸۲/۱الكنزالمتوارى: ۱۴/۴.

[3]) سنن الترمذى كتاب فى صفة الجنة باب ماجاء فى صفة أثمار الجنة رقم الحديث: ۲۵۴۱.

[4]) فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ۱۲/۲ التعليق الصبيح باب فى المعراج الفصل الأول: ۱۵۸/۷سبل الهدى والرشاد فى سياق القصة: ۸۸/۳-۸۷ عمدة القارى: ۷۶/۴.

علاقه د اووم آسمان نه پورته ده او د جنت چت د الله ﷻ عرش دی د دې مقدمې نه پس پوهه شنی چه د سدرة المنتهٰی جرړې د جهنم په علاقه کښې دی او د دې تنه او ښاخونه د جنت په علاقه کښې (یعنی د آسمانونو د پاسه) دی په دې باندې دلیل د قرآن پاك آیت مبارك ﴿عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَأْوٰى﴾ او دا خبره معلومه شوې ده چه د جنت علاقه د دغه ځائی نه شروع کیږی چرته چه د جهنم علاقه ختمیږی. چنانچه د دې ونې نوم سدرة المنتهٰی هم په دې وجه دې چه د جهنم علاقه ختمیږی او د جنت علاقه شروع کیږی. والله اعلم بالصواب.(١)

**د حبائل اللؤلؤ تشریح:** د کتاب الصلوة د دې روایت په آخری جمله کښې هم دغه الفاظ دی خو د معراج متعلق په نورو تفصیلی روایاتو کښې د مذکوره لفظ په ځائی "جنابذ اللؤلؤ" الفاظ دی. لکه چه کتاب احادیث الأنبياء باب ذكر ادريس عليه السلام رقم الحديث: ٣٣٤٢ کښې راځی.

حبائل جمع ده د حباله د کوم معنی چه غاړکئی، امیل او د کړئی راځی نو مطلب به داشی چه حضور پاك په جنت کښې د مرغلرو لړئی یا امیلونه اولیدل. د علماؤ د یو جماعت وینا ده چه په دې ځائی کښې چرته د یو راوی نه تسامح شوې او د تصحیف په توګه حبائل ذکر شوی دې ګنی په اصل کښې جنابذ دی. دا جمع د جُنبُذ ده. او جُنبُذ د یو څیز اوچتوالی ته وائی چه په شان د ګول څیز وی لکه ګنبد چه په ګولائی کښې اوچت وی. نو مراد به دا شی چه د مرغلرو نه جوړ شوی ګنبدونه ئې اولیدل.(٢)

**د حدیث خلاصه:** په مذکوره طویل حدیث مبارك کښې د حضور پاك د معراج د سفر، شق صدر او د سفر په وخت د انبیاء کرام علیهم السلام سره ملاقاتونه، بیا حضرت موسیٰ علیه السلام سره ملاقات او د هغوی په لارخودنه باندې د الله ﷻ طرف ته مراجعت په سلسله د مونځونو د فرضیت کیفیت مخې ته راغلو.

د معراج په سفر کښې د اهل سنت والجماعت مؤقف دا وو چه حضور پاك په بدنی توګه باندې د بیدارئی په حالت کښې معراج کړې شوې دې. او په شق صدر کښې په حقیقی توګه باندې د حضور پاك زړه مبارك او څیرلې شو او هغه وینځلو سره واپس د هغې په خپل ځائی کښې کیخودلې شو.

## الحديث الثاني

[٣٤٣]-حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوسُفَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ، قَالَتْ: «فَرَضَ اللهُ الصَّلَاةَ حِينَ فَرَضَهَا، رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ، فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ، فَأُقِرَّتْ صَلَاةُ السَّفَرِ، وَزِيدَ فِي صَلَاةِ الْحَضَرِ»

**ترجمه:** ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها ارشاد فرمائیلې چه کله الله ﷻ مونځ فرض کړو نو په سفر او حضر کښې (دواړو ځایونو کښې) دوه دوه رکعتونه وو (د مابنام د مونځ نه علاوه). بیا د سفر مونځ (هم دغه شان دوه رکعته) باقی پاتې کړل او د حضر په مونځ کښې ئې (د دوو رکعتو) اضافه اوکړه.

(١) فيض البارى: ٩/٩.

(٢) شرح ابن بطال: ٩/٢ فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ١٣/٢ عمدة القارى: ٦٨/٤ الكوثر الجارى: ٣٢/٢ إرشاد السارى: ٩/٢ تحفة البارى: ٢٨٣/١ فيض البارى: ٨/٢ الكنز المتوارى: ١٤/٤.

**دَحديث تخريج:** داحديث امام بخاری رحمه الله دَ كتاب الصلوة نه علاوه دوو ځایونوکښې او امام مسلم رحمه الله صحيح مسلم، امام ابوداؤد رحمه الله سنن ابوداؤد، امام نسائی رحمه الله سنن النسائی او امام مالك رحمه الله په موطا کښې ذکرکړې دې. بالکل هم په دغه الفاظوسره صرف صحيح البخاری او صحيح مسلم کښې دې او په لږشان مختلف الفاظو سره په نورو کتابونوکښې موجود دې.(١)

## تراجم رجال

په دې حديث کښې شپږ رواة ذکردی.

**عبدالله بن يوسف:** دا ابومحمدبن يوسف تنيسی کلاعی دمشقی رحمه الله دې. دَدوی تعارف کشف الباري كتاب بدء الوحي دويم حديث او كتاب العلم باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب کښې تيرشوې دې.(٢)

**مالک بن انس:** دا مالك بن انس بن مالك أبي عامر الأصبحی المدنی رحمه الله دې. دَدوی تذکره كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن کښې تيره شوې ده.(٣)

**صالح بن کيسان:** دا ابومحمديا ابوالحارث صالح بن کيسان المدنی رحمه الله دې. دَدوی تذکره کشف الباري كتاب الإيمان باب من كره أن يعود في الكفر كما يكره أن يلقى في النار من الإيمان دريم حديث کښې تيره شوې ده.(٤)

**عروة بن زبير:** داعروه بن الزبير بن العوام بن خويلد بن اسد بن عبدالعزی قصی قرشی اسدی مدنی رحمه الله دې. دَدوی تعارف کشف الباري كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه کښې تيرشوې دې.(٥)

**عائشه صديقه رضي الله عنها:** دا حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها بنت سيدنا ابی بکرصديق رضي الله عنه ده. دَدې تعارف کشف الباري كتاب بدء الوحي دويم حديث لاندې تيرشوې دې.(٦)

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ باب كيف فرضت الصلاة لاندې دا دويم حديث دې کوم چه امام بخاری رحمه الله راوړلې دې. دَدې حديث مبارك مناسبت ترجمةالباب سره بالکل واضح دې چه دَ مونځ دَ فرضيت نوعيت په شروع کښې سفر اوحضر دواړوکښې دَټولو وختونودپاره هم دوه دوه رکعته وو. بيا روستو دَ سفر هم دوه رکعته باقی پاتې شو او البته دَحضر او اقامت څلور رکعته شو.(٧)

---

(١) صحيح البخاری كتاب سجود القرآن باب يقصر إذا خرج مؤمن وضعه رقم الحديث: ١٠٩٠وكتاب مناقب الأنصار باب التاريخ رقم الحديث٣٩٣٥. صحيح مسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها باب صلاة المسافرين رقم الحديث: ٦٨٥، سنن أبی داؤد كتاب صلاة المسافر باب صلاة المسافر رقم الحديث: ١١٩٨. سنن النسائی كتاب الصلاة باب كيف فرضت الصلاة رقم الحديث: ٤٥٤ الموطا للإمام مالك كتاب الصلاة باب قصر الصلاة فی السفر: ١٢٨/١نور محمد كتب خانه تحفة الاشراف مسند عائشة صالح بن كيسان رقم الحديث: ١٦٣٤٨ الأصول كتاب الصلاة الفصل الأول فی الوجوب والكمية رقم الحديث: ٣٢٤٩، ١٨٥/٥.

(٢) كشف الباری كتاب بدء الوحی: ٣٨٩/١ وكتاب العلم: ١١٣/٤.

(٣) كشف الباری كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن: ٢٩٠/١، ٨٠/٢.

(٤) كشف الباری كتاب الإيمان باب من كره أن يعود فی الكفر كما يكره أن يلقى فی النار من الإيمان: ١٢١/٢.

(٥) كشف الباری: ٤٣٦/٢.

(٦) كشف الباری: ٢٩١/١.

(٧) عمدة القاری: ٧٧/٤تقرير البخاری: ٣٢٩/٢تحفة الباری: ٢٨٣/١.

**قوله: فرضها ركعتين ركعتين:** په مذكوره حديث شريف كښې حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها د سفر اوحضر د مونځ كيفيت بيان كړې دې چه په سفركښې د فرض مونځ څورکعتونه دي او په حضر كښې د فرض مونځ څو ركعته دي. چنانچه ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها ارشاد اوفرمائيلوچه كله الله ﷻ مونځ فرض كړو نو هغه په سفر اوحضردارو كښې دوه دوه ركعته وو.

ركعتين تكرار سره بيان كړې شوې دې. په دې كښې په ظاهر ه حكمت دادې چه دحضوريالك دا قول هر څلور ركعتيز مونځ ته شامل شي ګڼى كه چرته بغيرد تكرار نه صرف يوځل ركعتين ذكرشوې وې نودا وهم كيدې شو چه په سفر او حضركښې دا څليريشت ګهنټوكښې صرف هم دوه ركعته دى او ښكاره خبره ده چه دا خلاف واقعه او خلاف مقصود دې. ددې وهم ختمول ركعتين مكرر ذكركولوسره اوشو.(۱)

هم داحديث په مسنداحمدبن حنبل كښې ذكركړې شوې دې هلته "إلا المغرب فإنها كانت ثلاثة" الفاظو زياتوالې دې چه په سفر اوحضر كښې دوه ركعته ووبغيرد مابنام نه چه ددې درې ركعته وو. (اودا درې ركعته په سفر اوحضر كښې هم دغه شان پاتې دى په دې كښې كمې زياتې نه دې شوې، په دې وجه پورته دا تعبير اختياركړې شوې دې چه هرڅلور ركعتيز مونځ كښې د دوو ركعتو اضافه اوكړې شوه).(۲)

**دحضرت شاه صاحب تحقيق:** حضرت مولانا انورشاه كشميري رحمه الله فرمائى زما د ګمان مطابق د حضرت عائشه رضي الله عنها ددې قول چه په شروع كښې دوه دوه ركعتونه فرض وو روستو څلور ركعته شو، نه مراددا نه دې چه په شروع كښې ټول مونځونه دوه دوه ركعته وو روستو د رباعى مونځونو ركعتونه زياتولوسره څلور كړې شو.بلكه مراد دادې چه د معراج د واقعه نه وړاندې مسلمانانو چه د ماسخوتن مونځ دوه ركعته كولو هغه د اسراء نه پس څلور ركعته كړې شو. يعنى وړاندې د معراج نه دوه ركعته فرض كړې شوې وو او پس د معراج نه چه كوم فرضيت اوشو هغه د څلورو څلورو ركعتو وو.(۳)

**په مذكوره حديث باندې دوه اشكالات:** په دې حديث باندې دوه قسمه اشكال كيږى چه په مذكوره حديث كښې فرمائيلې شوى دى چه د سفر مونځ هم دغه شان په خانى پاتې كړې شو يعنى د سفر په مونځ كښې څه بدلون يا زياتوالې اونه كړې شو. داخبره د قرآن كريم د آيت ﴿وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾(۴) **ترجمه.** اوكله چه تاسو په زمكه كښې سفركوئى نو په تاسو به دې كښې هيڅ ګناه نه وى چه تاسو مونځ كم كړئى اوكه چرې تاسو ته دا انديښنه وى چه تاسو به كافران خلق پريشانه كوى(۵) خلاف دى، يعنى دآيت مبارك نه خودا معلوميږى چه قصر في الصلاة يعنى په مونځ كښې كمې شوې دې اود روايت نه داخبره معلوميږى چه په مونځ كښې كمې نه دې شوې.

---

(۱) عمدة القارى: ۷۷/٤ارشادالسارى: ۹/۲تحفة البارى: ۲۸۳/۱.

(۲) مسنداحمدبن حنبل مسند النساء مسندالصديقة عائشة رقم الحديث: ۲۶۳۳۸، ۵۳۹/۹ التوضيح للسيوطى: ٤٥٤/۲التوضيح لابن ملقن:۲۶۸/۵.

(۳) فيض البارى كتاب الصلاة باب كيف فرضت الصلاة: ۹/۲.

(۴) سورة النساء:۱۰۱.

(۵) بيان القرآن: ۳۹۷/۱۰.

**دويم اشكال:** په مذكوره حديث باندې دويم اشكال داكيږي چه دا حديث پخپله دحديث د راويه يعنى حضرت عائشه رضي الله عنها دعمل خلاف دې. ځكه چه هغې به په سفركښې اتمام كولو لكه چه په صحيحين كښې د حضرت عائشه رضي الله عنها روايت موجود دې.

((عن عائشة: أن الصلاة أول ما فرضت ركعتين، فأقرت صلاة السفر وأتمت صلاة الحضر، قال الزهري: فقلت لعروة: ما بال عائشة تتم في السفر؟ قال: إنها تأولت كما تأول عثمان))[1] يعنى زهرى رحمه الله دحضرت عروه رضي الله عنه نه معلومه كړه چه آياكله معامله داشان ده چه په سفركښې مونځ په خپل اصلى حالت باندې په خانى پاتې شو نوبياحضرت عائشه رضي الله عنها پخپله ولې پوره مونځ كولو؟ دَدې نه معلوميږى چه پخپله دحضرت عائشه رضي الله عنها فعل دهغې د روايت خلاف وو.

**د دويم اشكال جواب:** رومبى اشكال چه په روايت او قرآنى آيت كښې تعارض دې، جواب دا وركړې شوې دې چه د مذكوره آيت باره كښې دمفسرينو حضراتو دوه اقوال دى چه دا آيت د صلاة الخوف باره كښې دې يا د سفرد مونځ باره كښې. دَدې آيت تعلق صلاة الخوف سره دې دَدې قائل حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما اوجابربن عبدالله رضي الله عنه دى.[2] او امام بخارى رحمه الله هم دَدې قائل دې لكه ځنګه چه د هغوى دصنيع نه معلوميږى يعنى هغوى دا آيت باب صلاة الخوف لاندې ذكركړې دې.[3]

**دويم جواب:** هم دَدې اشكال دويم جواب داسې وركړې شوې دې چه كه چرې دا اومنلې هم شى چه دا آيت هم د سفر باره كښې دې نه چه د صلاة الخوف باره كښې نوبياهم دا روايت د قرآنى آيت معارض نه دې. په دې صورت كښې به د قرآنى آيت دا معنى شى چه دلته صلاة السفر ته مجازاً قصر فرمانيلې شوې دې. يعنى د حضر د مونځ په اعتبار سره د سفر مونځ ته قصر فرمانيلې شوې دې. په نورو الفاظوكښې داسې وئيلى شى چه په صلاة السفرباندې د قصر اطلاق د قصر د ظاهرى لفظ په اعتبارسره دې نه چه د حقيقت په اعتبار سره.[4]

**دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** په دې خانى كښې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمانى چه زما په نيزصحيح معنى داده چه په ليلة الاسراء كښې د ماښام د مونځ نه علاوه باقى ټول مونځونه دوه دوه ركعته فرض كړې شو. بيا د هجرت نه پس د سحرد مونځ نه علاوه باقى مونځونوكښې زياتې اوكړې شو لكه چه د حضرت عائشه رضي الله عنها د روايت نه معلوميږى چه هغه فرمانى چه دحضر اوسفر مونځ دوه دوه ركعته فرض كړې شو. بيا چه كله نبى كريم صلى الله عليه وسلم مدينې منورې ته تشريف راوړو او په څه موده كښې تسلى حاصله شوه نوهغه وخت دحضر په مونځ كښې زياتوالې اوكړې شو بغيرد سحر د مونځ نه، ځكه چه په دې كښې اوږد قراءت وو او بغيرد ماښام د مونځ نه چه هغه د ورځې وتر (يعنى طاق ركعتونه) وو بياچه كله فرض مونځ څلور څلور ركعته شوې وو نو په هغې كښې په رباعى مونځونوكښې د سفر دوران كښې مذكوره آيت ﴿فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلٰوةِ﴾ د نازليدلو په وخت كښې كمې.

---

[1]) صحيح البخارى كتاب سجود القرآن باب يقصرإذا خرج من موضعه. رقم الحديث: ۱۰۹۰صحيح مسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها رقم الحديث:۱۵۷۰.

[2]) أوجزالمسالک كتاب قصر الصلاة فى السفر رقم الحديث: ۳۲۵، ۱۶۷/۳ بذل المجهود باب صلاة المسافر رقم الحديث: ۱۱۹۸، ۳۳۱/۵تفسير ابن كثير: ۳۹۳/۲تفسير الطبرى: ۱۳۲/۹.

[3]) صحيح البخارى كتاب الصلاة باب صلاة الخوف.

[4]) أوجزالمسالک: ۱۶۸/۳ بذل المجهود : ۳۳۲/۵ الكنزالمتوارى: ۱۵/٤.

کولوسره دوه رکعته کړې شو اودا دهجرت د څلورم کال نه پس اوشو. یعنې په دې صورت کښې په صلاة الحضر کښې هیڅ بدلون اونه کړې شو او صلاة السفر (یعنې د سفر په حالت کښې ادا کیدونکې رباعی مونځونو) کښې کمې اوکړې شو. چنانچه هغه وخت د حضرت عائشه رضی الله عنها قول ((فأقرت صلاة السفر)) کښې به دا توجیه کولې وی چه ((فأقرت باعتبار ماآل)) اوفرمائیل نه چه د کله نه مونځ فرض شوې دې د هغه وخت نه دا د (سفرد مونځ) په شان هم دغه شان دوه رکعته دې.[1]

**د حضرت کشمیری رحمه الله رائې:** حضرت مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله د حافظ ابن حجر رحمه الله دا ذکر شوې رائې رد کړې ده هغوی فرمائی چه د حافظ صاحب رحمه الله په دې جواب کښې نظر دې. هغه دا شان چه که چرې دا اومنلې شی نو په دې سره لازم راځی چه نسخ دوه ځل شوې اول د دوو رکعتونه د څلورو رکعتو طرف ته او په دویم ځل د څلورو رکعتونه دوو رکعتوطرف ته، حالانکه حافظ صاحب سره د علماء د قول نه سوا هیڅ دلیل نشته دې. بل په دې سره خو به دا هم لازم راشی چه د قصر د نزول نه وړاندې مسافرو څلورکالوپورې هم څلور رکعته کول او په دې باندې هم هغه سره څه نقلی دلیل نشته دې بغیرد هغه د اجتهادنه.

چنانچه د حضرت شاه صاحب رحمه الله په نیز د دې یو تاویل هم هغه دې کوم چه وړاندې تیرشو او دویم هغوی فرمائی چه په دې باره کښې احنافو سره نور د دې نه ډیر مضبوط دلائل دی چه په خپل مقام باندې به تفصیل سره ذکرکولې شی.[2]

**دریم جواب:** د رومبی اشکال دریم جواب دا ورکړې شوې دې چه په آیت مذکوره کښې د قصر نه مراد د مانځه په رکعتونوکښې کمې نه دې بلکه د مانځه په کیفیت کښې کمې مراد دې. په داسې توګه چه د مانځه ارکان مثلاً رکوع او سجدې مختصر کړې شی او په قیام کښې قراءت د فرض قراءت په اندازه اوکړې شی وغیره.[3]

امام ابوبکرجصاص رحمه الله فرمائی چه په ذکرشوی آیت کښې د قصر کومه خبره شوې ده د هغې په مراد کښې د سلف صالحین اختلاف دې. مثلاً د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت دې چه الله ﷻ د حضر مونځ څلور رکعته د سفر مونځ دوه رکعته اوصلاة خوف یو رکعت فرض کړې دې. حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی دې نه مرادصلاة خوف دې کوم چه یو رکعت دې. د مجاهد رحمه الله نه روایت دې چه دلته په عدد کښې قصر دې یعنې د څلورو رکعتو مونځ دوه رکعته کړې شو. ابن جریج رحمه الله د حضرت ابن طاؤس رحمه الله نه اوهغه د خپل پلار نه روایت کوی چه هغوی فرمائیلی دې نه مراد صلاة خوف او د جنګ مونځ دې اومونځ په هرحالت کښې یعنې پیدل یا سور (د ویرې په حالت کښې) اداکول دی (یعنې په کیفیت کښې قصر مراد دې) او نور ئې اوفرمائیل د نبی کریم ﷺ مونځ او د نورو خلقو په سفرکښې مونځ هم دوه رکعته وو او په هغې کښې قصر نه وو.

اود حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په یو روایت کښې دی چه په آیت کښې د قصر نه مراد د مانځه په حدودکښې قصر دې اوهغه دادې چه مونځ ګذار دې الله اکبرونیلوسره مونځ شروع کړی اود رکوع او سجدې د پاره دې په سر اشاره اوکړی او مونځ دې پوره کړی

---

[1] فتح الباری کتاب الصلاة: ۶۰۲/۱ رقم الحدیث: ۳۵۰.

[2] فیض الباری کتاب الصلاة: ۲/ ۸-۹ رقم الحدیث: ۳۵۰.

[3] أوجزالمسالک: ۳، ۱۶۸، بذل المجهود: ۳۳۲/۵ إعلاء السنن باب فرضت الصلاة الرکعتین: ۲۶۱/۷ معارف السنن کتاب الصلاة باب قصر صلاة المسافر: ۴۶۱/۴ فتح الملهم باب صلاة المسافرین وقصرها: ۵۰/۴.

امام جصاص رحمه الله فرمائي چه په مذکوره معاني کښې دَ تولونه بهترمعنى هغه ده کومه چه دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په آخرى روايت کښې اودَحضرت طاؤس رحمه الله په روايت کښې مراد اخستې شوې ده اوهغه داده چه دَ رکوع اوسجدې په ځائې کښې دې اشاره کوى اودَ قيام په ځائي دې سوريدو سره مونځ اوکړي. نور ئې اوفرمائيل چه داهم ممکن دى چه دَ قصر نه مراد په مانځه کښې تلل وى ځکه چه دَ ويرې دَ مونځ نه علاوه په مانځه کښې تلل راتلل مونځ فاسد کوى.

اودَدې خبرې دليل چه په آيت مذکوره کښې دَ قصر نه مراد **(قصرفي صفة الصلاة)** دَحضرت مجاهد رحمه الله واقعه ده چه هغوى اوفرمائيل يوسړې دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په خدمت کښې حاضرشو اوعرض ئې اوکړو چه زه او زما ملګرې په يوسفرکښې اووتلو. ما په سفرکښې پوره مونځ (يعنى دَ څلورو رکعته والاهم څلوررکعته) کولو اوزما ملګرى به قصر کولو نوحضرت ابن عباس رضي الله عنهما ارشاد اوفرمائيلو (نه دې په حقيقت کښې) تا به قصرکولو (يعنى دَ کمي والاکاربه دې کولو کوم چه دَ سنت نه خلاف وو) او ستا ملګرى به پوره مونځ کولو (يعنى دَ هغه په سفرکښې قصرکول په حقيقت کښې داسې دى لکه چه هغه په حضرکښې پوره مونځ کړې وى).

امام جصاص رحمه الله فرمائي چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما خبرورکړو چه قصر رکعتونوکښې قصر نشته دې او په سفرکښې دوه رکعته قصر نه دې. (بلکه دا پوره ټول مونځ دې). اوهم دغه خبره دَ حضرت عمر رضي الله عنه نه نقل ده چه دَ سفر مونځ دوه رکعته دې اودَ وړوکى اختر مونځ دوه رکعته دې اودَ لونى اختر مونځ دوه رکعته دې دا مونځونه پوره اومکمل مونځونه دى قصر نه دى. داحکم دَ نبى کريم صلى الله عليه وسلم دَ ژبې مبارکې نه صادر شوې دې. چنانچه ثابته شوه چه مذکوره قصر کوم چه په آيت مبارک کښې ارشاد فرمائيلې شوې دې دَ مانځه په وصف کښې قصر دې دَ مانځه په رکعتونو کښې قصرنه دې. دَ امام جصاص رحمه الله کلام پوره شو.(١)

**دَدويم اشکال جواب:** دويم اشکال (چه پخپله دَ راويه عمل دَهغې دَ روايت خلاف دې) جواب هم پخپله دَ ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها په روايت کښې موجود دې چه کله زهرى رحمه الله دَحضرت عروه رضي الله عنه نه دې باره کښې سوال اوکړو نوهغوى جواب ورکړو چه حضرت عائشه رضي الله عنها به په دې باره کښې هم داسې تاويل کولو لکه چه حضرت عثمان به په منى کښې دَ قيام دوران کښې پوره مونځ دَ تاويل به وجه سره کولو. يعنى حضرت عثمان رضي الله عنه به په آخرى عمرکښې منى کښې پوره مونځ کولو اوکله چه دَهغوى نه په دې باره کښې تپوس اوکړې شو نوهغوى جواب ورکړو چه ما دا مقام خپل وطن جوړکړې دې. (ددې نه علاوه دَدې خبرې مکمل تفصيلى وضاحت به په خپل مقام باندې راځى). دغه شان به حضرت عائشه رضي الله عنها دَ خپل پوره مونځ دَپاره تاويل کولو. ليکن دا تاويل دَحضرت عثمان رضي الله عنه والا تاويل نه وو.(دَحضرت عائشه رضي الله عنها دتاويل باره کښې به توجيهات مختلفه په خپل مقام باندې بيانولې شى).لهذا دَحضرت عروه رضي الله عنه قول ((إنها تأولت كما تأول عثمان)) کښې په فعل تاويل کښې مشابهت خودلې دې نه په دې خبره کښې مشابهت چه هغې به هم هغه تاويل کولو کوم چه به حضرت عثمان رضي الله عنه کولو.(٢)

ابن قيم رحمه الله دَ ابن تيميه رحمه الله طرف نه دا خبره نقل کړې ده چه دا خبره دَ عقل نه لرې ده چه کوم عمل پخپله حضرت عائشه رضي الله عنها دَ نبى کريم صلى الله عليه وسلم نه ليدلو هغې دَ دغې خلاف څنګه کولې شو. لهذا هم دغه

---

١) أحكام القرآن للجصاص سورة النساء: ٢/٣١٦-٣١٥.

٢) فتح البارى: ٤/٥٠-٤٩، ٥٢ أوجزالمسالک: ٢/١٦٨عمدة القارى: ٤/٧٩بذل المجهود: ٥/٢٧١إعلاء السنن: ٧/٢٥٢، ٢٥٩.

وینا به کولې شی چه هغې تاویلاً داسې کول نه دا چه دَهغې په نیز په سفرکښې پوره مونځ جائز یا افضل وو.[1]

بل که دَ نبی کریم ﷺ نه په دې باره کښې څه نقل وې نوحضرت عروه ﷺ به دا نه فرمائیل چه هغې به تاویل کولو. دې نه معلومیږی چه دَحضورپاك نه په دې باره کښې هیڅ هم نقل نه دی بلکه قصر متعین دی.[2]

**قصر عزیمت دې که رخصت؟** په سفرکښې قصر (یعنی رباعی مونځونه نصف کولو) په مشروعیت باندې اجماع ده البته په دې امرکښې اختلاف دې چه په سفرکښې قصر مونځ کول عزیمت دې یا رخصت؟

دَاحنافو په نیزقصرکول عزیمت دې رخصت نه دې. چنانچه که چرته یوکس په سفرکښې پوره مونځ اوکړو او په آخره کښې سجده سهوه اونه کړه نودَهغه مونځ اونه شو. خو که په هیره سره نی پوره مونځ اوکړو او په آخره کښې یادراتلو سره نی سجده سهوه اوکړه نودَهغه مونځ به اوشی ګنی واپس راګرځول به واجب وی.[3]

خلاصه دَ کلام دا شوه چه دَاحنافو په نیز باندې په سفرکښې پوره مونځ کول جائزنه دی بلکه هم قصر کول واجب دی. اودا دَقصر لفظ په اعتبار دَ صلاة حضر دې ګنی په حقیقت کښې دَ احنافو په نیزد سفر مونځ پوره مونځ دې چه هم دوه رکعته فرض کړې شوې وو نه دا چه دَ څلورو رکعتونه کمیدو سره دوه رکعته شوی.

**دَ ائمه ثلاثه مسلک:** دَ امام مالك ﷫ په دې مسئله کښې دَ یو نه زیات اقوال دی. دَ یوقول مطابق دَهغوی په نیز هم قصر واجب دې.[4] امام احمدبن خنبل ﷫ دا رخصت ګرځوی لیکن دَ یوقول مطابق هغه هم قصر ته قول محتاط وائی چه په دې کښې دَچاهم مخالفت لازم نه راځی.[5] شوافع دا رخصت ګنړی خودَهغوی په نیز هم افضل قصر دې[6] دَ ائمه ثلاثه دَ لائل او دَهغې په جواباتو باندې تفصیلی بحث په خپل مقام یعنی باب صلاة المسافرکښې به ذکرکولې شی په دې ځائی کښې صرف دَ احنافو دلائل ذکرکولې شی:

**دَ احنافو دلائل:** مذکوره حدیث باب دَ قصر عزیمت کیدوکښې دَ احنافو دلیل دې یعنی: «عن عائشة رضی الله عنها قالت: فرض الله الصلاة حین فرضها: رکعتین رکعتین فی الحضر والسفر، فأقرت صلاة السفر، وزید فی صلاة

[1] زادالمعاد بحث قصر الصلاة فی السفر: ۴۶۴/۱ مجموع الفتاوی لابن تیمیه، هل القصر فی السفر سنة أو عزیمة؟: ۶/۲۴

[2] معارف السنن: ۴۵۵/۴.

[3] ردالمحتار علی الدرالمختار کتاب الصلاة باب صلاة المسافر: ۱۲۳/۱ فتح القدیر کتاب الصلاة باب الصلاة المسافر: ۳۵۹/۱ عمدة القاری: ۷۹/۴|إعلاء السنن: ۷، ۲۵۲|وجزالمسالک: ۱۶۸/۳بذل المجهود: ۲۷۱/۵.

[4] التاج والإکلیل فصل فی أحکام صلاة السفر: ۱۳۹/۲حاشیة الدسوقی فصل فی أحکام السفر:۴۵۸/۱مواهب الجلیل فصل فی صلاة السفر: ۴۸۸/۲|إکمال المعلم: ۵/۳.

[5] الشرح الکبیر لابن قدامة فصل فی قصر الصلاة: ۹۰/۲شرح الزرکشی باب صلاة المسافر: ۳۵۴/۱|قناع للجاوردی کتاب السفر: ۲۳۷/۱.

[6] المجموع شرح المهذب: ۳۳۲/۴أسنی المطالب: ۲۵۱/۳کتاب الأم: ۱۷۹/۱مغنی المحتاج: ۳۶۰/۳شرح النووی کتاب الصلاة رقم الحدیث: ۱۵۷۲. ۲۰۱/۶.

الحضر يعني دَ سفر مونځ هم دغه شان دوه ركعته په خاني اوساتلې شو اودَ حضر په مونځ كښې اضافه اوكړې شوه.
دَدې نه معلوميږي چه دَ سفر مونځ دَتخفيف په وجه نه دې بلكه هغه دوه ركعته په خپل اصل باندې دې. لهذا دا رخصت نه شو بلكه قصر شو.([1])

**دويم دليل:** دَ احنافو دويم دليل دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت دې كوم چه امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح كښې ذكركړې دې. ((عن مجاهد عن ابن عباس رضي الله عنهما، قال: "فرض الله الصلاة على لسان نبيكم في الحضر أربع ركعات، وفي السفر ركعتين، وفي الخوف ركعة")). ([2])يعني ونبي فرمائيل الله تعالىٰ په حضركښې څلورركعته او سفركښې دوه ركعته او په ويره كښې يو ركعت فرض كړې دې اودا خبره دَ نبي كريم ﷺ په خبر وركولوسره معلومه شوه.(دَ ويرې دَ يوركعت باره كښې تفصيلي بحث او توجيهات باب صلاة الخوف لاندې راځي).

هم دغه روايت په طبر اني كښې ذكردې دَهغې الفاظ دادي. ((افترض رسول الله صلى الله عليه وسلم ركعتين في السفر، كما افترض في الحضر أربعاً)) يعني رسول الله ﷺ په سفركښې دوه ركعته ګرځولي دي لكه څنګه چه په حضركښې څلور ركعته فرض ګرځولي دي.

**دريم دليل:** دَ احنافو دَقصر عزيمت كيدو باره كښې دريم دليل دَ نسائي او ابن ماجه حديث دې. ((عن عبدالرحمن بن أبي ليلى عن عمر رضي الله عنه قال: صلاة السفر ركعتان وصلاة الأضحى ركعتان، وصلاة الفطر ركعتان، وصلاة الجمعة ركعتان، تمام، غير قصر، على لسان محمد صلى الله عليه وسلم)) حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل دَ سفر مونځ دوه ركعته دې دَ لوئي اختر مونځ دوه ركعته دې دَ وړوكي اختر مونځ دوه ركعته دې اودَ جمعه مونځ دوه ركعته دې اودا ټول مونځونه قصر نه دي بلكه مكمل مونځونه دي اودَ رسول الله ﷺ په ژبه مباركه باندې دا ټول معلوم شوي دي.([3])

**څلورم دليل:** څلورم دليل هم دَ نسائي روايت دې. ((عن ابن عمر رضي الله عنه، قال: إن رسول الله صلى الله عليه وسلم أتانا، ونحن ضلال، فعلمنا، فكان فيما علمنا أن الله تعالى عزوجل أمرنا أن نصلي ركعتين في السفر)) يعني حضرت ابن عمر رضي الله عنه ارشاد فرمائيلې چه مونږ دَعلم نه ناخبره وو چه مونږ له نبي كريم ﷺ تشريف

---

[1]) صحيح البخاري كتاب الصلاة باب كيف فرضت الصلاة رقم الحديث: ٣٥٠.

[2]) صحيح مسلم كتاب الصلاة، رقم الحديث: ٦٨٧، سنن النسائي كتاب قصر الصلاة رقم الحديث ١٩١٢،جامع الأصول كتاب الصلاة ، الفرع الأول في الجوب والكمية، رقم الحديث:٣٨٣٨، ١٨٤/٥.

[3]) سنن النسائي كتاب الصلاة باب عدد صلاة العيد، رقم الحديث: ١٥٦٧، سنن ابن ماجه كتاب الصلاة باب تقصير الصلاة في السفر، رقم الحديث: ١٠٦٣.

امام نسائي رحمه الله په دې حديث باندې اعتراض كړې دې چه دَ ابن ابي ليلي رحمه الله دَحضرت عمر رضي الله عنه نه سماع ثابته نه ده. ددې جواب دا وركړې شوې دې چه امام مسلم رحمه الله دَ خپل كتاب په مقدمه كښې داخبره ليكلې ده چه دَ ابن ابي ليلي رحمه الله سماع دَ حضرت عمر نه ثابته ده. بلكه دَ بعض رواياتو مطابق خوباقاعده دَهغوي دا الفاظ دي چه "سمعت عمر بن الخطاب...... الخ". ددې نه علاوه داخبره هم ده چه ابن ماجه داحديث په خپل كتاب كتاب الصلاة باب تقصير الصلاة رقم الحديث: ١٠٦٤ كښې په دې سندسره ذكركړې دې عن عبدالرحمن بن ابي اليلى عن كعب بن عجرة عن عمر. نصب الرايه كتاب الصلاة ١٩٠/٢-١٨٩.

راورلو مونږ. دهغوی ﷺ نه ډیر څه زده کړل په هغې کښې یوه خبره داهم وه چه د سفرد مونځ باره کښې الله ﷻ مونږ ته حکم راکړې چه مونږ دوه رکعته کوو (۱)

**پنځم دلیل** ،،قال ابن عمر رضی الله عنه: صحبت رسول الله صلی الله علیه وسلم، فکان لا یزید فی السفر علی رکعتین و أبابکر و عمر وعثمان رضی الله عنهم،، یعنی حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چه زه د رسول الله ﷺ د حضرت ابوبکر، حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله عنه په صحبت کښې پاتې شوې یم حضورپاك اودې اصحابو رضی الله عنهم به د دوو رکعاتونه زیاتی نه ادا کول

**شپږم دلیل** ،،قال أنس رضی الله عنه: خرجنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم من المدینة إلی مکة، فکان یصلی رکعتین رکعتین، حتی رجعنا إلی المدینة،، یعنی حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه مونږ نبی کریم ﷺ سره د مدینې نه مکې مکرمې طرف ته په سفر اووتلو. په دې سفر کښې به نبی کریم دوه دوه رکعته مونځ کولو تردې چه مونږ مدینې منورې ته راورسیدو

**اووم دلیل**: د جمهور علماؤ مذهب هم دغه دې چه حضورپاك په سفر کښې همیشه هم قصر مونځ کړې دې (۲)

صاحب د البدائع لیکلی دی که چرې قصر کول رخصت وې او پوره کول عزیمت وې نوداسې به ؤچه حضورپاك به عزیمت کله هم نه ترك کولو إلا بعذر ځکه چه په عزیمت باندې عمل کول افضل وی اود حضورپاك شان خو دادې چه حضورپاك به هم افضل اعمال اختیارول او افضل عمل به ئې کله کله د امت د تعلیم دپاره ترك کولو دې د پاره چه دغه عمل دامت دپاره هم رخصت پاتې شی ګنی د رسول الله ﷺ اکثر عمل به هم په دغې باندې وو. بهرحال دا وینا چه چه حضورپاك افضل عمل همیشه ترك کړې دا د واقعه نه خلاف خبره ده او په دې کښې د رسول الله ﷺ فضیلت کمول دی. الغرض دا یو داسې فعل دې د کوم احتمال چه هم ممکن نه دې (۳) ددې نه علاوه د رسول الله ﷺ د بې شمیره صحابه کرامو رضی الله عنهم د آثارو نه په دې باره کښې روایتونه دی. په هغې کښې یو څو دلته ذکرکولې شی

(۱) ،،عن أبی نضرة قال: مر عمران ابن حصین فی مجلسنا، فقام إلیه فتی من القوم، فسأله عن صلاة رسول الله صلی الله علیه وسلم فی الحج والغزو والعمرة؟ فجاء، فوقف علینا، فقال: إن هذا سألنی أمراً، فأردت أن تسمعوه - أوكما قال -: غزوت مع رسول الله صلی الله علیه وسلم، فلم یصل إلا رکعتین، حتی رجع إلی المدینة وحججت معه، فلم یصل إلا رکعتین، حتی رجع إلی المدینة، وشهدت معه الفتح، فأقام بمکة ثمان عشرة لیلة، لا یصلی إلا رکعتین، یقول لأهل البلد: صلوا أربعاً فإنا سفر. واعتمرت معه ثلاث عمر لا یصلی إلا رکعتین وحججت مع أبی بکر وغزوت، فلم یصل إلا رکعتین، حتی رجع إلی المدینة وحججت مع عثمان سبع سنین من إمارته لا یصل إلا رکعتین ثم صلاها بمنی أربعاً،، (۴)

یعنی د حضرت ابو نضرة رحمه الله نه روایت دې چه مونږ ناست وو مونږ سره حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه تیر شو زمونږ د قوم نه یو ځوان اودریدو اودهغوی نه ئې تپوس اوکړو چه حج عمره او غزوات کښې د

(۱) سنن النسائی کتاب الصلاة باب کیف فرضت الصلاة رقم الحدیث: ۴۵۷، ۲۳۶/۱ جامع الأصول کتاب التفسیر سورة النساء رقم الحدیث: ۵۸۶، ۱۰۵/۲ نصب الرایة: ۲/ ۱۹۰-۱۸۹.

(۲) معارف السنن: ۴۵۳/۴ إعلام السنن: ۲۵۱/۷.

(۳) بدائع الصنائع کتاب الصلاة: ۴۶۴/۱.

(۴) المصنف لابن أبی شیبة، کتاب الصلاة رقم الحدیث: ۸۲۵۲ ۳۷۱/۵ مسند احمد بن حنبل حدیث عمران بن حصین رقم الحدیث: ۱۹۸۷۱ المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث: ۲۰۹ ج ۲۰۸/۱۳.

نبی کریم ﷺ مونږ به څنګه وو (یعنی په دې سفرونو کښې به حضورپاك په مانځه کښې قصر کولو که اتمام؟) په دې باندې حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه زمونږ مېنځ ته راغلو اودریدو او وئې فرمائیل چه دا سړې دَهغه څه باره کښې سوال کوی نوما ونیل چه ددې جواب تاسو هم واورئ. بیا هغوی اوفرمائیل ما حضورپاك سره په غزوات کښې شرکت کړې دې نو په هغه سفرکښې به حضورپاك دَ واپس راګرځیدو پورې هم دوه رکعته کول. ما حضورپاك سره حج کړې حضورپاك به دَ مدینې منورې دَ راواپس کیدو پورې هم دوه رکعته کول زه حضورپاك سره دَ فتح مکې په موقع هم حاضر ووم. حضور پاك هلته اتلس شپې قیام کړې وو حضورپاك به هم دوه رکعته کول اوحضورپاك دَ دغه ښار والوته فرمائیلي وو چه مونږ مسافر یو (څکه دوه رکعته کوو) تاسو هم څلور کوئ. ما حضورپاك سره درې عمرې کړې دی (په دې سفرکښې هم) حضورپاك هم دوه رکعته کول. (ارشاد ئې اوفرمائیلو) ما حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره حج هم کړې او هغوی سره په غزوات کښې هم شریك پاتې یم هغوی به هم دوه رکعته کول.اوهم دغه شان به ئې مونږ کولو تردې چه مدینې ته به واپس شو. ما حضرت عمر رضی الله عنه سره څو حجونه کړې هغوی به هم دَمدینې دَ راواپس کیدو پورې هم دوه رکعته کول. اوما حضرت عثمان رضی الله عنه سره دَهغوی په امارت کښې اووه کاله حج کړې هغوی به هم دوه رکعته کول. بیا (په آخره کښې) هغوی په منٰی کښې څلور رکعته اداکول شروع کړی وو.) اوحضرت عثمان رضی الله عنه به داسې دَ تاویل په وجه کول. مکمل وضاحت به په خپل مقام راځی).

② ((حاتم بن اسماعیل عن عبدالرحمن بن حرملة، أنه سمع رجلاً یسأل سعید بن المسیب: أتم الصلاة وأصوم فی السفر؟ قال: لا، قال: فإنی أقوی علی ذلك، قال: کان رسول الله صلی الله علیه وسلم أقوی منك، کان یقصر الصلاة فی السفر ویفطر،وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم: 'خیارکم من قصر الصلاة فی السفر وأفطر')) [1] (یعنی دَحضرت عبدالرحمن بن حرمله رحمه الله نه روایت دې چه هغوې یوسړې واوریدو چه هغه دَ حضرت سعید بن المسیب رحمه الله نه سوال کولو چه په سفرکښې زه پوره مونځ کولې شم؟ اوروژه ساتلې شم؟ هغوی جواب ورکړو چه نه (دا دواړه کارونه به په سفر کښې نشی کولې). دغه سړی اووئیل چه زه دَ دغه دواړو کارونو په کولو باندې قدرت لرم. حضرت رحمه الله جواب ورکړو چه رسول الله ﷺ تانه ډیر په دې کارونوباندې قدرت لرلو لیکن هغوی ﷺ به په سفرکښې قصر هم کولو او روژه به ئې هم نه ساتله او رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلې "تاسو کښې بهترین هغه سړې دې چه په سفرکښې قصر مونځ اوکړی او روژه اونه ساتی".

دَ مذکوره دلائلونه او دغه شان دَ نورو ډیرو دلائلو اوشواهدونه داخبره په پوره شان سره ښکاره شوې مخې ته راغلې ده چه په سفرکښې قصر واجب دې نه چه سنت یا رخصت.

## ۲-باب: وُجُوبِ الصَّلاةِ فی الثِّیَابِ وقولِ اللهِ تعالٰی:

خُذُوا زِینَتَکُمْ عِنْدَ کُلِّ مَسْجِدٍ/الاعراف: ۳۱/وَمَنْ صَلّٰی مُلْتَحِفًا فی ثَوْبٍ وَاحِدٍ.

**دَ مذکوره باب ماقبل سره مناسبت:** په سابقه باب کښې امام بخاری رحمه الله دَ مونځ دَ فرضیت کیفیت بیانولو. اوس دَ مانځه دَ فرضیت نه پس دَمانځه دَ شرطونونه رومبې شرط یعنی په مانځه کښې دَ کپړو دَ استعمال دَ ضرورت بیان کوی. چنانچه په دې باره کښې (یعنی دَ سړی دپاره دَ ښځې دپاره په

[1] المصنف لابن أبی شیبة،کتاب الصلاة رقم الحدیث: ۸۲۵٤ ۳٦۹/۵المصنف لعبدالرازق کتاب الصلاة رقم الحدیث: ٤٤۸۰ جامع الأحادیث مراسیل سعید بن المسیب رقم الحدیث: ٤٤۰۰۵.

یخنئی کښې په ګرمئی کښې د لباس د زیاتیدو په صورت کښې اود لباس د کمیدو په صورت کښې به څه حکم وی؟، امام بخاری رحمه الله اوولس ابواب قائم کړی دی. په کوم کښې چه د ټولو نه وړاندې د دې خبرې ذکرکړې دې که چرې چاسره صرف هم یوه کپړه وی دکومې په اغوستو چه هغه مونځ کولې شی نو په دې کښې په عام توګه درې حالتونه مخې ته راتلې شی یا خو به هغه کپړه ډیره ارته او وسیع وی یابه د درمیانه درجې وی او یا به ډیره وړه اوتنګه وی

امام بخاری رحمه الله رومبې باب "باب عقد الإزار علی القفا فی الصلاة" ترلوسره دې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چه که هم یوه کپړه د درمیانه درجې وی نوبیا مونځ ګذار له پکار دی چه دهغې دواړه غاړې اونیسی او د خپل سټ نه شاته غوټه اولګوی دې دپاره چه په کیناستو پاسیدو کښې کپړه پریوتو سره د ستر عورت حالت اختیار نه کړی. دا په هغه صورت کښې دی چه کوم وخت کپړه دومره لویه نه وی چه هغه باقاعده د بدن نه چاپیره راتاؤکړې شی اوکه چرې کپړه دومره لویه وی چه هغه واغوستې شی نودهغې د حکم خودلودپاره نې دونم باب قائم کړو "باب الصلاة فی الثوب الواحد ملتحفا به" په دې کښې نی اوخودل چه په داسې صورت کښې د کپړې یو اړخ په اوږه باندې واچولې شی دې دپاره چه په دې طریقه ټول بدن پټ شی اود بدن هیڅ یوه حصه بربنډه (یعنی بغیر د کپړې پاتې) نه شی

اوکه چرې دریم صورت وی یعنی کپړه ډیره تنګه وی نوهغه به نه اغوستې شی اونه به په سټ کښې غوټه ورکولوسره زوړندولې شی نودې حکم واضح کولودپاره نې دریم باب "باب إذا کان الثوب ضیقا" قائم کړو او وئی خودل چه په داسې صورت کښې دا تنګه کپړه د لنګ په شان استعمالولو سره دې ستر د عورت پټ کړې شی اوباقی بدن دې بربنډ پریخودې شی نوبیابه هم مونځ اوشی خلاصه داچه مقصود اولی اواصلی ستر پټول دی ددې دپاره چه څنګه کپړه وی هم هغه شان به حکم وی

**د ترجمة الباب مقصد:** مذکوره باب "وجوب الصلاة فی الثیاب" نه امام بخاری رحمه الله د مونځ د شرطونونه د رومبی اهم شرط اهمیت ښکاره کول غواړی.

**دحضرت شیخ الحدیث رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث مولانا محمدزکریا صاحب کاندهلوی رحمه الله فرمائی: "د امام بخاری رحمه الله د اصول موضوعه نه دادی چه کوم ځائې د ائمه کرامو اختلاف قوی وی هغه (د ځآن نه) څه حکم نه لګوی او چرته چه څه قوی اختلاف نه وی هلته چه د امام بخاری رحمه الله په نیز کوم راجح وی په هغې باندې حکم قطعی لګوی" چنانچه په دې سند کښې اختلاف وو چه د مانځه د پاره کپړې شرط دی که نه؟ د امام مالك رحمه الله په نیز دا شرط نه دی اود باقی ائمه حضراتو په نیزشرط دی. او هم دغه مسلك دامام بخاری رحمه الله په نیز راجح وو چه کپړې د مونځ دپاره شرط دې. هم ددې طرف ته اشاره کولو سره امام بخاری رحمه الله د وجوب لفظ استعمال کړې. لکه چه په دې عنوان سره د مالکیه رد کړې شوې دې. (د ائمه داختلاف وضاحت وړاندې راځی، او په وجوب باندې استدلال آیت مبارك ذکر کولوسره کړې دې ﴿خُذُوا زِينَتَكُمْ﴾ چه دا امر حکم ایجابې دې او﴿ زِينَتَكُمْ﴾ نه مراد لباس دې چونکه د بربنډ پاتې کیدو په مقابله کښې دا زینت دې په دې وجه د کپړې په ځآئې باندې د زینت لفظ ذکرکولوسره اشاره اوکړه چه د مانځه په وخت کښې ښکلې کپړې اچولوسره مونځ کول پکار دی [1]

**دحضرت کشمیری رحمه الله رائې:** حضرت انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی په دې باب سره امام بخاری رحمه الله د مانځه شرائط شروع کوی او امام بخاری رحمه الله د بعض فقهاؤ مخالفت کولوسره ددې خبرې

[1]) تقریر بخاری شریف: ۱۲۲/۲ الکنز المتواری: ۱۶/٤.

تصریح کړې ده چه ستر پټول دَ مانځه شرائط او فرائض کښې داخل دی. اودَ ستر نه مراد دَ فقهاؤ په نیز داسې ستر دې چه هغې ته کتل دَ چادپاره هم ممکن نه وی، په بل صورت کښې که چرې لباس سره اندامونه رابنکاره کیږی نوهغه غیر معتبر لباس دې.[1]

﴿خُذُوا زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ﴾ (الاعراف: ۳۱) (اې بنی آدم) واخلئ خپل خائست دَ هر مانځه په وخت. دا ایت دَهغه خلقو په ردکښې نازل شوچه دَ کعبه طواف به ئې په بربنډه کولو اودا به ئې ډیر قربت او پرهیزګاری ګڼړله. نوهغوی دَدې کار نه منع کړې شو چه دَهرعبادت په وخت لباس اچونئ.[2] دَ زینت نه مراد لباس دې اولباس هغه دې کوم چه ستر پټ کړی.

امام بخاری رحمه الله دا آیت په ترجمة الباب کښې ذکرکولوسره لکه چه په دې خبره باندې استدلال کوی چه کله دَ طواف په وخت کپړې اغوستل ضروری ګرځولې شوی دی. په داسې حال کښې چه طواف یوداسې عبادت دې په کوم کښې چه دَ مانځه پابندئی کمې وی نو په مونځ کښې کپړې اچول به درجه اولی ضروری وی ځکه چه دَ مونځ پابندئی خودَ طواف په مقابله کښې ډیرې زیاتې دی.[3]

بیا په مذکوره آیت کښې دَ سترعورت حکم جمات ته راتلوسره مقیدکړې شوې دې نه چه مونځ کولوسره. دَدې وجه هم دغه ده چه دَ شریعت په نظرکښې دَ فرض مونځ اداکیدل هم په جمات کښې کیدل پکاردی. غرض دا چه مونځ په ښه لباس کښې او په جمات کښې دَجمع په وخت ښه په اهتمام تلو سره اداکول پکاردی. ځکه چه دَ لفظ زینت نه معلومیږی چه دَ مانځه په حالت کښې په نسبت دَ نورو حالاتوښکلې لباس کښې کیدل پکاردی.[4]

**دَ سترعورت حکم:** دَ مذکوره باب په ترجمه کښې ذکرکیدونکې آیت مبارك نه دَ مونځ دپاره دَ لباس ضروری کیدو باندې استدلال کړې شوې دې.

دَ ستر پټولو حکم وجوبی دې که استحبابی؟ په دې باره کښې دَ اول نه په دې باندې پوهیدل پکاردی چه دَ ټولو علماء کرامو خو په دې خبره باندې اتفاق دې چه سترِدَ عورت مطلقاً فرض دې که په مونځ کښې وی اوکه دَ مونځ نه بهر. اختلاف په دې خبره کښې دې چه سترعورت دَ مونځ صحیح کیدو دَ شرائطونه دې اوکه نه دې؟ دغه شان دَ ښځې او سړی دَ ستر حد څه دې؟ په دې کښې هم اختلاف دې. چنانچه په رومبې مسئله کښې دَ امام مالك رحمه الله ظاهر مذهب دادې چه سترِدَ عورت دَ مانځه دپاره سنت دې شرط نه دې. اودَ ائمه ثلاثه مذهب دادې چه دا دَ مانځه دَ فرائض نه دی.[5]

دَدې اختلاف سبب اوپه آثارکښې تعارض اودَ الله عزوجل دَقول ﴿ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ ﴾ په مفهوم اخذ کولوکښې دې. هغه داسې چه په دې آیت مبارك کښې ﴿خُذُوا﴾ دَ امرصیغه ده. اوس دې نه امر وجوبی مراد دې که امر استحبابی؟ په دې کښې اختلاف دې.

---

[1] حاشیة الدسیوقی، فصل فی الستر: ۲۱۱/۱فیض الباری: ۱۰/۲أنوارالباری:۹۵/۱۱.

[2] تفسیر عثمانی سورة اعراف ص: ۱۹۱فتح الباری: ۶۰۳/۱عمدة القاری: ۸۰/٤التفسیر الکبیر: ۵۰/۱٤الجامع الأحکام القرآن:۱۶۷/۷تفسیر ابن کثیر:۱٤۹/۳.

[3] عمدة القاری: ۸۰/٤الکنزالمتواری:۱۷/٤فیض الباری: ۱۰/۲أنوارالباری: ۹۶/۱۱.

[4] فیض الباری: ۱۰/۲أنوارالباری: ۹۶/۱۱.

[5] البحرالرائق کتاب الصلاة باب فی الشروط: ٤۶۵/۱التبین الحقائق، کتاب الصلاة باب فی شروط: ۲۵۲/۱البنایة کتاب الصلاة باب فی شروط الصلاة: ۱۲۱/۱-۱۱۹ التناج والإکلیل، کتاب الصلاة فصل فی ستر العورة: ٤۹۷/۱الإقناع کتاب الصلاة فصل القول فی شروط الصلاة والسنن: ۱۲۷/۱المنتقی کتاب الصلاة الرخصة فی الثوب الواحد: ۲۲۵/۲.

دآنمه ثلاثه په نیز دا امروجوبی دي اودي نه مراد سترد عورت دي اودي دپاره هغوی سره دلیل ددې آیت شان نزول چه دَ بیت الله طواف سرو اوښځو په بربنډه کولو. په دي باندي دا آیت نازل شو. چنانچه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه بیا دي یومشرک هم دَ بیت الله حج یا طواف په بربنډه باندي اونه کړی. «أمر رسول الله صلی الله علیه وسلم ألا یحج بعد العام مشرك ولا یطوف بالبیت عریان» (۱)

دَامام مالك رحمه الله په نیزدا امر وجوبی نه دي استحبابی دي او دَدي نه مراد په څادر وغیره سره ظاهری زینت دي یا دَ څادر نه علاوه نوري کپړي چه دَ زینت دپاره استعمالیږی هغه مراد دی. (۲) دهغوی دلیل دَ مؤمنانوهغه حالت دي دکوم ذکرچه په حدیث رسول ﷺ کښي راغی: «من أنه کان رجال یصلون مع النبی صلی الله علیه وسلم عاقِدِيْ أُزُرِهِمْ علی اعناقهم أناقهم کهیئة الصبیان، ویقال للنساء: لا ترفعن رؤسکن حتی یستوي الرجال جلوساً». (۳) یعنی خلقوبه نبی کریم ﷺ سره مونځ کولو په داسي حال کښي چه دهغوی لنګونه (څادرونه) به دهغوی ستونوسره تړلي شوی وو لکه څنګه چه دَ ماشومانو صورت وی او ښځوته به وئیلی شو چه خپل سرونه دي ترهغه وخته پورې نه اوچتوی ترکومي چه سړی کینه نی.

**دَامام بخاری رحمه الله رائې:** په دي مسئله کښي دَ امام بخاری رحمه الله په نیز هم سترعورت دَ مانځه دَ پاره دَ شرائط نه دي لکه چه دهغوی دَ صنیع نه معلومیږی چه دَ باب عنوان نی "باب وجوب الصلاة فی الثیاب" قائم کړو. بیا ترجمة الباب کښي دَ حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه دَحدیث ټکړه هم داسي نشاندهي کوی چه حضورپاك ارشاد فرمائیلي چه خپل څادر دَ څه ازغی وغیره په مدد سره تړلي اوساتئ. مطلب دا چه کله دَ مانځه نه بهر په ښکارکښي خپل سترد پټولو حکم ورکړي شو نوبه مانځه خو به په درجه اولی دا حکم وی.

چنانچه دَامام بخاری رحمه الله داحدیث په ترجمة الباب کښي راوړل دَ سترعورت په وجوب باندي دَ دلالت دپاره او سابقه آیت کښي دَ زینت اختیارولونه مراد لباس اغوستلو طرف ته اشاره کول دی نه چه دَ سترد ښائست اوښکلي والی دپاره دَ زیاتی لباس استعمالولو طرف ته. (۴)

**قوله: ومن صلی ملتحفاً فی ثوب واحد:** اوهغه سړي چه په یوه کپړه کښي رانغښتي مونځ کوی (دهغه مونځ صحیح دي). دا جمله امام بخاری رحمه الله دَ ترجمة الباب جز جوړولوسره ذکر کړي ده. په دي باره کښي حافظ ابن حجر رحمه الله او امام شهاب الدین ابوالعباس احمدبن محمد قسطلانی رحمه الله داخبره لیکلي ده چه په ترجمة الباب کښي دا جمله صرف دَ مستملي په نسخه کښي ده حموی اوکشمیهنی وغیره په نسخوکښي دا جمله په ترجمة الباب کښي نشته دي. دَدي وجه داهم ممکن ده چه هم په دي عنوان سره یوباب په مستقبل کښي هم امام بخاری رحمه الله ذکر کړي دي. (۵)

---

(۱) هذا لیس بحدیث واحد، ولکنه حدیثان: الأول: من حدیث ابن عباس فی سبب نزول الآیة ﴿ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ ﴾. اخرجه مسلم فی کتاب التفسیر رقم الحدیث: ۳۰۲۸ والحدیث الثانی: وهو "ألا یحج بعدالعام مشرک". واخرجه البخاری فی کتاب الحج باب لایطوف بالبیت عریان، رقم الحدیث: ۱۶۲۲.

(۲) بدایة المجتهد کتاب الصلاة باب الرابع فی ستر العورة: ۱۸۳/۲.

(۳) صحیح البخاری کتاب الصلاة باب الرجل یعقد الثوب رقم الحدیث: ۳۶۲ صحیح مسلم رقم الحدیث: ٤٤١.

(۴) عمدة القاری کتاب الصلاة: ۸۱/٤.

(۵) فتح الباری: ۶۰۲/۱ ارشادالساری: ۱۱/۲.

**دَترجمة الباب مقصد:** مذکوره جمله دَ سابقه خبرې (چه دَ مونځ دپاره ستر عورت واجب دې) طرف ته دَاشاره کولو دپاره راوړلې شوې دې چه کپړه که لویه وی اوکه وړه وی یوه وی یا زیاتې مونځ به هم په دغه کپړه ستر پټولو سره اداکولې شی.[۱]

**دَ علامه کشمیری رحمه الله رائې:** علامه محمدانورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی هم داخبره امام طحاوی رحمه الله په خپل کتاب کښې "الصلاة فی الثوب الواحد" په نوم سره باب قائم کړې سره ذکر کړې دې اودې مقصد دادې که چرې مونځ هم په یوه کپړه کښې کول وی نوکه هغه چرې لویه ده نوهغه په توګه دَ توشح، التحاف واشتمال استعمالول پکاردی کوم ته چه څادر راتاوول وائی یعنی دَ څادر یو سر دَ سټ نه شاته راتاوول اومخې ته په سینه باندې راوړلوسره تړل که چرې دومره ګنجائش نه وی نوشانته دې راوړی او په سټ دې غوټه اوتړی اوکه چرې دا دې نه هم کمه وی نو دَ تنګ په شان دې په بدن باندې دَ نامه نه پورته اوتړی. غرض دا چه څومره هم کپړه وی چه په استعمال کښې راشی.[۲]

**دَحضرت شیخ الحدیث رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی په دې ځائی کښې امام بخاری رحمه الله څلور جملې ذکرکړې دی. ① (من صلی فی الثوب ملتحفاً فی الثوب الواحد) ② (ویذکرعن سلمة) ③ (من صلی فی الثوب الذي...الخ) ④ (أمر النبی صلی الله علیه وسلم أن لا یطوف.... الخ) داڅلورجملې شارحین حضرات جزو دَ ترجمه ګرځوی اوهره یوه دَ روایت نه دَ ثابتولو کوشش کوی اولې جملې (من صلی فی الثوب ملتحفاً فی الثوب الواحد) نه په شراح باندې یو اشکال کیږی چه که چرې داجز دَ ترجمه اوګرځولې شی نو تکرار ترجمه لازم راځی ځکه چه وړاندې یو مستقل باب "الصلوة فی الثوب الواحدملتحفاًبه" راځی دَدې جواب شراح دا ورکوی چه دلته ئې تبعاً ذکرکړې دې او په مستقل باب سره ئې اصالةً ذکر کړې دې.

خو زما په نیز په دې کښې یوجزوترجمه نه ده بلکه داسې جملې کله "مثبت" بفتح الباء الموحده وی او کله "مثبت" بکسر الباء وی. زما په نیز "مثبت" نه ده بلکه "مثبت" ده. دَ "مثبت" بفتح مطلب دا وی چه هغه جزوترجمه وی اودهغې اثبات دَ روایت وغیره نه مقصود وی او "مثبت" مطلب دا وی چه هغه (جمله) ترجمه ثابتوی. اوس دا څنګه "مثبت" په کسره دَباء شوه؟ په داسې توګه چه امام بخاری رحمه الله دَ وجوب ثیاب باب قائم کړو دې نه پس ئې (من صلی فی الثوب ملتحفاً) ذکرکولوسره بنائی چه کله حضور پاك اوفرمائیل چه که چرته یوه کپړه وی اوالتحاف کوئې نوکه چرې کپړه (دَ مونځ دپاره) شرط نه وې نو دَدې التحاف وغیره څه ضرورت وو؟ دغه شان ئې دَ سلمة بن اکوع رضی الله عنه روایت نقل کړې دې چه په ابوداؤد کښې په تفصیل سره ذکر دې چه حضرت سلمة بن اکوع رضی الله عنه عرض اوکړو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم زه ښکار کوم اوهم یوقمیص وی دَ مونځ وخت کښې څه اوکړم؟ حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو (أزره لو بشوکة) یعنی کنډه لګوه او که چرته نور څه ملاؤ نه شی نو په ازغی سره ئې بند کړه. دا روایت دَامام بخاری رحمه الله په نیز صحیح نه دې خو استدلال په داسې شان سره دې چه که چرې لباس شرط نه وې نو "أذره" وئیلو څه ضرورت وو؟

او (من صلی فی الثوب الذي یجامع فیه...الخ)، نه استدلال داسې دې چه یوه کپړه وی دَ هغې په اغوستو

---

[۱] الکنز المتواری: ۱۷/۴ الکوثر الجاری: ۳٤/۲ فتح الباری: ۶۰۲/۱.
[۲] فیض الباری: ۱۱/۲ أنوارالباری: ۹۷/۱۱.

كښې جماع هم كوى.نوبياهم دهغې اغوستلو سره مونځ كول منع ګرځوى. ددې نه معلومه شوه چه ثياب يعنى لباس شرط دې. او ((أن لا يطوف بالبيت عريانا)) نه بالكل واضح دى چه حضورپاك ((طواف بالبيت عريانا)) نه منع فرمائيلې ده اوهم پخپله نى ارشاد فرمائيلې دې ((الطواف بالبيت صلوة)) نوچه كوم څيز صلاة حقيقى هم نه دې بلكه دهغې په حكم كښې دې اود هغې اداكول نى په بربنډه منع كړى دى نواصل څيز يعنى مونځ څنګه عريان (په بربنډه) كيدوسره كيدې شى (١)

**د التحاف نه څه مراد دې؟:** د ترجمة الباب په مذكوره جمله كښې "ملتحفاً" لفظ استعمال شوې دې. "ملتحفاً" د اسم فاعل صيغه ده د التحاف نه. ددې لغوى معنى په كپړه سره خپل ټول بدن پټولوده. نود "ملتحفاً" معنى شوه په پوره بدن باندې كپړه رانغښتونكې.(٢) بل د كپړې دواړه طرفونه په خپلو دواړو اوږو باندې اچولو ته هم التحاف وائى. هم د دې دويم نوم "التوشح" هم دې.

په دې باره كښې (يعنى په بدن باندې د كپړې رانغښتلو باره كښې) درې الفاظ استعماليږى. التحاف، توشيح او اشتمال. رومبى دوه (التحاف او توشيح) خو هم په يوه معنى كښې استعماليږى.

البته د دريم لفظ درې صورتونه دى: ① اشتمال مطلق ② اشتمال الصماء ③ اشتمال بمعنى اضطباع.

د رومبى صورت خو هم د التحاف والا دې. ددويم نه مراد هيئت دې په كوم كښې چه په بدن باندې كپړه داسې واچولې شى چه د ضرورت په وخت په آسانتى سره خپل لاس بهر راويستلې نه شى دا صورت شرعاً منع دې په دې سره د ستربښكاره كيدل لازم كيږى. او دريم صورت د اضطباع دې چه كپړه د ښې اوږې نه لاندې اوويستلې شى او ګسه اوږه باندې واچولې شى. په دې صورت كښې هم په آسانتى سره د لاس استعمالول څه قدرې مشكل وى په دې وجه دا صورت هم خوښ كړې شوې نه دې سره ددې چه جائز دې.

البته اشتمال صماء والا صورت كښې كه چرې لنګ جدا وى او د لنګ والا په بدن باندې بل څه كپړه رانغښتلې شوې وى بيا دا صورت جائز دې. ځكه چه په دې صورت كښې د ستر ښكاره كيدو نه امن دې. دادهغه بنده دپاره منع دې د كوم په بدن چې لنګ نه وى ځكه چه په هغه وخت د لاس بهر ويستلو وخت كښې به ستر ښكاره كيږى.(٣)

تعليق: ((وَيُذْكَرُ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ: أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ: (يَزُرُّهُ وَلَوْ بِشَوْكَةٍ). فِي إِسْنَادِهِ نَظَرٌ، وَمَنْ صَلَّى فِي الثَّوْبِ الَّذِي يُجَامِعُ فِيهِ مَا لَمْ يَرَ أَذًى وَأَمَرَ النَّبِيُّ أَنْ لَا يَطُوفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ))[ر: ٣٦٢]

دحضرت سلمه بن اكوع رضي الله عنه نه نقل دى چه نبى كريم ﷺ ارشاد فرمائيلې دې چه كه (هم په يوه كپړه كښې د مونځ كولو نوبت راشى نو) دې ته ټانكه اولګونى (يعنى ددې ګريوان بند كړنى سره ددې چه ددې بندول) په يوازغى سره وى. (دې دپاره چه ركوع كولوسره په شرمګاه باندې نظر پرينوځى) ددې (حديث) په سند كښې كلام دې.

---

(١) تقرير بخارى شريف: ٢/٢٣٢-٢٣١.

(٢) القاموس المحيط ماده (ل، ح، ف) ص: ١٠٦٧المعجم الوسيط ماده (ل، ح، ف) بل د ص: ٨١٨

(٣) شرح الزرقانى على الموطا كتاب الصلاة باب الرخصة فى الصلاة فى الثوب الواحد: ١/٤١١المنتقى: ٢/٢٢٧تنوير الحوالک للسيوطى: ١/٢٢فتح البارى لابن رجب: ٢/١٤٤شرح ابن بطال: ٢/٢٠فيض البارى: ٢/١١عمدة القارى: ٤/١٦٨تحفة الأحوذى، باب ماجاء فى الصلاة فى الثوب الواحد

**دَ روایت تخریج:** امام بخاری رحمه الله دا روایت په ترجمة الباب کښې ذکر کړې دې مستقل نې دا په خپل صحیح کښې نه دې ذکرکړې. دَدې وجه داده چه مذکوره روایت دَامام صاحب رحمه الله دَمعیار او شرائطو مطابق نه دې. په دې وجه دَدې نه پس امام بخاری رحمه الله "فی إسنادہ نظر" وئیلې دې. خودا روایت امام ابوداؤد رحمه الله او امام نسائی رحمه الله په خپل خپل سنن کښې ذکر کړې دې. دَدې نه علاوه دا روایت صحیح ابن حبان، صحیح ابن خزیمه او مستدرك علی الصحیحین کښې هم موجود دې.(۱)

**حضرت سلمة بن الاکوع رضي الله عنه:** دا مشهور صحابی حضرت سلمه بن عمرو بن الاکوع اسلمی مدنی رضي الله عنه دې. دَدوی تفصیلی حالات کشف الباری کتاب العلم کښې تیرشوی دی.(۲)

**دَ یزرہ مطلب:** یزره، دَ نصر ینصر نه دَمضارع صیغه ده دَدې مطلب ټانکه لګول دی.(۳)

**دَ روایت ترجمة الباب سره تعلق:** دَ پوره روایت مفهوم داسې دې چه حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه معلومه کړه چه یا رسول الله! زه اکثرښکارکوم او زما په بدن باندې هم یوه کپړه وی نوآیا زه په دغه کپړه کښې مونځ کولې شم؟ حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو چه دغه څادر ته ټانکه لګولوسره تړه «دې دپاره چه په شرمګاه باندې دَ نظر پریوتلونه بچ شې» سره دَدې چه که ټانکه په یوازغی سره اولګولې شی نو په هغې سره هم ټانکه لګوه. نودَدې نه معلومه شوه چه دَ مانځه دپاره دَ کپړو کیدل ضروری دی اوهم دغه خبره په ترجمة الباب کښې وئیلې شوې ده.(۴)

**په مانځه کښې دَ سترکتلوحکم:** که په مانځه کښې په خپل سترباندې نظر پریوځی نو په دې سره مونځ نه فاسد کیږی. علامه عینی رحمه الله لیکلی دی چه دَحضورپاك دَ قول «یَزُرُّهُ وَلَوْ بِشَوْكَةٍ» نه محمدبن شجاع رحمه الله دا استدلال کړې دې چه دَ مانځه په حالت کښې دَ سترطرف ته کتل مونځ فاسدکوی.(۵)

**دَ "وفی إسنادہ نظر" تشریح:** امام بخاری رحمه الله دَ حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه حدیث ترجمة الباب کښې دَ ذکرکولونه پس ((فی إسنادہ نظر)) وئیلې دې اوهم په دې وجه «چه مذکوره حدیث دَامام صاحب په نیز دَهغوی دَشرائطو مطابق نه دې» دا مستقلاً ذکرنه کړوبلکه دَترجمة الباب جز جوړولوسره نې ذکر کړې دې.

داحدیث دَ موسیٰ بن ابراهیم دې هغه دا دَحضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه نه روایت کوی: «قال: قلت: یارسول الله! أنی رجل أصید، أفأصلی فی القمیص الواحد؟ قال: نعم، زره ولوبشوکة» دا حدیث امام احمد رحمه الله ابوداؤد رحمه الله نسائی رحمه الله او ابن حبان رحمه الله په خپل صحیح کښې ذکرکړې دې اوامام حاکم رحمه الله دَدې حدیث تصحیح بیان کړې ده. داحدیث دراوردی رحمه الله دَموسیٰ بن ابراهیم رحمه الله په طریق سره

---

(۱) سنن أبی داؤد کتاب الصلاة باب فی الرجل یصلی فی قمیص واحد، رقم الحدیث: ۶۳۲سنن النسائی، کتاب الصلاة، الصلاة فی قمیص واحد، رقم الحدیث: ۷۶۶، صحیح ابن حبان، کتاب الصلاة، باب ما یکره المصلی ومایکره رقم الحدیث: ۲۲۹۴صحیح ابن خزیمة کتاب الصلاة باب الامربذر القمیص واجبة رقم الحدیث: ۷۷۸المستدرک علی الصحیحین کتاب الصلاة رقم الحدیث:۹۱۳.

(۲) کشف الباری کتاب العلم: ۱۷۳/۴.

(۳) النهایة فی غریب الأثر مادة زرر: ۷۳۱/۱معجم الصحاح ماده زرر، ص: ۴۴۹.

(۴) عمدة القاری کتاب الصلاة باب وجوب الصلاة فی الثیاب: ۸۱/۴.

(۵) عمدة القاری کتاب الصلاة باب وجوب الصلاة فی الثیاب: ۸۱/۴ فیض الباری: ۱۱/۲أنوار الباری: ۹۷/۱۱.

بيان كړي دي اودغه طريق اختصوسره امام ابوداؤد رحمه الله ددې روايت تخريج كړي دي. اودراوردي رحمه الله هم دا روايت د عطاف بن خالد رحمه الله په طريق سره هم بيان كړي دې. ددې طريق تخريج امام احمد رحمه الله او امام نسائي رحمه الله كړې دې.
ابن القطان رحمه الله د برقاني رحمه الله نه نقل كولوسره ونيلي دى چه په دې روايت كښې موسى بن ابراهيم رحمه الله نه مراد موسىٰ بن محمد بن ابراهيم بن حارث التيمى دې. د ابن قطان رحمه الله ددې خبرې نه دوه امر لازم راځي. يو ددې روايت په اسناد كښې ضعف كيدل ځكه چه د موسى بن محمد بن ابراهيم بن حارث التيمى په ضعف باندې اتفاق دې. دويم ددې روايت منقطع كيدل. ځكه چه موسى بن محمد بن ابراهيم بن حارث التيمى دحضرت سلمه رضي الله عنه نه روايت كول ثابت نه دى هغه خو صرف دخپل پلار نه روايت كوى اوهغه دحضرت سلمه رضي الله عنه نه روايت كوى.
دا مضمون دې د ابن قطان رحمه الله دهغه د ګمان مطابق دا هغه نظر دې د كوم طرف ته چه امام بخارى رحمه الله "فى إسناده نظر" كښې اشاره كړې ده.[1]
**د "نظر" حل:** ددې نظر حل دا ذكركړې شوې دې چه صحيح خبره داده په مذكوره روايت كښې موسى نه مراد موسىٰ بن ابراهيم التيمى نه دې بلكه دې نه مراد موسىٰ بن ابراهيم بن عبدالرحمن بن عبدالله بن أبي ربيعه المخزومي دې. على ابن المدينى رحمه الله په دې باندې جزم نقل كړې دې اوددوى نه قاضى اسماعيل رحمه الله په خپل كتاب أحكام القرآن كښې نقل كړې دې. اودغه شان مفضل غلابى رحمه الله په خپل تاريخ كښې مصعب زبيرى رحمه الله په روايت سره ذكركړې دې. هم دا ابوبكر الخلال رحمه الله كتاب العلل كښې ذكركړې دې. اومتاخرين نه عبدالحق الاشبيلى رحمه الله وغيره هم ددې تصريح كړې ده هم په دې وجه ابن حبان رحمه الله په خپل صحيح كښې ددې حديث تخريج كړې دې او د موسى بن ابراهيم التيمى بل يو روايت تخريج نى نه دې كړې د ده په ضعف باندې د اتفاق د وجې نه.[2]
امام حاكم رحمه الله په مستدرك كښې داحديث صحيح ګرځولې دې اوعلامه ذهبى رحمه الله هم ددې توثيق كړې دې.[3]

**قوله: ومن صلى فى الثوب الذي يجامع فيه إذا لم ير فيه أذى:** "داخبره دهغه سړى باره كښې ده، څوك چه په هغه كپړو كښې مونځ كوى په كوموكښې چه هغه خپلې بى بى سره جماع اوكړه، خو چه هغه په دغه كپړوكښې ناپاكى اونه وينى (يعنى دهغه مونځ صحيح دې). په دې عبارت كښې د مستملى اوحموى د روايت مطابق "فيه" لفظ ساقط دې.[4]
**د روايت تخريج:** دا جمله هم امام بخارى رحمه الله د ترجمة الباب جز جوړولوسره ذكركړې ده. دا جمله هم په اصل كښې د يو حديث مبارك ټكړه ده چه حضرت امير معاويه رضي الله عنه دخپلې خور ام حبيبه رضي الله عنها نه پوښتنه اوكړه چه آيا نبى كريم صلى الله عليه وسلم به په هغه كپړوكښې مونځ كولو په كوم كښې چه به نى جماع

---

[1] فتح البارى لابن رجب: ۲۰/۲ شرح ابن بطال: ۱۲/۱فتح البارى: ۶۰۴/۱-۶۰۳عمدة القارى: ۸۲/۴-۸۱ الكوثر الجارى: ۴۳/۲ إرشادالسارى: ۱۱/۲تحفة البارى: ۴۸۴/۱التوشيح: ۲۹۹/۱.
[2] فتح البارى: ۶۰۴/۱ عمدة القارى: ۸۱/۴الكوثر الجارى: ۳۴/۲ إرشادالسارى: ۱۱/۲تحفة البارى: ۴۸۴/۱.
[3] فتح البارى: ۶۰۴/۱ عمدة القارى: ۸۱/۴ إرشادالسارى: ۱۱/۲.
[4] المستدرک على الصحيحين كتاب الصلاة رقم الحديث: ۹۱۳، ۳۷۹/۱.

كوله؟ نوهغې جواب وركړواوجى كله چه به حضورپاك په هغه كپړوباندې څه نجاست لګيدلې نه ليدلو

**تعليق:** ((عن معاوية بن أبي سفيان أنه سأل أخته أم حبيبة: هل كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلي في الثوب الذي يجامع فيه؟ قالت: نعم، إذ لم ير فيه أذى)) داحديث امام ابوداؤد رحمه الله امام نسائى رحمه الله امام ابن ماجه رحمه الله او ابن حبان رحمه الله تخريج كړې او ابن خزيمه رحمه الله دا صحيح ګرځولې دې.[1]

**د روايت مقصد:** په ترجمة الباب كښې دا روايت په توګه دَجز پيش كولو نه مقصد هم هغه دې چه مونځ به هم په كپړو كښې اداكيږى تردې چه دَ صحبت كونكې سره دَهغه كپړې نه علاوه بل څه كپړه نه وى دَ كومې په اغوستو سره چه نې جماع كړې وه نوبياهم دهغه دَپاره ضرورى دى چه په دغه كپړوكښې مونځ اداكړى. البته شرط دادې چه په دغه كپړو باندې نجاست نه وى لګيدلې.[2]

**دَ "أذى" نه څه مراد دى؟:** اذى نجاست ته وائى اودې نه مراد منى ده. په دې باندې قرينه دَحضرت امير معاويه رضي الله عنه سوال اودَهغې په جواب كښې دَ حضرت ام حبيبه رضي الله عنها مذكوره كلام دې.[3]

**دَامام بخارى رحمه الله په نيز دَمنى حكم:** دلته دَامام بخارى رحمه الله دَمنى باره كښې مذهب مخې ته راځى چه دهغه هم دَ احنافو په شان دَمنى نجس كيدو قائل دې.[4]

**قوله: وأمر النبي صلى الله عليه وسلم أن لا يطوف بالبيت عريان:** او نبى كريم صلى الله عليه وسلم حكم وركړو چه هيڅ يو سړې دې دَ بيت الله نه بربنډ طواف نه كوى.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دا جمله دَ اقتباس په توګه امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې ذكركړې ده اومقصد دادې چه څنګه دَ طواف دَپاره سترپټول شرط ګرځولې شوې دې هم دغه شان مونځ دَ څه درجه چه دَحج نه زياته ده دَهغې دَپاره خو ستر پټول په درجه اولى باندې شرط دې.

دَ طواف والاحديث په غرض دَ استدلال جزوترجمه جوړولو وجه داده چه طواف دَ مونځ مشابه دې دا هم دَ مانځه په حكم كښې ګرځولې شوې دې نوچه كله دَ طواف دَپاره ستر شرط اوګرځولې شو نومونځ ددې زيات لائق دې چه ستر پټول ددې دَپاره شرط وى.[5]

**دَ روايت تخريج:** دَ روايت داجمله دلته دَ اقتباس په توګه ده او هم په صحيح بخارى كښې نورو اووه مقاماتوكښې سنداً ذكر ده.[6] داجملې ته دَ تعليق نه بغيراقتباس خكه ونيلې شوې دې چه په روايت

---

[1]) سنن أبي داؤد كتاب الصلاة باب الصلاة في الثوب الذى يصيب أهله فيه رقم الحديث: ۳٦٦سنن النسائى كتاب الصلاة باب المنى يصيب الثوب رقم الحديث: ۲۹٤سنن ابن ماجة رقم الحديث: ٥٤٠صحيح ابن حبان رقم الحديث: ۲۳۳۱صحيح ابن خزيمة رقم الحديث: ۷۷٦.

[2]) عمدة القارى: ۸۱/٤الكنزالمتوارى: ۱۸/٤.

[3]) عمدة القارى: ۸۱/٤فيض البارى: ۱۱/۲ أنوار البارى: ۹۷/۱۱.

[4]) عمدة القارى: ۸۱/٤فيض البارى: ۱۱/۲ أنوار البارى: ۹۷/۱۱.

[5]) فتح البارى لابن رجب: ۲۳/۲ فتح البارى: ٦۰٤/۱عمدة القارى: ۸۳/٤ الكوثرالجارى: ۳٥/۲ إرشادالسارى: ۱۱/۲تحفة البارى: ٤۸٤/۱فيض البارى: ۱۱/۲.

[6])صحيح بخارى كتاب الصلاة باب ما يستر من العورة رقم الحديث: ۳٦۹وفى كتاب الحج باب لايطوف بالبيت عريان رقم الحديث: ۱٦۲۲وفى كتاب الجزية باب كيف ينبذ إلى أهل العقدرقم الحديث: ۳۱۷۷وفى كتاب المغازى باب حج أبي بكر بالناس فى سنة تسع رقم الحديث: ٤۳٦۳وفى كتاب التفسير باب فسيحوافى الأرض أربعة أشهر

کښې د امر نبی ﷺ تصریح نشته دې. اوپه ترجمة الباب کښې په ذکرکړې شوې جمله کښې دامر تصریح کړې شوې ده. په دې وجه دې جملې ته اقتباس ونیل خو صحیح دی ولې تعلیق ونیل صحیح نه دی (۱)

## الحديث الثانى

[۳۴۳] - حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، قَالَتْ: أُمِرْنَا أَنْ نُخْرِجَ الْحُيَّضَ يَوْمَ الْعِيدَيْنِ، وَذَوَاتِ الْخُدُورِ فَيَشْهَدْنَ جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِينَ، وَدَعْوَتَهُمْ وَيَعْتَزِلُ الْحُيَّضُ عَنْ مُصَلَّاهُنَّ، قَالَتِ امْرَأَةٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِحْدَانَا لَيْسَ لَهَا جِلْبَابٌ؟ قَالَ: «لِتُلْبِسْهَا صَاحِبَتُهَا مِنْ جِلْبَابِهَا»، وَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَجَاءٍ: حَدَّثَنَا عِمْرَانُ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ، حَدَّثَتْنَا أُمُّ عَطِيَّةَ، سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا (۲)-[ر ۳۱۸]

**دحدیث ترجمه:** د حضرت ام عطیه رضی الله عنها نه روایت دې چه مونږ ته (د نبی کریم ﷺ د طرف نه) حکم راکړې شوچه په اخترونوکښې حائضه او پرده کونکې ښځې واخلنې بهردې اوخنی دې دپاره چه هغوی د مسلمانانو په جماعت کښې اودهغوی په دعاګانوکښې شریکې شی اوحائضه ښځې دې د مانځه نه جدا شی (یعنی د حیض په وجه دې مونځ نه ادا کوی). یوې ښځې عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ که په مونږ کښې کله چاسره کپړه نه وی (په کومې سره چه هغه پرده اوکړې شی نوهغه ښځه دې څه اوکړی؟ یعنی څنګه اوځی؟) حضورپاک جواب ورکړو چه دهغې سره خواکې ښځې له پکاردی چه هغه دا (ښځه چاسره چه پرده نه وی) په پرده (یعنی لوپټه) کښې پټه کړی.

## تراجم رجال

**موسىٰ بن اسماعیل:** دا ابوسلمه موسی بن اسماعیل تبوذکی بصری رحمه الله دې. ددوی تفصیلی حالات کشف الباری کښې کتاب بدءالوحی څلورم حدیث کتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس دویم حدیث کښې تیرشوی دی. (۳)

---

رقم الحديث: ٤٦٥٥ وباب "وأذان من الله ورسوله فى الناس يوم الحج الأكبر" رقم الحديث: ٤٦٥٦ وباب "إلا الذين عاهدتم من المشركين" رقم الحديث: ٤٦٥٧.

(۱) عمدة القارى: ٨٣/٤

(۲) أخرجه البخارى فى كتاب الحيض باب شهودالحائض العيدين. رقم الحديث: ٣٢٤ وفى كتاب الصلاة باب التكبير أيام منى رقم الحديث: ٩٧١ وباب خروج النساء والحيض إلى المصلى رقم الحديث: ٩٧٤ وباب إذا لم يكن لها جلباب فى العيد رقم الحديث ٩٨٠ وباب اعتزال الحيض المصلى رقم الحديث: ٩٨١ وفى كتاب الحج باب تقتضى الحائض المناسك كلها إلا الطواف بالبيت رقم الحديث: ١٦٥٢ وأخرجه مسلم فى صلاة العيدين باب ذكر إباحة خروج النساء فى العيدين إلى المصلى وشهود رقم الحديث: ٨٩٠ وأخرجه أبوداؤد فى الصلاة باب خروج النساء فى العيد رقم الحديث: ١١٣٩-١١٣٦ وأخرجه الترمذى فى الصلاة باب ماجاء فى خروج النساء فى العيدين رقم الحديث: ٥٣٩-٥٤٠ وأخرجه النسائى فى العيدين باب خروج العواتق وذوات الخذور فى العيدين رقم الحديث: ١٥٥٩ وباب اعتزال الحيض مصلى الناس رقم الحديث: ١٥٦٠ جامع أصول كتاب الصلاة الفصل السادس فى صلاة العيدين الفرع التاسع في خروج النساء إلى العيدين رقم الحديث: ٤٢٦٣.

(۳) كشف البارى: ٤٣٣/١، ٤٧٧/٣.

**يزيدبن ابراهيم:** دا ابوسعيد يزيدبن ابراهيم التستري رحمه الله دي. مولى اسيد دي اوداهل بصره نه دي.[1] دي دحسن ابن سيرين، ابن أبي مليكه، عطاء، قتاده، أبي زبير، ابراهيم بن العلاء الغنوي، عبدالله بن يسار المكي، قيس بن سعيد او ليث بن أبي سليم رحمهم الله نه روايت كوي.[2]
او دوى نه وكيع، بهزبن اسد، عبدالرحمن بن مهدي، عبدالملك بن ابراهيم الجدي، ابن مبارك، ابو أسامه، عبدالصمد، يزيدبن هارون، ابوداؤد، ابوالوليد الطيالسيان، حجاج بن منهال، ابوعمرو الحوضي اوسهل بن بكار رحمهم الله روايت كوي.[3]
امام احمدبن حنبل رحمه الله د دوى باره كښې فرمائي "ثقة". دامام صاحب خوئي حضرت عبدالله دخپل پلار امام احمد بن حنبل رحمه الله نه تپوس اوكړو چه ستاسو د يزيدبن ابراهيم سره زيات محبت دي كه على بن على سره؟ نوامام صاحب رحمه الله جواب وركړو چه زما يزيدبن ابراهيم سره زيات محبت دي.[4] ابن معين رحمه الله فرمائي (يزيدبن ابراهيم أثبت من جرير بن حازم)[5] ابي خيثمه رحمه الله فرمائي چه ديحيى بن معين رحمه الله نه يزيد بن ابراهيم رحمه الله اوسري بن يحيى رحمه الله باره كښې سوال اوكړې شو چه دې دواړوكښې أثبت كوم يو دي؟ نوابن معين رحمه الله جواب وركړو (يزيد لاشك فيه، والسري ثقة، ولكن يزيد بن ابراهيم أكبر منه).[6]
ابوالوليد رحمه الله فرمائي (يزيدبن إبراهيم أثبت عندنا من هشام بن حسان)[7] وكيع بن الجراح رحمه الله ته د يزيد بن ابراهيم التستري رحمه الله ذكراوكړې شو نوهغوى اوفرمائيل (ثقة، ثقة)[8] على بن المديني رحمه الله فرمايي (يزيدبن إبراهيم ثبت في الحسن وابن سيرين)[9] سعيدبن عامر رحمه الله فرمائي (حدثنا يزيدبن ابراهيم الصدوق المسلم)[10] يزيدبن زريع رحمه الله فرمائي (مارأيت أحداً من أصحاب الحسن أثبت من يزيدبن إبراهيم)[11] محمدبن سعيد رحمه الله فرمائي (كان ثقة ثبتاً)[12]
ابن عدي رحمه الله فرمائي د يزيد احاديث مستقيم دي سوا دهغه د هغه احاديثونه كوم چه هغه ((عن قتادة، عن أنس)) سره روايت كوي. اووئي فرمائيل چه ((وهوممن يُكتبُ حديثه ولا بأس به، وأرجو أن يكون صدوقاً))[13]

---

[1] التاريخ الكبير للبخاري: ۸/۲۱۸ كتاب الثقات لابن حبان: ۴/۴۰۳.
[2] تهذيب الكمال: ۳۲/۷۷ تهذيب التهذيب: ۱۱/۳۱۱.
[3] تهذيب الكمال: ۳۲/۷۷ تهذيب التهذيب: ۱۱/۳۱۱.
[4] الجرح والتعديل: ۹/۳۱۱.
[5] تهذيب التهذيب: ۱/۳۱۲ سير أعلام النبلاء: ۷/۲۹۲.
[6] تهذيب التهذيب: ۳۲/۷۹ سير أعلام النبلاء: ۷/۲۹۳.
[7] الجرح والتعديل: ۹/۳۱۱ سير أعلام النبلاء: ۷/۲۹۲.
[8] الجرح والتعديل: ۹/۳۱۱ سير أعلام النبلاء: ۷/۲۹۲.
[9] تهذيب الكمال: ۳۲/۸۰.
[10] سير أعلام النبلاء: ۷/۲۹۲ تهذيب الكمال: ۳۲/۸۰.
[11] تهذيب التهذيب: ۱/۳۱۲.
[12] سير أعلام النبلاء: ۷/۲۹۲.
[13] تهذيب الكمال: ۳۲/۸۱ تقريب التهذيب: ۲/۳۲۹.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کښې د یزید ابراهیم رحمه الله طرف ته دریو
خایونو کښې تخریج کړې دې. دوو ځایونوکښې متابعةً او دریم ځائې کښې احتجاجاً. یومبې ځائې
کتاب الصلاة کښې دویم ځائې سجود السهو اودریم ځائې کتاب التفسیر کښې (۱)
دَ وی دَ وفات باره کښې درې اقوال دی. ابوالولید الطیالسی فرمائی چه دَدوی وفات ۱۶۱هجری
کښې شوې. عمرو بن علی رحمه الله فرمائی ۱۶۲هجری کښې شوې او ابوبکر محمدبن سعید بن یزید
رحمه الله فرمائی ۱۶۳هجری کښې شوې. (۲)

**محمد:** دامشهور تابعی عالم امام شیخ الاسلام ابوبکر محمدبن سیرین انصاری بصری رحمه الله دې
دَدوی دَ حالاتو تذکره کشف الباری کتاب الایمان باب اتباع الجنائز من الایمان کښې تیره شوې ده (۳)

**ام عطیة:** دا نسیبه بنت کعب الانصاریه رضي الله عنها ده. اودَ یوقول مطابق نسیبه بنت الحارث ده. ام عطیه
دَدوی کنیت دې. دَدوی حالات کتاب الوضوء باب التیمن فی الوضوء والغسل کښې تیرشوی دی. (۴)

**دَترجمة الباب مناسبت:** دَمذکوره حدیث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې چه په دې کښې حکم
ورکړې شو چه «لتلبسها صاحبتها من جلبابها» کومې ښځې سره چه دَ پردې دَپاره څادر وغیره نه وی هغه
دې دهغې یوه ملګرې ښځه خپل څادر وغیره ورکړی بیا دې پرده اوکړی اوهغه ښځه دې عیدګاه ته
راشی. نوچه کله دَاختردَ پاره راتلوکښې دَ پردې تاکید کړې شوې دې کوم چه واجب مونځ دې نودا
پابندی په دَ فرائضو دَپاره په درجه اولی وی (۵)

**قوله: أُمِرْنَا أَنْ نُخْرِجَ:** دَ بخاری شریف په روایت کښې "أُمِرْنَا" دَمجهول صیغې سره دې خودَ مسلم
په روایت کښې "عن هشام عن حفصة" په طریق سره دَ "أَمَرَنَا رسول الله صلی الله علیه وسلم" الفاظ دی (۶)

**قوله: الْحُيَّضَ:** دَ حاء ضمه او یاء تشدید سره دَحائض جمع ده (۷)

**قوله: يوم العيدين:** دلته العیدین دَ تثنیه صیغه ده خودَ مستملی اوکشمیهنی په روایت کښې "یوم
العید" دَ واحدصیغه ده. (۸)

**قوله: عن مصلاهن:** هن ضمیردَهغه ښځوطرف ته راګرځی کومې چه دَ حیض والا نه دی. دَ
مستملی په روایت کښې دَ "المصلی" اضافت "هم" طرف ته دې. یعنی مصلاهم. په دې صورت کښې
مذکر ضمیر ذکرکول تغلیباً دې چه مؤنث دَ مذکر لاندې کیدوَدَ وجې نه په دې کښې داخل دی. خودَ
کشمیهنی په روایت کښې دا لفظ اضافت نه بغیردې. یعنی عن المصلی دغه وخت به مراد صرف دَ

---

(۱) هدی الساری ص: ۶۳۰
(۲) تاریخ الکبیرللبخاری: ۳۱۸/۸ الکاشف: ۳۸۰/۲ الثقات لابن حبان: ۴۰۳/۴
(۳) کشف الباری کتاب الایمان باب اتباع الجنائز من الإیمان: ۵۲۴/۲
(۴) کشف الباری کتاب الوضوء باب التیمن فی الوضوء والغسل.
(۵) عمدة القاری: ۸۳/۴ فتح الباری: ۶۰۵/۱ الکنزالمتواری: ۱۸/۳.
(۶) صحیح مسلم کتاب صلاة العیدین ذکر إباحة خروج النساء فی العیدین إلی المصلی رقم الحدیث: ۸۹۰
(۷) معجم الصحاح المادة ح، ی، ض، ص: ۲۷۷ النهایة فی غریب الأثر: ۴۵۹/۱ إرشادالساری: ۱۲/۲.
(۸) فتح الباری: ۶۰۵/۱ إرشادالساری: ۱۲/۲ عمدة القاری: ۸۳/۴

مانځه ځائي وي.(١)

**قوله:: قالت إمرأة:** إمرأة نه مراد ام عطيه رضي الله عنها ده. قالت نه مراد هغې پخپله خپل ذات اختې دې.(٢) ګني پخپله په يوروايت کښې «قلت: يارسول الله إحدانا» موجود دې.(٣)

**قوله:: جلباب:** دَ ج کسره سره جلباب دې. جلباب لوئې څادر ته وائي په کوم سره چه ښځه خپل سر او سينه پټه وي. دَدې نه علاوه دَ جلباب معنى پړونې قميص اولنګ وغيره هم راځي.(٤)

**قوله:: لتلبسها:** دَ سين جزم سره دَ امر صيغه ده. مراد دادې چه دَ خپل ضرورت نه زياتي کپړې يوضرورت مند ته دَ نفع اخستلودپاره ورکړې.(٥)

دَمذکوره روايت تفصيلي مباحث کتاب الوضوء کښې تيرشوي دي. دلته صرف په دې خبره باندې خبرداري مقصود وو چه په مانځه کښې ستر پټول فرض دي.

**تعليق** «قال عبدالله بن رجاء، ثنا عمران، حدثنا محمد بن سيرين حدثتنا أم عطية، سمعت النبي صلى الله عليه وسلم بهذا».

**دَتعليق تخريج:** حافظ ابن حجر په تغليق التعليق کښې دا تعليق مکمل سند اومتن سره ذکرکړې دې. هغه فرمائي: «أخبرني بذلك أحمد بن أبي بكر المقدسي، في كتابه عن محمد بن علي بن ساعد الحلبي أن يوسف بن خليل الحافظ، أخبرهم: أنا محمد بن أبي زيد أنا محمود بن إسماعيل الصيرفي، أنا أحمد بن محمد [بن فاذشاه] أنا سليمان بن أحمد ثنا علي بن عبد العزيز البغوي ثنا عبدالله بن رجاء الغداني، أنا عمران القطان، عن محمد بن سيرين، حدثتنا أم عطية الأنصارية، قالت وقد غزوت مع النبي صلى الله عليه وسلم غزوات كنا نقوم على الكلمى، ونداوي الجرحى، فلقلت: يارسول الله! إحدانا تخرج مع الناس يوم الفطر، ويوم النحر، قالت: فسمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: يخرجن العواتق وذوات الخدور والحيض، فيشهدن الخير ودعوة المسلمين، قلت: يارسول الله! إحدانا لا يكون لها ثوب، قال: تلبسها أختها» (٦)

دَحديث مفهوم دادې چه حضرت ام عطيه رضي الله عنها اوفرمائيل زه نبی کريم ﷺ سره په څو غزواتوکښې شريکه شوم. مونږ (ښځې) به مريضانوسره وو، دَ زخميانوعلاج به مو کولو ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو يا رسول الله! مونږ کښې څوک نورو خلقوسره په وړوکي اختر اولوئي اخترکښې شريکې شوې دي حضورپاک ارشاد اوفرمائيلو چه آزادې پردې والا ښځې اوحائضه ښځې دَمسلمانانوخير په مجلسونوکښې دې حاضرېږي. حضرت ام عطيه رضي الله عنها فرمائي چه ما عرض اوکړو يارسول الله! (يووخت کښې) مونږ کښې به چاسره کپړه هم نه وه (چه په هغې سره دغه ښځه پرده اوکړې شي) نوحضورپاک ارشاد اوفرمائيلو چه (په داسې صورت کښې) دَهغې ملګرې ښځه دې خپله زياتي کپړه ورواغوندوي.

١) فتح الباري: ١/٦٠٥ إرشادالساري: ٢/١٢ تحفة الباري: ١/٢٨٤.
٢) عمدة القاري: ٤/٨٣.
٣) صحيح مسلم كتاب العيدين ذكر إباحة خروج النساء في العيدين إلى المصلى رقم الحديث: ٨٩٠.
٤) معجم الصحاح ص: ١٨٠ فتح الباري لابن رجب: ٢/٢٤.
٥) إرشادالساري: ٢/١٢ تحفة الباري: ١/٢٨٤ عمدة القاري: ٤/٨٤.

## د تعليق رجال

**عبدالله بن رجاء:** دا عبدالله بن رجاء الغدانى رحمه الله دي. واضحه دې وي چه عبدالله بن رجاء دوه دي. يو عبدالله بن رجاء بن عمرالغدانى البصرى او دويم عبدالله بن رجاء المكى البصرى دي. په دې تعليق كښې اول ذكر شوې عبدالله بن رجاء مراد دې. لكه څنګه چه دَدې تصريح حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينى رحمه الله كړې ده.[1]

دَ هغوى پوره نوم عبدالله بن رجاء بن عمر دې. دوى ته ابن المثنى الغدانى، أبوعمر ونيلى شى او يو قول دَ ابوعمر په ځائې ابوعمرو هم دې. دا بصرى وو.[2]

دې دَ اسحاق بن يزيدالكوفى، اسرائيل بن يونس، جرير بن ابواب البجلى، حارث بن بل البصرى، حرب بن شداد، حرب بن ميمون الانصارى، حسن بن صالح بن حى، حمادبن سلمه، ربعى بن عبدالله بن الجارود، ربيعه الكنانى، عمران بن داؤد القطان، محمدبن راشد المكحولى رحمهم الله اوډ نورو ډيرو شيوخونه روايت نقل كوى.

اودهغوى نه نقل كونكوكښې بخارى، ابراهيم بن اسحاق الحربى، احمدبن ابى صلابه، اسحاق بن الحسن الحربى، اسماعيل بن عبدالله الاصهانى، سمويه، اسيد بن عاصم الاصهانى، عبدالله بن محمد بن سنان، عبدالله بن محمدالبرداد رحمهم الله قابل ذكر دى.[3]

دَهغوى باره كښې ابن معين رحمه الله فرمائى «كان شيخاً صدوقاً لابأس به»[4] هاشم بن مرثد الطبرانى رحمه الله يحيى بن معين رحمه الله نه نقل كولوسره فرمائى: «كثيرالتصحيف، وليس به بأس»[5] عمروبن على رحمه الله فرمائى «صدوق، كثيرالغلط والتصحيف، ليس بحجة»[6] ابوزرعه رحمه الله فرمائى «حسن الحديث عن إسرائيل»[7] ابوحاتم رحمه الله فرمائى: «كان ثقة رضيا»[8] ابن المدينى رحمه الله فرمائى چه اهل بصره دَ دوو كسانو په عدالت باندې مجتمع دى يو ابوعمر الحوضى او دويم عبدالله بن رجاء.[9]

امام نسائى رحمه الله فرمائى «عبدالله بن رجاء المكى والبصرى كلاهما ليس بهما بأس»[10] ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دى.[11]

دَهغوى دَ وفات باره كښې ابوالقاسم اللالكائى ۲۱۹هجرى قول نقل كړې دې. محمدبن عبدالله الحضرمى ۲۲۰هجرى قول نقل كړې دې دَدوى نه علاوه خليفه بن خياط او ابن عساكر رحمه الله ذكر كړې

---

[1]) فتح البارى: ۶۰۵/۱ عمدة القارى: ۸۵/۴
[2]) تهذيب الكمال: ۵۰۰/۱۴-۴۹۵ تهذيب التهذيب: ۳۰۹/۵.
[3]) تهذيب الكمال: ۴۹۸/۱۴-۴۹۵ تهذيب التهذيب: ۳۱۰/۵-۳۰۹ سيراعلام النبلاء: ۳۷۷/۱۰-۳۷۶
[4]) تهذيب التهذيب: ۲۱۰/۵ سير أعلام النبلاء: ۳۷۷/۱۰.
[5]) تهذيب الكمال: ۴۹۸/۱۴ تهذيب التهذيب: ۲۱۰/۵.
[6]) الجرح والتعديل: ۴/۵ تهذيب الكمال: ۴۹۸/۱۴.
[7]) تهذيب التهذيب: ۲۱۰/۵ سير أعلام النبلاء: ۳۷۷/۱۰.
[8]) الجرح والتعديل: ۴/۵ تهذيب الكمال: ۲۹۹/۱۴.
[9]) تهذيب الكمال: ۲۹۹/۱۴ سير أعلام النبلاء: ۳۷۷/۱۰.
[10]) تهذيب الكمال: ۲۹۹/۱۴ تهذيب التهذيب: ۲۱۰/۵.
[11]) كتاب الثقات لابن حبان: ۲۴۱/۸ سير أعلام النبلاء: ۳۷۷/۱۰.

دى چه دي ۲۱۹هجرى كښې ذوالحجه په مياشت كښې وفات شوې اوداهم ونيلى شوى دى چه ۲۲۰هجرى دَمحرم په مياشت كښې وفات شوې.(۱) دَدوى روايات امام ابوداؤد رحمه الله امام نسائى رحمه الله او امام ابن ماجه رحمه الله هم نقل كړى دى.(۲)

**عمران:** داابوعوام عمران بن داؤر العمى البصرى القطان رحمه الله دې (۳)

دَهغوى په استاذانو كښې ابان ابى العياش، بكر بن عبدالله المزنى، حسن بصرى، حسين بن عمران الجهنى، حميدالطويل، خالد بن ابى عبدالله، سليمان التيمى، قتاده، محمدبن جحادة، محمدبن سيرين، معمر بن راشد رحمهم الله نه علاوه يوجماعت دې. اودَ هغوى په شاګردانو كښې اشعث بن اشعث السعدانى، حماد بن مسعدة، اوقتيبة، سلم بن قتيبة، سهل بن تمام بن بزيع، عبدالله بن رجاء الغدانى او ابوداؤد الطيالسى رحمهم الله وغيره قابل ذكر دى.(٤)

عمروبن على رحمه الله فرمانى چه عبدالرحمن بن مهدى دَ عمران بن القطان رحمه الله نه روايت بيانولو اويحيى به دَهغوى نه نه بيانولو. بيا يحيى يوه ورځ دَعمران القطان ذكراوكړو اودَهغه ئى ښه تعريف بيان كړو.(۵)

عبدالله بن احمدبن حنبل رحمه الله دَخپل پلار احمدبن حنبل رحمه الله نه نقل كوى چه هغوى اوفرمائيل «أرجوا أن يكون صالح الحديث»(۶) ابوعبيدالآجرى رحمه الله فرمانى چه ما ابوداؤد رحمه الله فرمانيلوسره واوريدو چه عمرالعمى دَ حسن (بصرى) رحمه الله دَملګرو نه دې اوما دَهغوى باره كښې دَ خير نه سوا بل څه نه دى اوريدلى.(۷) ابن عدى رحمه الله فرمانى چه «وهوممن يكتب حديثه»(۸) ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكركړې دې.(۹)

امام بخارى رحمه الله دَهغوى روايات دَ تعليق اواستشهاد په توګه ذكر كړى دى. او الأدب المفرد كښې دَهغه نه روايات هم ذكركړى دى اودَ امام مسلم رحمه الله نه علاوه باقى څلورو وارو ائمه حضرات دهغه نه روايت په خپلو كتابونو كښې ذكركړى دى.(۱۰)

دَدې تعديل نه علاوه په هغوى باندې جرح هم كړې شوې ده. امام نسائى رحمه الله فرمانى ضعيف.(۱۱) يزيد بن زريع رحمه الله فرمانى «كان حرورياوكان يرى السيف على أهل القبلة» عمران القطان حرورى وو اودَاهل قبله خلاف ئى توره اوچتول جائز ګڼل.(۱۲)

---

۱) إكمال تهذيب الكمال:۳٤۶/۷تقريب التهذيب:٤۹۱/۱.
۲) تهذيب الكمال: ۲۹۹/۱٤.
۳) سير أعلام النبلاء: ۲۸۰/۷تهذيب التهذيب: ۱۳۰/۸.
٤) تهذيب الكمال:۳۲۸/۲۲ تهذيب التهذيب:۱۳۱/۸.
۵) الجرح والتعديل: ۲۸۱/۶سيرأعلام النبلاء: ۲۸۰/۷.
۶) تهذيب الكمال:۳۲۸/۲۲الجرح والتعديل: ۲۸۱/۶.
۷) تهذيب الكمال:۳۲۹/۲۲تهذيب التهذيب: ۱۳۲/۸.
۸) سيرأعلام النبلاء: ۲۸۰/۷تهذيب التهذيب: ۱۳۲/۸.
۹) كتاب الثقات لابن حبان:۲٤۳/۷.
۱۰) تهذيب الكمال ۳۳۰/۲۲سيرأعلام النبلاء: ۲۸۰/۷.
۱۱) الكاشف: ۹۳/۲هدى السارى ص: ۶٤۵تهذيب الكمال: ۲۳۰/۲۲.
۱۲) تهذيب التهذيب: ۱۳۳/۸سيرأعلام النبلاء: ۲۸۰/۷.

ابوعبيدالاجرى رحمه الله فرمائی چه ماد ابوداؤد رحمه الله نه د عمران القطان رحمه الله باره کښې اوريدلی چه «ضعيف أفتى فى أيام إبراهيم ابن عبدالله بن حسن بفتوى شديدة فيها سفك دماء» يعنى وئى فرمائيل چه هغه ضعيف راوى دې هغه د ابراهيم بن عبدالله بن حسن په زمانه کښې يوه سخته فتوى ورکړې وه په کومه کښې چه د وينو تويولو ذکر کړې وو. (۱)

غرض دا چه د عمران بن القطان رحمه الله باره کښې د جرح اوتعديل هر دوه قسم اقوال موجود دى. په دې وجه امام بخارى رحمه الله دهغوى روايات صرف تعليقا اوپه توګه د استشهاد ذکرکړى دى. مسنداً اومستقلاً نه. ددې نه معلوميږى چه په مذکوره راوى کښې سره ددې چه ضعف شته ليکن دهغې درجې دې چه دهغې تحمل کولوسره دتعليقاتو اوشواهدو دپاره قبليدلې شى. لکه چه تحرير تقريب التهذيب کښې ليکلى دى «بل: ضعيف يعتبر به المتابعات والشواهد، فقد ضعفه أبوداؤد، والنسائى، والعقيلى، وابن معين، فى رواية الدورى وابن محرز، وقال فى رواية عبدالله بن أحمد: أرجوا أن يكون صالح الحديث وقال البخارى: صدوق، يهم، وقال الدارقطنى: كان كثير المخالفة والوهم، وقال ابن عدى: وهوممن يكتب حديثه (يعنى: فى المتابعات والشواهد) ووثقه العجلى، وذكره ابن حبان فى الثقات» دمذکوره عبارت خلاصه او اقوال په تفصيل سره پورته ذکر کړې شوى دى.

اوحافظ ابن حجر عسقلانى رحمه الله تهذيب التهذيب کښې ليکلى دى چه دابن زريع رحمه الله قول «كان حروريا» کښې زما تامل دې هغه حرورى نه وو سره ددې چه لږشان خيال نې دغه طرف ته ضرور وو. اودائې هم ليکلى دى چه عقيلى رحمه الله اوفرمائيل چه عمران القطان رحمه الله د خوارج د رائې حامې وو ليکن هغه د هغې طرف ته دعوت ورکونکې نه وو او الساجى هغه ته صدوق ونيلې او عفان دهغه توثيق کړې دې. عجلى هغه ته ثقه وئيلې اوالحاکم هم هغه صدوق ليکلې دې. (۲)

دې نه علاوه حافظ صاحب رحمه الله هدى السارى کښې دهغه باره کښې صاحب قتادة صدوق الفاظ ليکلى دى اودائې هم ليکلى دى چه امام بخارى رحمه الله په خپل جامع کښې دهغوى روايات بعض مقاماتو کښې تعليقا نقل کړى دى. (۳)

د عمران القطان رحمه الله وفات ۱۶۰هجرى کښې وراندې روستوشوې. (۴)

**دتعليق مقصد**: امام بخارى رحمه الله مذکوره تعليق څکه ذکر کړې چه هغه ددې خبرې تصريح کول غواړى چه دمحمدابن سيرين رحمه الله د ام عطيه رضي الله عنها نه حديث بيانول ثابت دى اود هغه باطل خيال ترديد مقصود دې چه دمحمد بن سيرين رحمه الله سماع دهغه د خپلې خود حفصه نه دې اودحفصه د ام عطيه نه. (۵)

(۱) سير أعلام النبلاء: ۲۸۰/۷تهذيب الكمال: ۳۳۰/۲۲.

(۲) تهذيب التهذيب: ۱۳۲/۸-۱۳۱سير أعلام النبلاء: ۲۸۰/۷.

(۳) هدى السارى مقدمة فتح البارى: ص: ۶۴۵.

(۴) تقريب التهذيب: ۷۵۱/۱سير أعلام النبلاء: ۲۸۰/۷.

(۵) التوضيح لابن ملقن: ۲۸۱/۵فتح البارى: ۶۰۵/۱ عمدة القارى: ۸۴/۴الكوثر الجارى: ۳۶/۲إرشادالسارى: ۱۲/۲.

## ۳- باب: عَقْدِ الإِزَارِ عَلَى القَفَا فِي الصَّلاةِ.

وَقَالَ أبو حازم عَنْ سَهْلٍ: صَلَّوا مَعَ النَّبِيِّ ﷺ عَاقِدِي أُزْرِهِمْ عَلَى عَوَاتِقِهِمْ. [ر: ۳۵۵]

داباب دې په مانځه کښې لنګ په سټ باندې د تړلو باره کښې

**دَ الإزار مطلب:** ازار هغه کپړې ته وائی دَ کوم په ذريعه چه دَ نامه نه لاندې حصه پټولې شی. دَدې استعمال دَ مذکر اومؤنث دواړه شان کيږی. دې ته دَ ازار ونيلووجه داده چه دَ دې په ذريعه شا تړلې شی خکه چه دَ ازار لغوی معنی هم شا او ملا ده.(۱)

**القفا:** دَسټ شاته والاحصې ته قفا وائی په اردوکښې دې ته "گدی" وائی. قفا اسم مقصوردې. دَ م ذکراو مؤنث دواړو دَپاره استعماليږی.

**دَمذکوره باب وړاندينی باب سره مناسبت:** علامه عينی رحمه الله فرمائی چه دَمذکوره باب دَ وړاندينی باب اودراتلونکی ابواب سره مناسبت ښکاره دې چه ټول ابواب د لباس سره متعلق احکام په بيان کښې دی. سوا دَ پنځو ابوابو نه کوم چه دَدې پنځلسو په مينځ کښې راځی چه دَهغې نه مقصود دَ لباس دَاحکاموبيانول مقصود نه دی. دَدې پنځو ابوابودَماقبل اومابعدسره مناسبت به دَهغې په مواقع باندې بيانولې شی. هغه پنځه ابواب دادی ① باب ما يذكر في الفخذ، ② باب الصلاة في المنبر والسطوح والخشب، ③ باب الصلاة على الحصير، ④ باب الصلاة على الخمرة، ⑤ باب الصلاة على الفراش، (۲)

**تعليق: وقال: أبو حازم عن سهل: صلوا مع النبي صلى الله عليه وسلم عاقدي أزرهم على عواتقهم:** امام بخاری رحمه الله دا تعليق متصلاً اومسنداً دَدې باب نه وړاندې دريم باب "باب إذا كان الثوب ضيقا" کښې ذکرکړې دې.

### تراجم رجال

**ابوحازم:** دا سلمة بن دينار الأعرج الزاهد المدني رحمه الله دې. دَدوی حالات کشف الباري کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه کښې تيرشوی دی.(۳)

**سهل:** دا ابن سعد الساعدي أبوالعباس الأنصاري الخزرجي دې. دَدوی نوم حزن وو نبی کريم ﷺ دَ دوی نوم بدل کړو سهل نی کيخودو. دې په ۹۱هجری کښې وفات شوې. دوی په مدينه کښې آخری صحابی رضی الله عنه وو دَوفات په اعتبار سره. دَدوی حالات هم کشف الباري کتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه کښې تيرشوی دی.(۴)

**دَتعليق مقصد:** مذکوره روايت وړاندې مستقلاً دَ يو جدا باب لاندې راځی دَ دې باوجود دَدې روايت يو جز په توګه دَتعليق دَذکرکولومقصد مذکوره ترجمة الباب دې. دا ترجمة الباب ځکه ذکرکړې شوې

(۱) معجم الصحاح ص: ۱۰٤ التوضيح: ۲۸۲/۵ الكوثر الجاری: ۳٦/۲.
(۲) عمدة القاری: ۸٤/٤
(۳) كشف الباری كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه
(۴) كشف الباری كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه.

دي چه د ستر عورت حکم تاکیداً مخې ته راشي. ددې دتائید دپاره دا تعلیق ذکرکړې شو ددې نه د ستر عورت تاکید په دې شان دې چه کله خپل ازار په خپل سټ باندې اوتړلې شي نود رکوع په وخت د ده مستوره اندامونه به نه ښکاري.[1]

## لغوي اونحوي تحقيق

**قوله:: صلوا:** دا فعل ماضي دې ددې فاعل ضمير جمع دې. دعاقدين أزرهم طرف ته د اضافت د وجې نه نون ساقط شو. داجمله حال ده د صلوا د ضمير نه دکشميهني په روايت کښې «عاقدوا أزرهم» دې کوم چه راجع دې د صحابه کرام رضي الله عنهم طرف ته.[2]

**قوله:: عاقدي أزرهم:** داپه اصل کښې عاقدين أزرهم وو. پدې صورت کښې به دا جمله خبر جوړيږي د مبتداء محذوف. يعني «صلوا وهم عاقدوا أزرهم».[3]

**قوله:: أزرهم:** دهمزه دضمه سره اود زاء دسکون سره دا جمع ده د ازار. دمذکر اومؤنث دواړو دپاره استعماليږي.[4]

**قوله:: عواتق:** عواتق جمع دعاتق ده. په اوږو باندې دڅادر کيخودو ځائي ته عاتق وائي. د مذکر اومؤنث دواړو دپاره استعماليږي.[5]

**تشريح:** دصحابه کرامو رضي الله عنهم يوجماعت د مانځه په وخت استعماليدونکې کپړې سره داسې کول چه په خپل سټ باندې د اوږو شاته خپل څادر ته غوټه ورکوله اوهغوي به داسې ځکه کول چه دهغوي ستر د رکوع او سجدې په وخت پټ وي. ځکه چه هغوي سره به پرتوګونه نه وو اودا د صحابه کرامو رضي الله عنهم دا جماعت د اهل صفه وو لکه څنګه چه «باب نوم الرجال في المسجد» کښې راځي.[6]

## الحديث الأول

[٣٥٢/٣٥٥] - حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي وَاقِدُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، قَالَ: «صَلَّى جَابِرٌ فِي إِزَارٍ قَدْ عَقَدَهُ مِنْ قِبَلِ قَفَاهُ وَثِيَابُهُ مَوْضُوعَةٌ عَلَى الْمِشْجَبِ»، قَالَ لَهُ قَائِلٌ: تُصَلِّي فِي إِزَارٍ وَاحِدٍ؟ فَقَالَ: «إِنَّمَا صَنَعْتُ ذَلِكَ لِيَرَانِي أَحْمَقُ مِثْلُكَ وَأَيُّنَا كَانَ لَهُ ثَوْبَانِ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»[7]

---

[1] عمدة القاري: ٨٥/٤

[2] فتح الباري: ٦٠٦/١ عمدة القاري: ٨٥/٤ إرشاد الساري: ١٣/٢.

[3] فتح الباري: ٦٠٦/١ عمدة القاري: ٨٥/٤ إرشاد الساري: ١٣/٢.

[4] عمدة القاري: ٨٥/٤ إرشاد الساري: ١٣/٢.

[5] عمدة القاري: ٨٥/٤ تحفة الباري: ٢٨٥/١ إرشاد الساري: ١٣/٢.

[6] فتح الباري: ٦٠٦/١.

[7] صحيح البخاري كتاب الصلاة باب إذا كان الثوب ضيقًا رقم الحديث: ٣٦١ الصلاة بغير رداء رقم الحديث ٣٧٠، وفي صحيح مسلم كتاب الصلاة باب الرخصة في الصلاة في الثوب الواحد رقم الحديث: ٥١٨ وفي كتاب صلاة

**ترجمه:** دَحضرت محمدبن منکدر رحمه الله نه روايت دې چه حضرت جابر رضي الله عنه يوه ورځ په داسې لنګ کښې مونځ کولو کوم چه هغه په شاباندې تړلې وو په داسې حال کښې چه دَهغه کپړې په يو ولاړ لرګي باندې کيخودې شوې وې. يو وينا کونکي هغه ته اووئيل تاسو هم په يوه کپړه کښې مونځ کوئ «حالانکه تاسوسره زياتې کپړې هم شته» نوحضرت جابر رضي الله عنه هغه ته جواب ورکړوما داسې ځکه اوکړ، چه ستا په شان کم عقل ماته اوګوري اودَ رسول الله ﷺ په زمانه کښې مونږ چاسره دوه کپړې وې؟

## تراجم رجال:

**احمدبن يونس:** دا احمدبن عبدالله بن يونس بن عبدالله بن قيس تميمي يربوعي الکوفي رحمه الله دې دَ دوی تعارف کشف الباري دويم جلد کښې تيرشوې دې.[1]

**عاصم بن محمد:** دا عاصم بن محمدبن زيدبن عبدالله بن عمر بن الخطاب العمری المدنی رحمه الله دې دَ ده په رونړوکښې ابوبکر، عمر، زيد او واقد رحمهم الله دی.[2]

دې دَخپل رور زيد بن محمد بن زيد، عمر بن محمد بن زيد، واقد بن محمدبن زيد، او دَخپل پلار محمدبن زيد او عبدالله بن سعيد، او ابوسعيدالمقبري، قاسم بن عبيدالله بن عبدالله بن عمر، مثنی بن يزيد، محمد بن کعب القرظي او محمدبن المنکدر رحمهم الله نه روايت کوی.

اودَدوی نه روايت کونکوکښې ابواسحاق ابراهيم بن محمدالفزاري، احمدبن عبدالله بن يونس، اسحاق بن منصور بن حيان الاسدی، اسحاق بن يوسف الازرق، اسماعيل بن ابی اويس، بشر بن عمر الزهرانی، عبدالله ين رجاء الغدانی، قبيصة بن عقبه، ابوالوليد هشام بن عبدالملک الطيالسی، وکيع بن الجراح، يزيد بن هارون او يعقوب بن ابراهيم بن سعد رحمهم الله اودَدوی نه علاوه يو جماعت شامل دې.[3]

ددوی باره کښې ابن حنبل رحمه الله فرمائی ثقة[4] ابوحاتم رحمه الله فرمائی «لابأس به»،[5] امام نسائی رحمه الله فرمائی «ليس به بأس»[6] ابوزرعه رحمه الله فرمائی «صدوق الحديث»[7] بزار رحمه الله فرمائی «صالح الحديث»[8] ابن حبان دَهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.[9] علامه ذهبی رحمه الله فرمائی صدوق.[10]

---

المسافرين باب الدعا فی صلاة الليل رقم الحديث: ۷۶۶ وفی أبی داؤد کتاب الصلاة باب الرجل يصلی فی قميص واحد رقم الحديث: ۶۳۳ وفی باب إذا کان الثوب ضيقًا يتزر به رقم الحديث: ۶۳٤ وفی جامع أصول الکتاب الاول فی الصلاة الباب الاول الفصل السادس النوع الثانی فی الثوب الواحد رقم الحديث: ۳۶۳۶، ٤٥٤/٥.

[1]) کشف الباری کتاب الإيمان باب من قال إن الإيمان هوالعمل رقم الحديث: ۲۶، ۱۵۹/۲.

[2]) الکاشف: ۵۲۰/۱ الجرح والتعديل: ٤٥۷/۶.

[3]) تهذيب الکمال: ٤٥۳/۱۳-٤٥۲ تهذيب التهذيب: ۵۷/۵.

[4]) الجرح والتعديل: ٤٥۷/۶.

[5]) تهذيب الکمال: ۵٤۳/۱۳.

[6]) تهذيب التهذيب: ۵۷/۵.

[7]) تهذيب التهذيب: ۵۷/۵.

[8]) تهذيب الکمال: ۵٤۳/۱۳ تهذيب التهذيب: ۵۷/۵.

[9]) کتاب الثقات لابن حبان: ۲۵۶/۷.

[10]) الکاشف: ۵۲۱/۱.

**واحدبن محمد:** دا واقد بن محمدبن زید بن عبدالله بن عمر بن الخطاب العدوی المدنی رحمه الله دي.
دَدوی حالات کشف الباري کتاب الإیمان باب الحیاء من الإیمان کښې تیرشوی دی.[1]
**محمدبن المنکدر:** دا محمدبن المنکدر بن عبدالله بن الهدیر بن عبدالعزی بن عامر المدنی رحمه الله دي:
دَدوی تعارف کشف الباري کتاب الوضوء باب صب النبی صلی الله علیه وسلم وضوئه کښې تیر شوی دی.[2]
**جابر:** دا جابربن عبدالله بن عمرو بن حرام الانصاری رضي الله عنه دي. دَدوی حالات کشف الباري کتاب الوضوء باب من لم یر الوضوء إلا من المخرجین من القبل والدبر کښې تیرشوی دی.[3]

## شرح حدیث

**قوله: قبل قفاه:** قِبل قفاه دَ قاف زیر او باء زبر سره دي. دې نه مراد طرف دې یعنې دَسټ طرف ته.
**مشجب نه څه مراد دې؟:** چه درې لرګی داسې اودرولې شي چه دَهغې پورتنی سرونه خپل مینځ کښې یَو ځائې رابند وی او لاندینی سرونه نې خواره وی نودَ لرګو دې صورت ته مشجب وائي. دَ اودس او غسل وغیره په وخت په دې باندې کپړې کیخودې شي. اودَ اوبو یخولو دَپاره په دې باندې مشکیزې او ډولچې وغیره هم زوړندولې شي.[4]
ابن بطال رحمه الله دَدې مطلب مطلقاً هغه لرګې بیان کړې دې کوم چه په دیوال کښې ورټکوهلې شي او په هغې باندې کپړې زوړندولې شي[5] اوعلامه محمدانورشاه کشمیری رحمه الله دَدې ترجمه په تپائی سره کړې ده.
**دَ قال له قائل مصداق:** یووېناکونکی اوونیل، اوس داوېناکونکې څوك سړې وو؟ په دې باره کښې دَ صحیح مسلم په روایت کښې تصریح موجود ده چه دا قائل عبادة بن الولید بن الصامت رحمه الله وو.[6]
حضرت شیخ الحدیث رحمه الله لیکلی دی چه دَدې باب نه پس لږ شان روستو راروان دی چه حضرت سعیدبن الحارث رحمه الله دَحضرت جابر رضي الله عنه نه سوال اوکړو اونیزدې باب «الصلاة بغیر رداء» دَ ابن المنکدر په طریق یو روایت دې دکوم نه چه معلومیږی چه سوال کونکې ابن المنکدر وو.
دَ سوال کونکو مختلف رواة کیدل څه دَ اشکال خبره نه ده دا ممکن دی چه مختلف کسانو سوال کړې وی اوپه مختلف مواقع یا مختلف مجالس کښې دا سوال کړې وی.[7]
**قوله: تصلي في إزار واحد؟:** دَحدیث پاك دَدې جملې نه اول همزه استفهام محذوف دې چه په اصل کښې عبارت «أتصلي في إزار واحد؟»[8]

---

[1] کشف الباری کتاب الإیمان باب الحیاء من الإیمان: ۱۵۳/۲.
[2] کشف الباری کتاب الوضوء باب صب النبی صلی الله علیه وسلم وضوئه.
[3] کشف الباری کتاب الوضوء باب من لم یر الوضوء إلا من المخرجین من القبل والدبر.
[4] فتح الباری: ۶۰۶/۱ إرشادالساری: ۱۳/۲ تحفة الباری: ۲۸۵/۱.
[5] شرح ابن بطال: ۱٤/۲ معجم الصحاح ص: ۵۳٤ المعجم الوسیط ص: ٤۷۲.
[6] صحیح مسلم کتاب الزهد باب حدیث جابر الطویل، رقم الحدیث: ۳۰۰۸.
[7] الکنزالمتواری باب عقدالإزار علی القفا فی الصلاة: ۲۰/٤-۱۹ فتح الباری: ۶۰۶/۱.
[8] عمدة القاری: ۸۶/٤ تحفة الباری: ۲۸۵/۱ إرشادالساری: ۱۳/۲ شرح الکرمانی: ۱۳/٤.

**قوله: لیراني أحمق مثلك** حضرت جابر ﷺ دَ سوال په جواب کښې اوفرمائيل چه او ما داسې خکه اوکړل چه ستا په شان جاهل اوبې وقوف ما په داسې کولوسره اووینی. أحمق فاعل دې دَ یرانی دَدې معنی دجاهل ده. دا حُمق (بضم الحاء و سكون الميم) نه صفت مشبهة صيغه ده اود حمق نه مراد دَ عقل کمیدل دی.[1]

علامه ابن اثیر رحمه الله لیکلی دی: «حقيقة الحمق وضع الشئ في غير موضعه مع العلم بقبحه» مفهوم دادې چه دَحمق حقیقت یوځیز دَهغې وضع کړې شوی ځائی نه علاوه په یوبل ځائی کښې کیخودل دی، دَ دې دَ قباحت دَ پیژندګلونه باوجود. دا په حماقت سره تعبیرکولې شی.[2]

دَحضرت جابر ﷺ دَدې جواب چه "لیراني" کښې لام تعلیل اوغرض دَپار ه دې. اوس صرف دَ چا کتل څنګه غرض کیدې شی؟ دَدې جواب دا ورکړې شو چه غرض دا جوړیدې شی لکه چه هغه داسې اووئیل چه ما داسې خکه اوکړل چه څوك جاهل ما په داسې کولوسره اووینی اودخپل جهالت دَ وجې نه په ما اعتراض اوکړی. بیا زه په هغه باندې دَ دغه فعل جواز ښکاره کړم.[3]

شیخ الحدیث رحمه الله لیکلی دی چه دَحضرت جابر ﷺ قول مثلك مطلب دادې چه ستا په شان هغه سړې دَ چا چه دَ واجباتو سنن او مستحبات په مینځ کښې تمیز نه وی ماته دې اوګوری.[4] نور نی اوفرمائيل چه په دې جواب کښې لکه چه حضرت جابر ﷺ دا اوفرمائيل چه ما دافعل قصداً اوکړو دې دپاره چه ددې جائز کیدل معلوم شی یا خوداسې چه جاهل خلق په شروع کښې (داسې حالت کښې) زما اقتداء اوکړی (یعنی دَ ضرورت په وخت داسې مونځ اوکړی). یا داسې چه ما په داسې کولوسره اوګوری په ما اعتراض اوکړی اوزه هغه ته دَدې فعل جائز کیدل اوښایم.[5]

**چاته دَ احمق وئیلو حکم؟** علامه عینی رحمه الله لیکلی دی چه داسې سړې چاته چه دَ بنیادی ضروری سنتو علم هم نه وی نودهغه دَدې کمی په وجه دَهغه دَخبردار کولودپاره یوعالم دین احمق یا جاهل اووانی نو په دې کښې هیڅ حرج نشته دې. اودحضرت جابر ﷺ دَدغه سړی طرف ته دَحماقت نسبت کولو وجه هم دغه وه چه هغه دَخپل کم علم دَ وجې نه په هغه باندې اعتراض کړې وو.[6] حضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی په خپل کلام کښې نی سختی په دې وجه پیداکړه چه کم علم خلق په علماؤ باندې دَاعتراض کولونه منع کړې شی اود شریعت دَ امورو باره کښې بحث اوتکرار نه بچ شی.[7]

**قوله: أينا كان له ثوبان على عهد النبي صلى الله عليه وسلم:** دَ أيّ اضافت دې دَنا ضمیرطرف ته. دا استفهام دې لیکن دا دَ نفی فائده ورکوی چه مونږ سره دَ نبی کریم ﷺ په زمانه کښې دوه دوه کپړې نه وې بلکه یوه کپړه به وه اوهغه هم کله لویه اوکله وړه. غرض دا چه مونږ به دَ رسول الله ﷺ په وړاندې هم په یوه کپړه کښې مونځ اداکولو. بل دَدې جملې نه دَحضرت جابر ﷺ

---

[1] عمدة القاری: ٨٦/٤معجم الصحاح ص: ٢٦٣شرح الكرمانی: ١٣/٤.
[2] النهاية في غريب الحديث والأثر لابن الأثير: ٤٣٣/١.
[3] عمدة القاری: ٨٦/٤تحفة الباری: ٢٨٥/١إرشادالساری: ١٣/٢.
[4] الكنزالمتواری: ١٩/٤.
[5] الكنزالمتواری: ٢٠/٤.
[6] عمدة القاری: ٨٦/٤-٨٧شرح الكرمانی: ١٣/٤شرح ابن بطال: ١٤/٢فتح الباری: ٦٠٦/١.
[7] الكنز المتواری: ٢٠/٤.

مقصود د خپل فعل نبی کریم ﷺ پورې سند بیانول هم دی .[1]

**د حدیث باب ترجمة الباب سره مناسبت**: دحدیث شریف ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې چه حضرت جابر رضي الله عنه په یوه کپړه کښې مونځ کولو اوداکپړه هغه دخپل سټ شاته تړلې وه.[2]

## الحدیث الثانی

[۳۴۶] - حَدَّثَنَا مُطَرِّفٌ أَبُو مُصْعَبٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الْمَوَالِي، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، قَالَ: رَأَيْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يُصَلِّي فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ وَقَالَ: «رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي ثَوْبٍ»[3] - [۳۴۳]

**ترجمه**: حضرت محمدبن المنکدر رحمه الله فرمانی چه ما حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه په یوه کپړه کښې مونځ کونکې اولیدلو اوهغوی اوفرمانیل چه ما نبی کریم ﷺ په یوه کپړه کښې مونځ کونکے لیدلې دې.

## تراجم رجال:

**مطرف ابومصعب**: دا مطرف بن عبدالله بن مطرف بن سلیمان بن یاسر ایساری الهلالی رحمه الله دې. د هغوی کنیت ابومصعب المدنی دې. دا دنبی کریم ﷺ بی بی حضرت میمونه رضي الله عنها غلام اود حضرت مالك بن انس رحمه الله خوریئی دې.[4] د دوی پیدائش په ۱۳۷ هجری کښې شوې.[5]

د ابن شیرازی او ابن عدی وینا ده چه مطرف نې لقب دې نوم نه دې، لیکن ابن عدی ددوی نوم نه دې ذکرکړې.[6]

دې د اسامه بن زید بن اسلم، زبیر بن سعیدالهاشمی، عبدالله بن زید بن اسلم، عبدالله بن سلیمان الاسلمی، عبدالله بن عمرالعمری، عبدالرحمن بن ابی الموال، عبدالعزیز محمدالدراوردی اومالك بن انس رحمهم الله نه روایت کوی.

اوددوی نه روایت کونکوکښې امام بخاری، ابراهیم بن سعد بن الزهری اخو عبیدالله بن سعد، ابراهیم بن المنذر الحزامی، احمدبن خلید اللبی، احمدبن داؤد بن ابی صالح الحرانی، ابویحیی عبدالله بن احمدبن الحارث بن ابی مسری المکی، ابوزرعة عبدالرحمن بن عمروالدمشقی او ابو سبرة بن محمدبن عبدالرحمن القرشی المدنی رحمهم الله شامل دی.[7]

---

[1]) شرح الکرمانی: ۱۳/۴ عمدة القاری: ۸۶/۴ إرشادالساری: ۱۳/۲.

[2]) عمدة القاری: ۸۶/۴.

[3]) صحیح البخاری کتاب الصلاة باب إذا کان الثوب ضیقًا رقم الحدیث: ۳۶۱ وفی باب الصلاة بغیر رداء رقم الحدیث: ۳۷۰. وأخرجه مسلم فی کتاب الصلاة باب الرخصة فی الصلاة فی الثوب الواحد رقم الحدیث: ۵۱۸ وکتاب الصلاة المسافرین باب الدعاء فی صلاة اللیل رقم الحدیث: ۷۶۶ وأخرجه أبوداؤد کتاب الصلاة باب الرجل یصلی فی قمیص واحد رقم الحدیث: ۶۳۳ فی باب إذاکان الثوب ضیقاً یتزربه رقم الحدیث ۶۳۴ وفی جامع الأصول کتاب الصلاة باب فی الثوب الواحد رقم الحدیث: ۳۶۲۶ ۴۵۴/۵.

[4]) الکاشف: ۲۶۹/۲ کتاب التاریخ الکبیر: ۳۹۷/۷ تهذیب الکمال: ۷۰/۲۷.

[5]) الثقات لابن حبان: ۱۸۳/۹ تهذیب الکمال: ۷۳/۲۷.

[6]) الکامل لابن عدی: ۳۷۸/۶.

[7]) تهذیب الکمال: ۷۲/۲۸-۷۱ تهذیب التهذیب: ۱۷۵/۱.

دَدوى بارہ کښې عبدالرحمن بن ابى حاتم رحمه الله فرمانى چه زما دَ پلار ابوحاتم رحمه الله نه مطرف بن عبدالله باره کښې پښتنه اوکړې شوه نوهغوى جواب ورکړو «مضطرب الحديث صدوق» عبدالرحمن وائى چه ما دَخپل پلار نه تپوس اوکړو چه تاسو ته مطرف بن عبدالله او اسماعيل بن ابى اويس كښې كوم يو زيات محبوب دې؟ نوهغوى جواب ورکړو مطرف.[1] علامه ذهبى رحمه الله فرمانى «هومن كبار الفقهاء»[2] ابن سعد رحمه الله فرمانى «وكان ثقة وكان به صمم»[3] دارقطنى رحمه الله فرمانى ثقة.[4] ابن عدى رحمه الله فرمانى «يأتى بمناكير» بيا ابن عدى رحمه الله هغه روايات ذكركړى دى «حدثنا أحمد بن داؤد بن أبى صالح، حدثنا أبومصعب مطرف، حدثنى ابن أبى ذئب، عن هشام بن عروة، عن محمد بن على، عن أبى عباس قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "ثلاث من كن فيه، آواه الله فى كنفه ونشر عليه رحمته، وأدخله جنته أو قال فى محبته، قالوا: من ذا يارسول الله! قال: من إذا أعطى شكر، وإذا قدر غفر، وإذا غضب فتر."

وحدثنا ابن أبى صالح، حدثنا أبومصعب، حدثنا مالك عن نافع، عن ابن عمر، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "لكل أمر مفتاح، ومفتاح الجنة حب المساكين والفقراء الصبر وهم جلساء الله يوم القيامة." وبه: حدثنى مالك، عن يحيى بن سعيد، عن عروة، عن عائشة، مرفوعًا: "وجبت محبة الله على من أغضب فحلم".[5]

دَابن عدى رحمه الله په دې كلام باندې نقد كولوسره علامه ذهبى رحمه الله فرمائى: دا ټول روايات دَكوم دَ وجې نه چه په مطرف باندې جرح كړې شوې ده دغه ټول اباطيل دى. مطرف دَدې وجې نه دَ الزام نه برى دى. په دې رواياتوكښې دَ رومبى روايت بوج په احمدبن داؤد باندې دې پته نه لګى دا امر دَ ابن عدى رحمه الله نه څنګه پټ پاتې شو؟

دَابن عدى رحمه الله دَدې كلام دارالقطنى هم تكذيب كړې دې اودَ نورو رواياتوبوج په ابن حبيب باندې دې چا چه دا روايات نقل كړې دى. كه چرته دا روايات دَهغوى په تراجم كښې ذكركړې شوې وې نوډيره به بهتره وه.[6] دې نه علاوه حافظ ابن حجر رحمه الله دَ ابن عدى كلام ردكولوسره فرمائيلى دى چه «هوثقة، لم يُصِبْ ابن عدي في تضعيفه، هومن كبار العاشرة»[7] بل ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.[8]

ابوبكر الشافعى عيسى بن موسى نه نقل كولوسره فرمانى «كان شيخاً بالمدينة أطروش»[9] په كال ۲۲۰ هجرى كښې وفات شوې اويوقول ۲۱۴ هجرى دَوفات هم دې.[10]

---

[1] تهذيب الكمال: ۷۲/۲۸ الجرح والتعديل: ۳۶۲/۸.

[2] ميزان الاعتدال: ۴۴۳/۶.

[3] الطبقات الكبرى لابن سعد: ۴۳۸/۵.

[4] تهذيب التهذيب: ۱۷۷/۱۰.

[5] الكامل فى ضعفاء الرجال لابن عدى: ۳۷۸/۶-۳۷۷.

[6] ميزان الاعتدال: ۴۴۳/۶.

[7] تقريب التهذيب: ۱۸۹/۲-۱۸۸ هدى السارى: ۶۲۵/۱

[8] كتاب الثقات لابن حبان: ۱۸۳/۹.

[9] تهذيب الكمال: ۸۲/۲۸ تهذيب التهذيب: ۱۷۵/۱.

[10] الثقات لابن حبان: ۱۸۳/۹ إكمال تهذيب الكمال: ۲۳۱/۱۱.

**عبدالرحمن بن ابي الموال:** دا عبدالرحمن بن أبي الموال المدني دی ده نوم زيد دی. دحضرت علی بن ابی طالب رضی اللہ عنہ آزاد کړی شوی غلام دی. ده پلار ابی الموال ته أبي الموالي هم وئیلی شی.[1]

دی چه دکومو شیوخونه روایت کوی په هغوی کښي ابراهیم بن سریع الانصاری مولی ابن زرارة، ایوب بن الحسن بن علی بن ابی رافع، الحسن بن علی بن محمد بن علی بن ابی طالب المعروف جده بابن الحنیفة، الحسن بن علی بن الحسین بن علی بن ابی طالب، شیبة بن نصاح المقری، عبدالله بن حسن بن حسن بن علی بن ابی طالب، عبدالرحمن بن ابی عمرة الانصاری، محمدبن کعب القرظی، محمدبن مسلم بن شهاب الزهری، محمدبن المنکدر، محمد بن الموسی الفطری او موسی بن ابراهیم بن ابی ربیعه المخزومی رحمهم الله شامل دی.

اودهغوی په شاګردانوکښي مطرف بن عبدالله السیاری، المدنی ابومصعب، اسحاق بن ابراهیم الحنینی، اسحاق بن الطباع، خالد بن مخلد القطوانی، زیاده بن یونس، زید بن الحباب، سفیان الثوری وهومن اقرانه، عبدالله بن مبارك، عبدالله بن وهب، محمد بن عمرالواقدی، یحیی بن یحیی النیسابوری، ابوسعید مولی بنی هاشم او ابوعامر العقدی رحمهم الله شامل دی.[2]

امام احمدبن حنبل رحمہ اللہ دهغوی باره کښي فرمائی: «لابأس به» [3]ابن معین رحمہ اللہ فرمائی «صالح». [4] امام ترمذی رحمہ اللہ اوامام نسائی رحمہ اللہ فرمائی «ثقة».[5]ابوزرعه رحمہ اللہ فرمائی«لابأس به، صدوق» [6] ابو حاتم رحمہ اللہ فرمائی«لابأس به، وهوأحب إلي من أبي معشر» [7]عبدالرحمن بن یوسف بن خراش رحمہ اللہ فرمائی «صدوق».[8]ابن حبان دهغوی ذکرکتاب الثقات کښي کړی دی[9]علامه ذهبی رحمہ اللہ فرمائی «ثقة مشهور» [10] قتیبه رحمہ اللہ فرمائی دی ۱۷۳هجری کښي وفات شوی.[11]

**په مذکوره راوی باندي کلام:** ابوطالب د امام احمد رحمہ اللہ نه نقل کولوسره فرمائی چه دا عبدالرحمن بن أبي الموالي منکر حدیث روایت کوی لکه چه هغه د استخاره حدیث د ابن المنکدر نه روایت کوی اوابن المنکدر د حضرت جابر رضی اللہ عنہ نه روایت کوی اوحدیث استخاره ددوی نه علاوه بل چا نه دی روایت کړی. اوحافظ ابن حجر رحمہ اللہ په تقریب التهذیب کښي د دوی باره کښي «صدوق، ربما أخطأ» الفاظ ذکرکړی دی.[12]

---

[1] الکاشف: ۱/۶٤٦تقریب التهذیب: ۱/۵۹۳الجرح والتعدیل: ۳۵۵/۵.
[2] تهذیب التهذیب:۶/۲۸۳تهذیب الکمال: ۱۷/٤٤٧-٤٤۶.
[3] تهذیب الکمال: ۱۷/٤٤٨الجرح والتعدیل:۳۵۵/۵.
[4] تهذیب الکمال: ۱۷/٤٤٨الجرح والتعدیل:۳۵۵/۵
[5] تهذیب التهذیب:۶/۲۸۳تهذیب الکمال: ۱۷/٤٤٨.
[6] تهذیب التهذیب:۶/۲۸۳تهذیب الکمال: ۱۷/٤٤٨.
[7] الجرح والتعدیل: ۳۵۵/۵تهذیب التهذیب:۲۸۳/۶.
[8] تهذیب التهذیب:۶/۲۸۳تهذیب الکمال: ۱۷/٤٤٨.
[9] کتاب الثقات لابن حبان: ۹۱/۵ طبقات ابن سعد: ٤١۵/۵.
[10] میزان الاعتدال:۵۹۳/۲الکاشف: ۱/٤٦٤.
[11] الکاشف: ۱/۶٤٦تهذیب التهذیب:۶/۲۸۳تقریب التهذیب: ۱/۵۹۳.
[12] تهذیب التهذیب: ۶/۲۸۳تقریب التهذیب: ۱/۵۹۳.

**دَ جرح رد:** عبدالرحمن بن أبي الموالي په توثيق بآندې دَ محدثينوحضراتو يو لوئي جماعت (ابن معين، تر مذي، نسائي،ابوداؤد، ابوشاهين، ابن عدى، احمد، ابوزرعه ، ابوحاتم او ابن خراش رحمهم الله) دَاجتماع نه پس دَمذکوره جرح اهميت ختميږي. په داسې توګه چه ددوی نه روايت شوې حديث استخاره صرف هم ددوی نه نه بلکه دَدوی نه علاوه دَ نورو صحابه کرامو ﷺ نه نقل دې لکه څنګه چه ابن عدى رحمه الله داخبره واضحه کړې ده چه ((قد روي حديث الاستخارغيرواحد من الصحابة)) لهذا دَدې حديث دَ وجې نه ((صدوق،ربما أخطأ)) ونيل څه معنى نه لرى.(۱)

**محمدبن المنكدر:** دامحمدبن المنكدر بن عبدالله المدنى رحمه الله دې. دَدوى تعارف كشف البارى كتاب الوضوء باب صب النبى صلى الله عليه وسلم وضوءه كښې تيرشوې دې. (۲)

**جابربن عبدالله:** دا جابربن عبدالله بن الحرام الأنصاري رحمه الله دې. دَدوى حالات كشف البارى كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوءإلامن المخرجين من القبل والدبر كښې تيرشوى دى.(۳)

**دَروايت نه مقصود:** داروايت دَ حضرت جابر رضي الله عنه دَ حديث دويم طريق دې. په دې روايت كښې حضرت جابر رضي الله عنه خپل فعل نبى كريم ﷺ ته رسولې دې چه په يوه كپړه كښې دَمونځ كولو فعل دَنبى كريم ﷺ نه هم صادر شوې دې. په سابقه حديث كښې هم سره دَدې چه دې طرف ته اشاره وه چه دَدې فعل سند دَ نبى كريم ﷺ نه دې. ليكن دَدې طريق اندازه په نسبت دَ سابقه حديث ډير اوقع في النفس وو په دې وجه داهم ذكر كړې شو.(۴)

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه كرمانى رحمه الله فرمائى كه چرې داسې اوونيلې شى چه دَدې روايت دَ ترجمة الباب سره به څنګه مناسبت قائم كيږى؟ ځكه چه ترجمة الباب ((عقد الإزارعلى القفافي الصلاة)) دې او په روايت كښې دَدې هيڅ تذكره نشته دې. نوزه به دَدې په جواب كښې داسې وايم چه مطابقت خو به نې يا داسې وى چه دا روايت دَ سابقه روايت ټكړه اوګرځولې شى يا داسې اوونيلې شى چه دا روايت دَ غلبه په اعتبارسره په ترجمة الباب باندې دلالت كوى. هغه داسې چه دَ يوې كپړې كيدو په صورت كښې كه چرې په سټ يا شاباندې دا غوټه كولوسره مضبوط نه كړې شى نو اكثر سترعورت نه پاتې كيږى. لهذا دَ غلبه صورت اعتبار كولوسره مطابقت پيدا كيږى.(۵)

**په علامه كرمانى رحمه الله باندې دَ حافظ صاحب رحمه الله رد:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا معامله په علامه كرمانى رحمه الله باندې واضحه نه شوه هغه داسې كه چرې علامه صاحب دَدې روايت په الفاظو باندې غور كړې وې اودَ دې باب نه وړاندې راتلونكي اتم باب ((الصلاة بغير رداء)) په روايت باندې غور كړې وې نوعلامه صاحب خو احتمالي جواب وركړې دې دَدې ضرورت به نه پاتې كيدو لهذا دا روايت دَ سابقه روايت جزنه دې بلكه دَ راتلونكى روايت ((باب الصلاة بغير رداء)) جز دې

---

۱) ميزان الاعتدال: ۵۹۳/۲هدى السارى: ص: ۳۹۳المغنى فى الضعفاء: ۶۱۴/۱تهذيب التهذيب: ۲۸۳/۶تحرير تقريب التهذيب: ۳۵۱/۲.

۲) كشف البارى كتاب الوضوء باب صب النبى صلى الله عليه وسلم وضوءه.

۳) كشف البارى كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين من القبل والدبر

۴) فتح البارى: ۶۰۶/۱عمدة القارى: ۸۶/۴إرشادالسارى:۱۴/۲.

۵) شرح الكرمانى: ۱۴/۴.

بل دعلامه صاحب دويم جواب چه د غلبه اعتبار اوكړې شي هم ټيک نه دې خکه چه كله روايت د راتلونكي روايت جز اوګرځي نو ددې روايت الفاظ «وهو يصلي في ثوب ملتحفا به» دي. چنانچه هغه بله قصه ده کومه چه د ذې حالت ده. كوم وخت چه حضورپاك سره كپړه كولاؤ وه او حضورپاك دغه كپړه د خپل خان نه چاپيره كړې وه. خو د رومبي روايت په باره كښې دي چه كپړه به وړه او تنګه وه دكوم د وجې نه چه په سټ يا شا باندې دهغه كپړې غوټه لګولې شوه.[1]

**دعلامه عيني رحمه الله په حافظ صاحب رحمه الله باندې رد:** علامه عيني رحمه الله د مذكوره روايت ترجمة الباب سره مناسبت بيانولوسره د علامه كرماني رحمه الله او د حافظ رحمه الله كلام نقل كولونه پس فرماني چه دا روايت نه خود سابقه روايت جز دې اونه د راتلونكي اتم باب نه پس راتلونكي روايت جز دې بلكه د ذې ټولو رواياتو نه هر يو روايت مستقلاً جدا حديث دې.[2]

## ۴- باب: الصَّلَاةِ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ مُلْتَحِفًا بِهِ.

دا باب دهغه سړي د مونځ (صحيح كيدو) په بيان كښې دې چه په يوه كپړه كښې مونځ كوي په داسې حال كښې چه هغه كپړه دهغه په بدن باندې تاوشوې

**د التحاف تشريح:** په ترجمة الباب كښې **ملتحفا به** لفظ دې. دالتحاف معنى په بدن باندې كپړه راتاوولو ده. دالتحاف په مراد اومصداق باندې تفصيل باب «**وجوب الصلاة في الثياب**» جز «**من صلى ملتحفا في ثوب واحد**» په تشريح كښې تير شوې دې.[3]

**د ترجمة الباب سابقه باب سره مناسبت:** سابقه باب په مانځه كښې صرف يوه كپړه اغوستلو باندې د انحصار كولوباره كښې وو چه كله كپړه تنګه يا وړه وى په اغوستلوسره به د مونځ كولوڅه صورت وى. اوس دا باب ذكر كولوسره مقصد صرف هم په يوه كپړه كښې د مونځ كولوبيان دې كله چه دغه كپړه لږه شان ارته وى يا بيا التحاف سره د مانځه جواز خودل مقصد دې.[4]

**د ترجمة الباب نه مقصود:** د دې ترجمة الباب قائم كولو مقصد خوتير شو چه امام بخارى رحمه الله كپړه په صورت د التحاف اغوستلوسره د مونځ جائز كيدل بيانوى.[5]

**دحضرت شيخ الحديث رحمه الله رائې:** حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمانى چه د دې ترجمة الباب نه په ظاهره مقصود دهغه ذهن ترديد كول مقصد دې كوم چه د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه روايت تاسو هيڅ كله مونځ ادانه كړئى په يوه كپړه كښې، كه هغه كپړه د زمكې اوآسمان نه هم زياته ارته وى او ونى فرمانيل چه غرض اصلي صرف هم په يوه كپړه كښې د مانځه جواز بيانول دى.[6]

«**قَالَ الزُّهْرِيُّ فِي حَدِيثِهِ: الْمُلْتَحِفُ الْمُتَوَشِّحُ، وَهُوَ الْمُخَالِفُ بَيْنَ طَرَفَيْهِ عَلَى عَاتِقَيْهِ، وَهُوَ الِاشْتِمَالُ عَلَى مَنْكِبَيْهِ. قَالَ: قَالَتْ**

---

[1] فتح البارى: ۱۰۷/۶.

[2] عمدة القارى: ۸۷/۴.

[3] كشف البارى كتاب الصلاة باب وجوب الصلاة في الثياب جلد هذا ص: ۲۲۴.

[4] فتح البارى: ۶۰۷/۱.

[5] فتح البارى: ۶۰۷/۱

[6] الكنز المتوارى: ۲۰/۴ تقرير بخارى: ۱۳۲/۲.

أُمِّ هَانِي: اَلْمُلْتَحِفُ النَّبِيُّ ﷺ بِثَوْبٍ وَخَالَفَ بَيْنَ طَرَفَيْهِ عَلَى عَاتِقَيْهِ)). امام زهرى رحمه الله په خپل حديث كښې بيان كړى دى چه ملتحف معنى متوشح ده اودا داسې سړې دې چه دَخپل څادر يوه غاړه (حصه) په ګسه اوږه باندې او دويمه غاړه (حصه) په ښي اوږه باندې واچوى اوهغه خپلې دواړه اوږې په څادر باندې پټوى.

## تراجم رجال:

**الزهري:** دا ابوبكر محمدبن سلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب بن عبدالله الزهرى المدنى دې. دَدوى حالات كتاب بدء الوحي دريم حديث لاندې تيرشوى دى.[1]

**شرح عبارت:** امام بخارى رحمه الله دَ ترجمة الباب قائمولونه پس دَامام زهرى رحمه الله او ام هانى رضي الله عنها اقوال دَ ترجمه جز جوړولو سره ذكر كړى دى.

**قوله: في حديثه:** امام بخارى رحمه الله دَ ترجمة الباب لفظ ملتحفاً دَتشريح په غرض سره ملتحف باره كښې دَ امام زهرى رحمه الله قول راوړلې دَې. چه دَ ملتحف نه مراد متوشح دې. اودا خبره هغوى په خپل روايت كړې شوې حديث كښې كړې ده. او هغه روايت مصنف ابن أبي شيبة كښې موجود دې كوم چه عن سالم عن ابن عمر په طريق سره روايت ده. پوره روايت سره دَ سند نه داسې دې: ((حدثنا عبدالأعلى عن معمر عن الزهري عن سالم عن ابن عمر: أن عمر بن الخطاب رأى رجلا يصلي ملتحفاً، فقال: لا تشبهوا باليهود، من لم يجد منكم إلا ثوباً واحداً فليتزر به))[2]

مفهوم دادې چه حضرت عمر رضي الله عنه يوسړې په مونځ كولوسره اوليدلو اودَهغه حالت داسې وو چه هغه خپل څادر دَ خپل بدن نه راتاؤكړې وو. حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چه دَ يهودو مشابهت مه اختياروئې. په تاسوكښې چه كوم يو سړې سره يوه كپړه وى نوهغه دې هغه په خپل بدن باندې دَ لنګ په شان اوتړى.

دا روايت امام طحاوى رحمه الله په دې طريق سره ذكر كړې دې: ((عن أبي داؤد عن عبدالله بن صالح عن الليث عن عقيل عن ابن شهاب عن سالم عن ابن عمر.........الخ))[3]

يابيا دې نه مراد دَ امام زهرى رحمه الله هغه اثر دې كوم چه هغوى ((عن سعيد عن أبي هريرة)) سره بيان كړې دې. دائې په مسنداحمد كښې ذكر كړې دې.[4]

**قوله: وهو المخالف بين طرفيه.........الخ:** په ظاهره داعبارت دَامام بخارى رحمه الله خپل دې دَامام زهرى رحمه الله نه دى.[5]

اوامام صاحب رحمه الله دَدې الفاظونه ملتحف يا متوشح وضاحت بيانوى چه دَڅادر دوه غاړې يا دوه پلونه يوطرف (يعني ښي طرف) په ګسه اوږه باندې اودَ څادر ګسه غاړه په خپله ښئ اوږه باندې واچولې شى هم دغه التحاف او هم دې ته توشح وائى. دَ التحاف او توشح تشريح شاته تيره شوې ده.[1]

---

[1] كشف البارى: ۳۲۶/۱.

[2] المصنف لابن أبي شيبة كتاب الصلاة باب من كان يقول: إذاكان الثوب واحداً رقم الحديث: ۳۱۲۵، ۱۰۶/۳.

[3] شرح المعانى الآثار كتاب الصلاة باب الصلاة فى الثوب الواحد رقم الحديث: ۲۲۲۰.

[4] مسنداحمد بن حنبل مسندأبي هريرة رقم الحديث: ۷۲۵۰.

[5] فتح البارى: ۶۰۶/۱عمدة االقارى: ۸۸/۴

**قول**: قال: قالت أم هانئ: التحف النبي ﷺ بثوب وخالف بين طرفيه على عاتقيه:
امام بخاری رحمه الله فرمائی چه ام هانی رضي الله عنها فرمائی چه نبی کریم ﷺ یوې کپړې سره التحاف اوکړو یعنی څادر ئی راتاؤکړو په داسې حال کښې چه د څادر دواړه پلونه په دواړو اوږو باندې اول بدل اچولی وو (یعنی یو پلو ئی په ګسه اوږه باندې وو او بل پلو په ښئی اوږه باندې).

**ام هاني**: دا أم هاني فاختة بنت أبي طالب بن عبد المطلب رضي الله عنها ده. دَدې تذکره كشف الباري كتاب الغسل باب التستر في الغسل عند الناس کښې تیره شوې ده.[۲]

**قول**: التحف النبي صلى الله عليه وسلم بثوب: امام بخاری رحمه الله دَ ام هانی رضي الله عنها دا قول تعليقاً دَ ترجمة الباب جز جوړولو سره ذکرکړې دې او پوره روایت ئی هم دَدې باب آخرکښې ذکرکړې دې. لیکن په دې روایت کښې «وخالف بين طرفيه على عاتقيه» الفاظ نشته دې. په دې صورت کښې دَ ام هانی رضي الله عنها دقول نه پس ددې جملې ذکر دې خبرې طرف ته اشاره ده چه مراد دادې دَ ام هانی رضي الله عنها دَ قول «التحف النبي صلى الله عليه وسلم بثوب».

ابن بطال رحمه الله فرمائی چه څادر داسې په مخالفت سره داغوستلو فائده داده چه دَ مونځ ګذار نظر دَ رکوع په حالت کښې په خپل ستر باندې پرینوځی. علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا فائده هم ده چه په رکوع اوسجود کښې به دَغه کپړه دَ پریوتلونه محفوظ پاتې کیږی.[۳]

**فائده**: په بخاری شریف کښې دَ ام هانی رضي الله عنها مذکوره روایت کښې خو «وخالف بين طرفيه على عاتقيه» الفاظ نشته دې لیکن دَصحیح مسلم په یوروایت کښې په دویم طریق سره دا الفاظ مذکور دی. «حدثنا إسحاق، ثنا عبد الله بن الحارث المخزومي، ثنا الضحاك بن عثمان، عن إبراهيم بن عبد الله بن حنين، عن أبي مرة عن أم هاني بنت أبي طالب قالت رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلي في ثوب واحد مخالفًا بين طرفيه ثماني ركعات بمكة يوم الفتح».[۴]

## الحديث الأول

۳۵۳- حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، قَالَ: حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ قَدْ خَالَفَ بَيْنَ طَرَفَيْهِ»

**ترجمه**: دَحضرت عمر بن ابی سلمه رضي الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ په یوه کپړه کښې مونځ اداکړو په داسې حال کښې چه حضورپاك دَخپل څادر دواړه پلونه په خپلو اوږو مبارکوباندې په مخالف طرف کښې اچولې وو.

---

[۱] جلد هذا ص: ۲۲۶.

[۲] كشف الباري كتاب الغسل باب التستر في الغسل عندالناس.

[۳] شرح ابن بطال: ۱۶/۲ فتح الباري: ۶۰۷/۱عمدة القاري: ۸۸/۴التوضيح لابن ملقن: ۲۸۷/۵.

[۴] فتح الباري: ۶۰۷/۱تغليق التعليق: ۲۰۵/۲-۲۰۴ صحيح مسلم كتاب صلاة المسافرين باب استحباب صلاة الضحى رقم الحديث: ۸۳

## تراجم رجال

**عبیدالله بن موسیٰ:** دا عبیدالله بن موسیٰ بن باذم عبسي کوفي رحمه الله دې. دَدوی حالات کتاب الایمان اتم حدیث کښې تیرشوي دي.[۱]

**هشام بن عروة:** دا ابوالمنذر یا ابوعبدالله هشام بن عروة بن الزبیر بن العوام المدني رحمه الله دې. دا مشهور تابعي دې. دَدوی حالات کتاب بدء الوحي دَ دویم حدیث لاندې تیر شوي دي.[۲]

**عن ابیه:** دا عروة الزبیر بن العوام المدني رحمه الله دې. جلیل القدر تابعي دې. دَوی حالات هم کتاب بدء الوحي دَ دویم حدیث لاندې تیر شوي دي.[۳]

**عمربن ابي سلمة: نوم اونسب:** داعمر بن ابي سلمه دې.دَدوی نوم عبدالله بن عبدالاسد بن هلال بن عبدالله بن عمر بن مخزوم القریشي المخزومي، ابوحفص المدني رحمه الله دې. دوی دَ نبي کریم ﷺ دَ بي بي حضرت ام سلمه رضي الله عنها دَ رومبي خاوند خوئي دې. یعني دَ نبي کریم ﷺ ربیب دې.[۴]

**مشائخ اوتلامذه:** دې دَ نبي کریم ﷺ نه اودَ خپلې مور ام سلمه رضي الله عنها نه روایت کوي. اودَدوی نه روایت کونکوکښې ابواسامه اسعد بن سهل بن حنیف، ثابت البناني، سعیدبن المسیب، عبدالله بن کعب الحمیري، عروة بن الزبیر، عطاء بن ابي رباح، قدامة بن ابراهیم بن محمدبن حاطب، وهب بن کیسان، دَهغوی خامن محمدبن عمر بن ابي سلمة اودَ هغوی یوبل خوئي دِکوم نوم چه معلوم نه دې رحمهم الله شامل دي.[۵]

**حالات اوواقعات:** حضرت عروة بن زبیر رضي الله عنه دَهغه اصحاب رسول رضي الله عنهم په نومونوکښې کومو چه دَحبشه طرف ته رومبې هجرت کړې ابوسلمه بن عبدالاسد اوهغوی سره دَهغوی بي بي ام سلمة هم ذکر کړې. په هجرت کښې دَ حبشه په زمکه کښې عمر بن ابي سلمه رضي الله عنه پیدا شو.[۶]

علامه ذهبي دَدې خبرې تردید کړې دې چه دې دَ هجرت حبشه نه پس په ارض حبشه کښې پیداشوې بلکه دَدوی پیدائش دَ هجرت نه دوه کاله وړاندې یا دَدې نه هم وړاندې شوې. ځکه چه دَدوی والدصاحب دَ هجرت په دویم کال غزوه بدرکښې شهیدشوې وو. نودده دَ پیدائش ځائي ارض حبشه څنګه کیدې شي.

دَ هغه درې خوئیندې وې سلمه، زینب او درة. دې دَ ټولونه مشر وو. دا هغه سړې دې چاچه په وړوکوالي کښې دَخپلې مور نکاح رسول الله ﷺ سره اوکړه.[۷] دکوم تفصیل چه امام نسائي رحمه الله کتاب النکاح باب إنکاح الابن أمه کښې ذکرکړې دې.

چه کله دَحضرت ام سلمه رضي الله عنها عدت پوره شو نو حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه هغې ته دَ نکاح پیغام وراولیګلو. هغې قبول نه کړو بیا نبي کریم ﷺ حضرت عمر رضي الله عنه ته دَنکاح پیغام ورکولوسره اولیګلو

[۱] کشف الباري کتاب الإیمان رقم الحدیث: ۸، ۶۳۶/۱

[۲] کشف الباري: ۲۹۱/۱.

[۳] کشف الباري: ۲۹۱/۱.

[۴] تهذیب الکمال: ۲۱/۳۷۲ تهذیب التهذیب: ۴۵۵/۷.

[۵] تهذیب الکمال: ۳۷۳/۲۱ تهذیب التهذیب: ۴۵۵/۷ - ۴۵۶.

[۶] تهذیب الکمال: ۳۷۳/۲۱.

[۷] سیر أعلام النبلاء: ۴۰۷/۳.

نو هغې جواب ورکړو چه زه يوه داسې ښځه يم چه دغيرت والا يم (يعني زما د پاره د رسول الله ﷺ د نورو بيبيانو سره اوسيدل به ممکن نه وي، (حاشية السيوطي على النسائي ۸۲/۶) او زما بچي هم دي اوزما په اولياء کښې هم څوك موجود نه دی.

حضرت عمر ؓ نبی کريم ﷺ له تشريف راوړو اوتولې خبرې نی په خدمت کښې پيش کړې. حضورپاك هغوی ته داسې وينا کولوسره اوليګل چه ترکومې پورې ستا رومبې خبره ده چه ته دغيرت والا ښځه نی نوزه به د الله ﷻ نه دعا اوکړم چه هغه ستا غيرت لرې کړی اوستاد بچود بالنې بندوبست به هم اوشي اوستادا خبره چه ستا په اولياء کښې څوك موجود نه دی چاسره چه ته مشوره اوکړې شې نو ستا په حاضر اولياء او په غائب اولياء کښې څوك داسې نشته دې د چا چه په دې واده باندې اعتراض وي.

حضرت ام سلمه ؓ چه د حضورپاك داخبرې واورېدې نوخپل خوئی عمر بن ابی سلمه ؓ ته نی اووئيل اې عمر پاسه اوزما نکاح رسول الله ﷺ سره اوکړه. چنانچه هغوی د ام سلمه ؓ نکاح جناب رسول الله ﷺ سره اوکړه.(١)

دحضرت عمر بن ابی سلمه تربيت پخپله رسول الله ﷺ اوکړو بالنه پخپله رسول الله ﷺ اوکړه. يو خل هغوی رسول الله ﷺ سره خوراك کولو نوهغوی ورته اوفرمائيل اې بچيه د خپلې مخې نه خوره، په ښي لاس سره خوراك کوه اود الله ﷻ نوم اخستوسره شروع کوه.(٢)هغوی دا هم ياد اوساتلو اودې نه علاوه نی نور احاديث هم ياد کړل. بل حضورپاك دهغوی رضاعی تره هم وو. حضرت ابن زبير ؓ فرمائي چه عمر زمانه دوه کاله مشر وو.(٣)

علی ؓ دهغه مورام سلمه ؓ ته درخواست اوکړو چه په جنګ جمل کښې هغوی سره شريکه شی نوهغې حضرت علی ؓسره په جنګ جمل کښې خپل خوئی عمر بن ابی سلمه ؓ اوليګلو(٤) وئيلی شوی دی چه حضرت عمر بن ابی سلمه ؓ هم په دې جنګ جمل کښې شهيدشوې وو.(٥)

ليکن صاحب د تهذيب الکمال علامه مزی ددې خبرې تصريح کړې ده چه داسې هيڅ رښتياخبره نشته دې بلکه هغوی د عبدالملك بن مروان په زمانه کښې ۸۳ هجری کښې مدينه منوره کښې وفات شوې.(٦)

**دحديث تخريج**: امام بخاری ؒ داحديث هم په دې باب کښې په دريو مختلف طرق سره بيان کړې دې. رومبې طريق خو عبيدالله ابن موسی نه دې اودويم طريق محمدبن المثنی نه دې او دريم طريق عبيدالله بن اسماعيل نه نقل دې. ددې نه علاوه داحديث په څه قدرې مختلف الفاظ سره مسلم ابوداؤد ترمذی نسائی ابن ماجه او صاحب مؤطا هم ذکرکړې دې.(٧)

(١) سنن النسائی رقم الحديث: ٣٢٥٤، سير أعلام النبلاء: ٤٠٧/٣، تهذيب التهذيب: ٤٥٥/٧، الإصابة: ٥١٩/٢.

(٢) سير أعلام النبلاء: ٤٠٧/٣، الإصابة: ٥١٩/٢، صحيح ابن حبان كتاب الأطعمة باب آداب الإكل رقم الحديث: ٥٢١٢ صحيح البخاری رقم الحديث: ٥٣٧٧ جامع الأصول رقم الحديث: ٥١١٥.

(٣) سير أعلام النبلاء: ٤٠٧/٣، تهذيب التهذيب: ٤٥٦/٧، الإصابة: ٥١٩/٢.

(٤) سير أعلام النبلاء: ٤٠٧/٣، تهذيب التهذيب: ٤٥٦/٧، الإصابة: ٥١٩/٢.

(٥) تهذيب الكمال: ٣٧٢/٢١، تهذيب التهذيب: ٤٥٦/٧.

(٦) تهذيب الكمال: ٣٧٢/٢١، الإصابة: ٥١٩/٢.

(٧) صحيح مسلم كتاب الصلاة باب الصلاة فی ثوب واحد رقم الحديث: ٥١٧ سنن أبی داؤد، كتاب الصلاة باب جماع ألواب مايصلی فيه رقم الحديث: ٦٢٨ سنن الترمذی كتاب الصلاة باب الصلاة فی الثوب الواحد: ٣٣٩ سنن النسائی

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دمذکوره حدیث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دی چه په دی کښې ذکر دی «قد خالف بین طرفیه» اوداهم هغه التحاف دی کوم ته چه التوشح او اشتمال علی المنکبین وائی.(۱)

# الحدیث الثانی

[۳۴۸/۳۴۹]- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى، قَالَ: حَدَّثَنَا هِشَامٌ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّهُ «رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ فِي بَيْتِ أُمِّ سَلَمَةَ قَدْ أَلْقَى طَرَفَيْهِ عَلَى عَاتِقَيْهِ»

**ترجمه:** حضرت هشام رحمه الله فرمائی چه زما پلار (حضرت عروه بن الزبیر رضی الله عنه) دحضرت عمر بن ابی سلمه رضی الله عنه نه روایت کولوسره ماته اوفرمائیل چه عمر بن ابی سلمه رضی الله عنه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ام سلمه رضی الله عنها په کورکښې مونځ اداکولو سره اولیدلو په داسې حال کښې چه حضورپاک دخپل څادر دواړه غاړې په خپلو اوږو باندې اچولې وې.

## تراجم رجال

**محمدبن المثنی:** دا ابوموسی محمدبن المثنی بن عبید عنزی بصری رحمه الله دی. ددوی حالات کتاب الایمان باب حلاوة الایمان کښې تیرشوی دی.(۲)

**یحیی:** دا یحیی بن سعید بن فروخ القطان تمیمی رحمه الله دی. د دوی حالات کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لاخیه ما یحب لنفسه کښې تیر شوی دی. (۳)

**هشام:** دا ابوالمنذر یا ابوعبدالله هشام بن العروة بن الزبیر بن العوام المدنی رحمه الله دی. ددوی حالات کتاب بدء الوحی په دویم حدیث کښې تیر شوی دی. (۴)

**ابی:** دا دهشام پلار عروة بن الزبیر بن ا لعوام رضی الله عنه دی. ددوی حالات کتاب بدء الوحی دویم حدیث لاندې تیرشوی دی. (۵)

**عمر بن ابي سلمة:** ددوی نوم عمر بن ابی سلمه عبدالله بن عبدالاسد المخزومی رضی الله عنه دی. ددوی حالات هم په دې باب کښې دړومبی حدیث لاندې تیرشوی دی.(۶)

**شرح حدیث:** داد سابقه روایت په معنی کښې دویم طریق دی. ددې طریق د ذکرکولوفائده داده چه په دې کښې د دې خبرې تصریح ده چه حضرت عمر بن ابی سلمه رضی الله عنه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په یوه کپړه کښې

---

کتاب الصلاة باب الصلاة فی الثوب الواحد رقم الحدیث: ۷۶۴ سنن ابن ماجه کتاب الصلاة باب الصلاة فی الثوب الواحد رقم الحدیث: ۱۰۴۹ المؤطا للإمام مالک کتاب الصلاة باب الر خصة فی الصلاة فی الثوب الواحد رقم الحدیث: ۳۱۷ جامع الاصول کتاب الصلاة رقم الحدیث: ۳۶۳۷، ۴۵۷/۵.

(۱) عمدة القاری: ۸۸/۴.
(۲) کشف الباری: ۲۵/۲.
(۳) کشف الباری: ۲/۲.
(۴) کشف الباری: ۲۹۱/۱.
(۵) کشف الباری: ۲۹۱/۱.
(۶) کشف الباری کتاب الصلاة باب الصلاة فی الثوب الواحد ملتحفًا رقم الحدیث: ۳۵۳.ص:۲۶۹.

مونږ اداکولوسره ليدلې دي. او هم دَدې طريق په روايت کښې في بيت أم سلمة زياتى سره دَ مذکوره تصريح نورهم تائيدکيږي.(١)

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَدې حديث مناسبت ترجمة الباب سره بالکل واضح اوښکاره دې چه په دواړو کښې دَ التحاف ذکر دې.

**تخريج:** دَمذکوره حديث تخريج هم هغه دې کوم چه دَ سابقه دې.

## الحديث الثالث

[٣٤٩] عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ أَبِي سَلَمَةَ أَخْبَرَهُ، قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ مُشْتَمِلًا بِهِ فِي بَيْتِ أُمِّ سَلَمَةَ وَاضِعًا طَرَفَيْهِ عَلَى عَاتِقَيْهِ» (٢)

## تراجم رجال

**عبيد بن اسماعيل:** دا عبيدبن اسماعيل الهباري الکوفى رحمه الله دې. دَدوى حالات **کتاب الحيض باب نقض المرأة شعرها عند غسلها من المحيض** کښې تيرشوى دى.(٣)

**ابواسامة:** دا ابو اسامه حماد بن اسامه بن زيد قريشى کوفى رحمه الله دې. دَدوى حالات **کتاب العلم باب فضل من عَلِمَ وعَلَّمَ** کښې تيرشوى دى.(٤)

**عن هشام عن ابيه:** دا هشام بن عروه او عروه بن زبير رحمهما الله دې. دَدوى حالات بدء الوحى دَدويم حديث لاندې تيرشوى دى.(٥)

**عمر بن ابي سلمه:** دا عمر بن ابى سلمه عبدالله بن الاسد رضي الله عنه دې. دَوى حالات هم دَدې باب ړومبى حديث کښې تيرشوى دى.(٦)

**شرح حديث:** دَدې باب دَرومبى حديث دا دريم طريق دې کوم چه عبيدبن اسماعيل په واسطه سره دې. په دې طريق کښې نورې فائدې داسې دى چه ړومبو دواړو طريقوکښې نه وې.

**فائده ①:** په دې طريق کښې دَدې خبرې تصريح ده چه پخپله عمر بن ابى سلمه رضي الله عنه عروة بن الزبير رحمه الله ته دَمذکوره واقعه خبرورکړې او په ړومبو دواړو روايتونوکښې عنعنه وه او دلته اخباردې.

**فائده ②:** په دې طريق کښې دَ اشتمال لفظ استعمال کړې شوې دې کوم چه دَ التحاف يعنى «**قد خالف بين طرفيه**» حقيقى تفسيردې.(٧)

---

١) راجع رقم الحديث: ٣٥٤.
٢) فتح البارى: ٦٠٨/١ عمدة القارى: ٨٨/٤ إرشادالسارى: ١٠٥/٢.
٣) کشف البارى کتاب الحيض باب نقض المرأة شعرها عند غسلها من المحيض.
٤) کشف البارى کتاب العلم باب فضل من عَلِمَ وعَلَّمَ: ٢٥/٢.
٥) کشف البارى: کتاب بدء الوحى: ٢٩١/١.
٦) کشف البارى کتاب الصلاة باب الصلاة فى الثوب الواحد ملتحفًا رقم الحديث: ٣٥٣، ص:٢٦٩.
٧) فتح البارى: ٦٠٨/١ عمدة القارى: ٤/ ٩٠-٨٩ إرشادالسارى: ١٥/٢.

**د حديث تخريج:** اول خودې مذكوره حديث تخريج هم هغه دې كوم چه د دې باب رومبى حديث (رقم الحديث ٣٥٣) كښې تير شوې دې. البته امام طحاوى رحمه الله د دې حديث څلور طريق نور هم ذكر كړې دى چه څلور واړه صحيح دى:

① «الطريق الأول: حدثنا ابن أبي داؤد قال: ثنا ابن أبي مريم وعبدالله بن صالح قالا ثنا الليث عن يحيى بن سعيد عن أبي أمامة بن سهل عن عمر بن أبي سلمة قال: رأيت النبي صلى الله عليه وسلم: يصلي في ثوب واحد ملتحفا به»

② «الطريق الثاني: حدثنا يونس قال: أنا ابن وهب أن مالكا حدثه عن هشام بن عروة عن أبيه عن عمر بن أبي سلمة: أنه رأي رسول الله صلى الله عليه وسلم: يصلي في ثوب واحد في بيت أم سلمة رضي الله عنها واضعا طرفيه على عاتقيه».

③ «الطريق الثالث: حدثنا على بن عبدالرحمن قال ثنا عبدالله بن صالح قال حدثني الليث قال ثنا يحيى بن سعيد عن أبي أمامة بن سهل عن عمر بن أبي سلمة: قال: رأيت النبي صلى الله عليه وسلم يصلي في ثوب واحد ملتحفا به مخالفا بين طرفيه على منكبيه».

④ «الطريق الرابع: حدثنا أبوبكرة قال: ثنا روح بن عبادة قال ثنا هشام بن حسان وشعبة عن هشام بن عروة عن أبيه عن عمر بن أبي سلمة، قال: رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلي في ثوب واحد مخالفا بين طرفيه» [1]

**قوله: يصلي في ثوب واحد مشتملاً به:** دا جمله د رايت دپاره مفعول ثانى دې. او مشتملاً د يصلي ضمير نه حال دې. دمستملى اوحموى د روايت مطابق دا لفظ مشتملٍ يا مشتملٌ دې. د جر صورت به د جرِ جوار د وجې نه معتبر وى اود رفع په صورت كښې به دا مرفوع وى د مبتداء محذوف د وجې نه يعنى «هومشتمل به» [2]

## الحديث الرابع

[٣٥٠]- حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، أَنَّ أَبَا مُرَّةَ مَوْلَى أُمِّ هَانِئٍ بِنْتِ أَبِي طَالِبٍ، أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أُمَّ هَانِئٍ بِنْتَ أَبِي طَالِبٍ، تَقُولُ: ذَهَبْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الفَتْحِ، فَوَجَدْتُهُ يَغْتَسِلُ وَفَاطِمَةُ ابْنَتُهُ تَسْتُرُهُ، قَالَتْ: فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَقَالَ: «مَنْ هَذِهِ» [ص:٨١] فَقُلْتُ: أَنَا أُمُّ هَانِئٍ بِنْتُ أَبِي طَالِبٍ فَقَالَ: «مَرْحَبًا بِأُمِّ هَانِئٍ»، فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ غُسْلِهِ، قَامَ فَصَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ مُلْتَحِفًا فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، زَعَمَ ابْنُ أُمِّي أَنَّهُ قَاتِلٌ رَجُلًا قَدْ أَجَرْتُهُ، فُلاَنَ ابْنَ هُبَيْرَةَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «قَدْ أَجَرْنَا مَنْ أَجَرْتِ يَا أُمَّ هَانِئٍ» قَالَتْ أُمُّ هَانِئٍ: وَذَاكَ ضُحًى [3] [ر٢٧٦، ١٠٥٢]

---

[1] شرح معانى الآثار كتاب الصلاة الصلاة فى ثوب واحد رقم الحديث: ٢٠٧١، ٢٠٨٤، ٢٠٨٦.
[2] فتح البارى: ٦٠٨/١ عمدة القارى: ٩٠/٤ إرشادالسارى: ١٦/٢.
[3] أخرجه البخارى فى صحيحه فى كتاب الغسل باب التستر فى الغسل عندالناس رقم الحديث: ٢٨٠وفى كتاب الجهاد باب أما ن النساء وجوارهن رقم الحديث: ٣١٧١وفى كتاب الأدب باب ماجاء فى زعموا رقم الحديث ٦١٥٨ومسلم فى صحيحه كتاب الحيض باب تستر المغتسل بثوب ونحوه رقم الحديث: ٣٣٦كتاب الصلاة المسافرين باب استحباب صلاة الضحى رقم الحديث:٧١٧ أبوداؤد كتاب الصلاة باب الضحى رقم الحديث: ١٢٩٠وكتاب الجهاد

**ترجمه:** حضرت ام هانی رضی الله عنها فرمائی چه زه رسول الله ﷺ له د فتح مکې والا په کال لاړم. ما هغه په غسل کولوسره اولیدلو. په داسې حال کښې چه دحضورپاك لوربی بی حضرت فاطمه رضی الله عنها په حضور پاك باندې پرده کړې وه. ام هانی رضی الله عنها فرمائی چه ما رسو الله ﷺ ته سلام اوکړو حضورپاك اوفرمائيل څوك دی؟ ما عرض اوکړو زه ام هانی رضی الله عنها یم حضورپاك اوفرمائيل ام هانی رضی الله عنها ته دې پخير راغلې وې. بيا حضورپاك د غسل نه فارغ شو نو اودريدو او په يوه کپړه کښې ئې التحاف کولوسره (يعنی د خپل خان نه راتاؤکړه) اته رکعته مونځ ئې اوکړو کله چه حضورپاك د مانځه نه فارغ شو نوما عرض اوکړو يارسول الله! زما د مور ځوئې (حضرت علی کرم الله وجهه) وائي چه هغه به د هبيره (زما د خاوند) فلانکې ځوئې وژنی حالانکه ما هغه ته پناه ورکړې ده. نورسول الله ﷺ اوفرمائيل اې ام هانی رضی الله عنها چاته چه تا پناه ورکړې ده هغه ته مونږ پناه ورکړه ام هانی رضی الله عنها اوفرمائيل دا د چاشت وخت وو

## تراجم رجال

**اسماعيل بن ابي اويس:** دا ابوعبدالله اسماعيل بن ابی اويس الاصبحي المدنی رحمه الله دې. دَدوی تذکره اوتفصيلی تعارف **كتاب الإيمان باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال** کښې تير شوې دی.[۱]

**مالک بن انس:** دا ابوعبدالله مالك بن انس بن مالك بن ابی عامر الاصبحی المدنی رحمه الله دې. دَدوی حالات **كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن** کښې تير شوی دی.[۲]

**ابي النضر مولی عمر بن عبيدالله:** دَدوی نوم سالم بن ابی اميه مولی عمر بن عبيدالله القرشي التيمي رحمه الله دې. دَدوی تذکره **كتاب الوضوء باب المسح على الخفين** کښې تيره شوې ده.[۳]

**ابومرة مولی ام هانيء:** دا ابومرة عبدالرحمن مولی ام هانی دې. دَده تذکره **كتاب العلم باب من قعد حيث ينتهي به المجلس** کښې تيره شوې ده.[۴]

**ام هانيء بنت ابي طالب:** دا ام هانی فاختة بنت ابی طالب بن عبدالمطلب رضی الله عنها ده. دَدې تذکره **كتاب الغسل باب التستر في الغسل عند الناس** کښې تيره شوې ده.[۵]

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ مذکوره حديث ترجمة الباب سره مناسبت ((**فلما فرغ من غسله قام فصلى ثماني ركعات ملتحفا في ثوب واحد**)) سره دې.[۶]

---

باب في أمان المرأة رقم الحديث: ۲۷۶۳سنن الترمذی كتاب الاستئذان باب ماجاء في مرحبًا رقم الحديث: ۲۷۳۵ سنن النسائي كتاب الطهارة باب ذكر الاستتار عندالاغتسال رقم الحديث ۲۲۵ الموطأ لإمام مالک في قصر الصلاة باب صلاة الضحى رقم الحديث: ۵۱۸جامع الأصول كتاب الصلاة رقم الحديث: ۱۱۴۵،۶۵۵/۲تحفة الأشراف رقم الحديث:۱۸۰۱۸، ۲۰۷/۲.

[۱]) كشف الباري: ۱۱۳/۲.

[۲]) كشف الباري: ۸۰/۲.

[۳]) كشف الباري كتاب الوضوء باب المسح على الخفين.

[۴]) كشف الباري: ۲۱۴/۳.

[۵]) كشف الباري كتاب الغسل باب التستر في الغسل عندالناس.

[۶]) عمدة القاري: ۹۲/۴.

## شرح حدیث

**قوله: فلما فرغ من غسله:** حضرت ام هانی رضي الله عنها فرماني چه کله حضورپاك دغسل نه فارغ شو نو هغوی اته رکعته مونځ اوکړو په داسې حال کښې چه رسول الله ﷺ خپل بدن په یوه کپړه کښې رانغښتې وو.په دې روایت کښې (فصل ثماني رکعات) یعنی ثمانیَ دَ نون کسره او یاء فتحه سره خو علامه کرماني رحمه الله ثمانَ رکعاتٍ لفظ لیکلې دې. په دې صورت کښې ثمانَ دَ نون فتحه سره به دَ فصلی مفعول وی. تواصلاً دلته دوه خبرې ذکرکول مقصود دی. یودَ غسل نه فراغت باندې دَ چاشت اته رکعته اودویم دحضورپاك دَ التحاف په حالت کښې مونځ اداکول.[1]

**قوله: زعم ابن أمي أنه قاتل رجلاً:** زعم نه مراد دې خاني کښې قال دې یا بیا ادعی نه مراد چه هغه اوونیل.[2] په دې روایت کښې ابن أمي الفاظ دی خودَ حموی په روایت کښې ابن أبي الفاظ دی لیکن په مقصود کښې تفاوت نشته دې. ځکه چه ام هانی دحضرت علی رضي الله عنه حقیقي خور ده. علامه عیني رحمه الله په دې خاني کښې فرماني سره ددې چه په مقصود کښې خلل نه واقع کیږی لیکن دَ ابن أمي الفاظ دَ حرمت دَ تاکید قرابت او پیدانش کښې په مشارکت باندې زیات دلالت کوی.[3]

إنه قاتل کښې قاتل دَ باب مفاعله نه داسم فاعل صیغه ده مراد دادې چه هغه دَ قتل کولواراده کونکې دې. په دې وجه هغه تردغه وخته پورې په حقیقت کښې قاتل نه ووجوړشوې لیکن دَ فعل سرته په رسولو باندې دعزم او ارادې دَ وجې نه دهغه دپاره دَ قاتل لفظ استعمال کړې شو.[4]

**قوله: قد أجرته:** داجمله محلاً منصوب ده دَ رجلاً صفت کیدو دَ وجې نه.[5]

**قوله: فلان بن هُبَیرَةَ:** دالفظ منصوب او مرفوع دواړه شان لوستل جائز دی. منصوب خودَ بدل کیدو دَ وجې نه چه یا خوبه دَ رجلاً نه بدل وی او یابیا به دَ أجرته "ه" ضمیر سره بدل جوړیږی. اومرفوع به دمبتداء محذوف دخبرکیدودَ وجې نه وی.[6] هبیرة دَ "ه" فتحه او باء فتحه یاء په جزم او راء په فتحه سره دې.[7] دا ابن ابی وهب بن عمر بن عائذ بن عمران المخزومي رحمه الله دې. دَام هانی رضي الله عنها خاوند دې اوام هانی رضي الله عنها دَ حضرت علی رضي الله عنه سکه خور ده. دَ فتح مکې په کال مسلمانه شوې. دهغې دَ خاوند هبیرة نه دَ هغه اولاد دی. عمر هاني یوسف اوجعدة. په دې کښې هبیرة دابن عمر کنیت سره اودهغه بی بی فاختة دَ ام هانی رضي الله عنها په کنیت سره مشهور شو.[8]

---

[1] شرح الكرماني: ۱۶/٤عمدة القاري: ۹۲/٤.

[2] عمدة القاري: ۹۲/٤شرح الكرماني: ۱۶/٤فتح الباري: ۶۰۹/۱

[3] عمدة القاري: ۹۲/٤شرح الكرماني: ۱۶/٤فتح الباري: ۶۰۹/۱

[4] شرح الكرماني: ۴/۱۶ فتح الباري: ۱/۶۰۹.

[5] شرح الكرماني: ۱۷/٤إرشادالساري:۱۷/۲.

[6] شرح الكرماني: ۱۷/٤فتح الباري: ۶۰۹/۱

[7] عمدة القاري:۹۳/٤.

[8] شرح الكرماني:۱۷/٤عمدة القاري: ۹۳/٤ تهذيب الكمال: ۵۶۵/٤الإصابة: ۲۵۷/۱ الاستيعاب لابن عبدالبر: ۲٤۱/۱-۲٤۰ إرشادالساري: ۱۷/۲.

اوس ددې فلان بن هبيرة نه څه مراد دې؟ نو په دې باره كښې دوه اختلافات دى. يو د روايت الفاظ په مينځ كښې او بل ددې د مصداق باره كښې.
موطا امام مالك رحمه الله شرح التمهيد كښې د ام هانى رضي الله عنها روايت محمدبن عجلان په طريق سره داسې دې: «عن أم هانى قالت: أتاني يوم الفتح حموان لي، فأجرتهما، فجاء علي يريد قتلهما، فأتيت النبى صلى الله عليه وسلم وهوفي قبة بالأبطح بأعلى مكة وفيه: أجرنا من أجرت أمنا من أمنت»[1]، اود معجم الكبير الطبرانى په روايت كښې «انى أجرت حموي» دې. [2]او هم د معجم په يو روايت كښې «حموي ابني هبيرة» دې. [3]
يعنى په حديث باب كښې چاته چه پناه وركړې شوې هغه يودې اوپه دې نورو رواياتوكښې ددوو د پناه وركولوذكر دې. دويم اختلاف په دې فلان بن هبيرة د مصداق باره دې. ابوالعباس ابن سريج وئيلى دى چه دا دوه سړى وو جعده بن هبيرة او يو بل څوك دې د كوم نوم چه معلوم نه دې. دا دواړه د هغه خلقو نه ووچاچه حضرت خالد رضي الله عنه قتل كړې اونه هغوى امان قبول كړې اونه ئې وسله غورزولې ده دوى ته ام هانى رضي الله عنها پناه وركړې وه اودا دواړه دام هانى رضي الله عنها د سخر گنۍ خپلوان وو. [4]
الأزرقى د واقدى په سند سره نقل كړى دى چه دا حارث بن هشام او ابن هبيرة بن ابى وهب وو. [5]ابن هشام تهذيب السيرة كښې جزماً داخبره ليكلې ده چه كومو دووكسانوته ام هانى رضي الله عنها پناه وركړې وه هغه حارث بن هشام او زهير بن ابى اميه وو او دا دواړه مخزومى وو. [6]
**دعلامه كرمانى رحمه الله رائې:** فلان بن هبيرة د مصداق تعيين باره كښې علامه كرمانى رحمه الله فرمانى چه كيدې شى ام هانى رضي الله عنها فلان بن هبيرة نه خپل حقيقى خونى مراد اخستې وى اوداهم ممكن دى چه خپل پاللې خونى مراد اخستې وى. معامله شك كښې ده دااحتمال هم دې چه هغه دام هانى رضي الله عنها خونى وى اوداهم ممكن ده چه د هغه نه علاوه څوك وى. راوى د هغه نوم هيركړې دې په دې وجه ئې هغه د فلان په لفظ سره تعبير كړې دې. زبير بن بكار وئيلى دى چه هغه حارث بن هشام المخزومى وو. [7]
**د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله د علامه كرمانى رحمه الله قول «وقال الزبير: فلان بن هبيرة هو الحارث بن هشام» ذكركولوباندې فرمائيلى دى چه د زبير په كلام كښې تصرف واقع شوې دې خكه چه كومه قصه زبيرسره پيښه شوې ده په هغې كښې د «فلان بن هبيرة» په ځائې «الحارث بن هشام» ذكر وو. حافظ صاحب رحمه الله فرمانى زما په نيز په روايت باب كښې د څه كلماتو حذف واقع شوې دې. لكه چه عبارت داسې وو «فلان ابن عم هبيرة» بيا لفظ عم ساقط شو. بيا په عبارت كښې «فلان قريب هبيرة» وو يعنى په دې ځائې لفظ ابن په ځائې قريب وو كوم چه حذف كړې شو او ابن اولكولې شو. په دې تعبير سره الحارث بن هشام، زبير بن ابى اميه، عبدالله بن ابى ربيعه نه په هر يو باندې به كلام صادق راشى خكه چه دا خو يا ابن عم هبيرة دې يا د هغې قريبى دې خكه چه دا ټول مخزومى دى. [8]

---

[1] التمهيد باب السين أبونضر مولى عمر بن عبدالله الحديث الثامن: ۱۸۹/۲۱.
[2] المعجم الكبير للطبرانى فاختة أم هانى رقم الحديث: ۱۰۰۹.
[3] المعجم الكبير للطبرانى فاختة أم هانى رقم الحديث: ۱۰۱۵.
[4] فتح البارى: ۶۰۹/۱عمدة القارى: ۹۵/۴التوضيح: ۲۸۸/۵.
[5] فتح البارى: ۶۰۹/۱عمدة القارى: ۹۵/۴التوضيح لابن ملقن: ۲۸۸/۵.
[6] فتح البارى: ۶۰۹/۱عمدة القارى: ۹۵/۴إرشادالسارى: ۱۷/۲أكمال المعلم لقاضى عياض: ۶۱/۳.
[7] شرح الكرمانى: ۱۷/۴.
[8] فتح البارى: ۶۰۹/۱.

**دَعلامه عینی رحمه الله رائې او په حافظ صاحب باندې رد:** اصوب او اقرب دادې چه فلان نه مراد دَ هبیرة ام هانی رضي الله عنها نه علاوه دَ یوې بلې ښځې نه خوئی وی او راوی دَهغه نوم هیر کړې وی. دَدې رائې په صحت باندې دَالتمهید او الطبراني روایات دلالت کوی. په دې روایاتو کښې دا وو چه چاته چه ام هانی رضي الله عنها پناه ورکړې وه هغه دَهغې دَ سخر گننې خپلوان وو.

په دې باندې یو اعتراض پیدا کیږی چه دَابونضر والا په روایت کښې چاته چه پناه ورکړې شوې دَهغه دَ یو کیدو ذکر ملاویږی او المعجم والا روایت کښې دَ دوو کسانو ذکر دې. نو دَعلامه عینی رحمه الله قول به په دې صورت کښې څنګه صادق راشی؟ نو پخپله علامه عینی رحمه الله ددې جواب ورکړې دې چه هیڅ دَ حرج والا خبره نه ده عین ممکن دی چه دَ هیریدو دَ وجې نه راوی صرف دَ یو ذکر کړې وی دا هم داسې دی لکه چه راوی دَهغه نوم هیر کړو.

ابن جوزی رحمه الله ونیلی دی چه که چرې دَهبیره نه دَهغه خوئی مراد دې کوم چه دَام هانی رضي الله عنها نه دې نوهغه به جعدة وی. ابوعمر دا ونیلی دی چه هغه جعدة نه علاوه بل څوك وو یعنې دَام هانی رضي الله عنها نه وو. بیا علامه عینی رحمه الله دَحافظ ابن حجر رحمه الله قول ردکولوسره ونیلی دی چه دعلامه کرمانی رحمه الله تحقیق صحیح دې او بعض خلقو (مراد حافظ صاحب دې) ((والذي يظهر لي)) ونیلوسره کوم تحقیق پیش کړې دې هغه دَحقیقت نه لرې دې اوددې سرې دَخپل ځان نه تصرف کول دی بغیردَ څه وجې نه څکه چه په دې کښې حذف مجاز اوشئ بعید مقدر منلو ارتکاب لازم راځی. بل دا دَ ټولو مذکورینو خلاف دې. یعنې ټول خلاف اصل دی.(١)

**دَعلامه انور شاه کشمیری رحمه الله رائې:** دَعلامه انور شاه کشمیری رحمه الله رائې هم هغه ده کومه چه دَحافظ ابن حجر رحمه الله په ردکښې علامه عینی پیش کړې ده. شاه صاحب دَ حافظ صاحب خبره نقل کولونه پس فرمائی چه دې نه وراندې حافظ صاحب رحمه الله دَعلامه کرمانی رحمه الله قول هم نیمګړې ذکر کړو. په دې باندې محقق عینی رحمه الله دکرمانی رحمه الله پوره قول نقل کړو چه ام هانی رضي الله عنها دَ هبیرة خوئی مراد اخستې دې دَ خپل بطن نه یادَ ربیب اراده نې اوکړه (یعنی دَ بل چا دَ بطن نه) اوداقول اقرب الی الصواب اوزیات معقول دې اوحافظ صاحب رحمه الله چه کومه توجیه حذف ومجاز و تقدیر بشیئ بعید سره کړې ده هغه په هیڅ شان سره مناسب نه ده. دا ټول دَ اصل خلاف او بې ځایه تصرف کلام دې بل دَ محققینو دَ مذکوره اقوال هم مخالف دې حضرت شاه صاحب رحمه الله اوفرمائیل چه هغه دَ حضرت ام هانی رضي الله عنها لیور وو چه ترهغه وخته پورې په حالت دکفر کښې وو.(٢)

**چاته دَ ښځې دَ امان ورکولوحکم:** په مذکوره روایت کښې ام هانی رضي الله عنها فرمائی: ((قد أجرته فلان بن هبیرة)) په دې باندې نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ((قد أجرنا من أجرت یا أم هانی)) حضورپاك دَ ام هانی رضي الله عنها پناه (یعنی غیرمسلم ته دَ امان ورکولومعامله) په ځائې اوساتله. دلته دا خبره نه ده چه دَ روميې امان صحیح نه وو په دې وجه حضورپاك پناه ورکړه (یعنې امان نې ورکړو) بلکه دَام هانی رضي الله عنها دَ امان ورکولوسره امان شوې وو حضورپاك دَهغې دَ تسلئی دپاره اوفرمائیل چه چاته تا امان ورکړې هغه ته مونږ هم امان ورکړو.

فقه حنفی اوجمهور فقهاء مذهب هم دغه دې که یوکافرته یومسلمان پناه ورکړه نوهغه به شرعًا په

(١) عمدة القاري: ٩٤/٤ التوضيح لابن ملقن: ٢٨٨/٥ أوجز المسالك: ٢٣١/٣-٢٢٩.

(٢) أنوارالباري: ١٠١/١١.

امن کښې کيږي سره دَدې که هغه ته يوغلام امن ورکړې وي اويايوې ښځې يا (عقل مند) بچي، دَهغه دَ قتل کولوهيڅوك حق نه لري. که چرې دَهغه قتل کول مقصود وي نو اول به دَ نقضِ امان اعلان کول وي دَهغې نه پس به دَهغه قتل جائز کيږي.
البته دَمالکيه نه دَ ماجشون قول دې چه ښځه غلام او ماشوم که په شروع کښې چاته امان ورکړي نودا جائزنه دی خو که چرې دا امان ني ورکړو نوپوره کولې به شي البته امام ته به اختياروي چه دا باقي ساتي اوکه نه ساتي.([1])

**قوله: وذلك ضحى**: دَروايت په آخر کښې ام هاني ﷞ فرمائي «وذلك ضحىً» چه دا دَ چاشت وخت وو.

**دَ ذلك مشار اليه**: ذلك اسم الاشاره دې دَدې مشار اليه کښې دوه احتماله دی: يو الصلاة (کوم چه حضورپاك اته رکعته اداکړه) دويم وخت. يعنی کوم وخت چه حضورپاك اته رکعته اداکړه هغه دَ چاشت وخت وو.([2])

**قوله: ضحى**: دا لفظ په دوو طريقوباندې لوستلې شي يو ضاد په ضمه سره اوآخرکښې الف مقصوره سره يعنی الضحى. او دويم دضادفتحه سره او الف مده سره يعنی الضحاء الضحى (بالضم والقصر) دَ نمر دَ راختو نه پس دَ ورځې دَ شروع وخت ته وائي.
اوالضحاء (بالفتح والمد) هغه وخت ته وائي چه کله نمر دَ آسمان څلورمې حصې پورې اوچت شي دا اودَدې نه پس دَ زوال پورې وخت مراد دې.([3]) دې نه علاوه دَضحىٰ په تشريح کښې نور هم اقوال دی کوم چه امهات کتب اللغة کښې کتلې شي.

**دَ فتح مکې په موقع باندې نبي کريم ﷺ کوم يو مونځ اداکړې؟**: په کومه ورځ چه مکه فتح شوه هغه ورځ باندې نبی کريم اته رکعته ادا کړل دَ چاشت وخت وو. په دې وجه په دې موقع باندې دا اختلاف پيدا شو چه دا مونځ دَ چاشت مونځ وو که دَ فتح؟ يعنی دَ فتح په خوشحالئی کښې دَ شکرانې مونځ.
چنانچه په دې باره کښې دَ علماؤ درې اقوال دې: يودا چه حضورپاك دَ چاشت مونځ اداکړو. بل قول دا دې چه دا رکعتونه دَ صلاة الفتح وو نه چه دَ چاشت. دريم قول دادې چه حضورپاك په دغه جنگ کښې دَ شپې پاتې کيدونکی مونځ قضاء کړې وو ليکن دا قول مرجوح او ضعيف دې.
ذلك ضحى نه رومبی فريق استدلال کړې دې چه دا اداکيدونکی رکعتونه دَ چاشت رکعتونه وو. ليکن په دې باره کښې دَ دويم فريق وينا ده چه په دې جمله باندې خود چاشت دَ مونځ هيڅ دلالت نه کيږي په دې وجه چه ام هانی ﷞ دَ وخت خبر ورکړې دې نه چه دَمونځ. دَ فريق ثاني وينا ده چه دا اته رکعته مونځ دَ فتح سنت وو.([4]) دَدې تائيد دَمسلم شريف دَ دې روايت نه هم کيږي په کوم کښې چه ام

---

[1])عمدة القاري: ٩٥/٤الموسوعة الفقهية: ٢٣٥/٦بدائع الصنائع کتاب السير فی شرائط أمان: ١٦/٩ ٤الجوهرة النيرة کتاب السير على من يجب الجهاد التاج والإکليل کتاب الجهاد فصل فی مايحرم فی الجهاد: ٣٦٠/٣الفواکة الدوانی فی أحکام الجهاد: ٨٩٠/٢المدونة الکبری فی أمان المرأة: ٥٢٥/١شرح مختصر خليل: ١٢٣/٣تحفة الأحوذي: ١٩١/٤عارضة الأحوذي: ٥٦/٤ أوجزالمسالک: ٢٣١/٣.

[2]) عمدة القاري: ٩٥/٤ إرشادالساري: ١٧/٣.

[3]) أوجزالمسالک: ٢١٩/٣مرقاة المفاتيح: ٣٥١/٣النهاية فی غريب الحديث والأثر: ٧٢/٢ معجم الصحاح ص: ٦١٥.

[4]) أوجزالمسالک کتاب قصر الصلاة فی السفر: ٢٣٢/٣بذل المجهود: ٥١٨/٥ مرقاة المفاتيح: ٣٥٢/٣-٣٥١ الحل المفهم لصحيح مسلم: ١٨٥/١.

هانی رضی الله عنها فرمانی چه دَ چاشت مونځ حضورپاک نه دي نه وړاندي اداکړی اونه ددي نه پس.(۱)

اودَ ابن قیم رحمه الله دَ قول مطابق حضرت خالد رضی الله عنه دَخپلو بعض فتوحاتو په موقع باندي صلاة الفتح ادا کړي.(۲)علامه طبری رحمه الله په خپل تاریخ کښي دَامام شعبی رحمه الله نه روایت کړي دي چه حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه کله حیرة فتح کړو نوهغه وخت ئی صلاة الفتح اته رکعته اوکړل اوددي په مینځ کښي ئی دَ سلام په ذریعه فصل اونه کړو.(۳)

علامه سهیلی رحمه الله لیکلی دی چه دَعلماؤ په نیز دا مونځ صلاة الفتح په نوم سره مشهور دی. أمراء چه به کله یو ښار فتح کولو نودا مونځ به ئی اداکولو او نور فرمانی دَدي مونځ په سنتوکښي داهم دی چه په دي کښي په جهرسره قرآءت اونه کړي شی اوددي مونځ دپاره دلیل دَ حضورپاک دَ فتح مکه په موقع باندي دَمونځ اداکول دی.(۴)

ابن جریر رحمه الله فرمانی چه کله مدائن فتح شو نوحضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه دَ کسری په ایوان کښي دا مونځ اداکړو. په دي کښي اته رکعته وو دَ کومي په مینځ کښي چه هغوی فصل اونه کړو.(۵)

قاضی عیاض رحمه الله فرمائی په ظاهره دَام هانی رضی الله عنها په دي حدیث کښي په دي خبره باندي دلالت نشته دي چه حضورپاک دَ چاشت مونځ اداکړو په دي کښي خوصرف دَ مونځ دَ اداکولو وخت ظاهر کړي شوي دي.(۶)

ددي په مقابله کښي په سنن ابوداؤد کښي دکریب په طریق باندي دَام هانی رضی الله عنها روایت ذکرکړي شوي دي په کوم کښي چه دی حضورپاک دَچاشت اته رکعته مونځ اداکړو.(۷) اودَمسلم کتاب الطهارة کښي دَابومرة په طریق سره یو روایت کښي دي حضورپاک دَ چاشت اته نوافل اداکړه.(۸) اودَ ټولو نه زیات صریح هغه روایت دي کوم چه ابن عبدالبر رحمه الله التمهید کښي نقل کړي دي په کوم کښي چه دی حضورپاک اته رکعته مونځ اداکړو.(۹)

**دَ چاشت د مونځ حکم:** دَچاشت مونځ دَاحنافو په نیزمستحب دي لکه چه علامه شامی رحمه الله لیکلی دی: «وندب أربع فصاعداً في الضحى على الصحيح من بعد الطلوع إلى الزوال، ووقتها المختار بعد ربع النهار» دَ صحیح قول مطابق دَنمر دَ راختونه واخله تر نمر دَ زوال پوري څلور یا دَ څلورو نه زیات نوافل کول مستحب دی اوبهتر اوخوښ کړي شوي وخت ددي مونځ دپاره څلورمه حصه دَ ورځ دَ وتلونه پس دي.(۱۰)

دَ چاشت دمونځ په حکم کښي دَ علماؤ زبردست اختلاف دي. په دي باره کښي دَ فقهاؤ اومحدثینو شپږ اقوال دی دکوم وضاحت اودلائل دَ ائمه اربعه مذاهب اوقول راجح باندي بحث په متعلقه مقام

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الصلاة رقم الحدیث:۷۲۰.

(۲) زادالمعاد: ۳۵٤/۱.

(۳) تاریخ الرسل والملوک: ۳۱۹/۲.

(۴) سبل الهدی الرشاد: ٤۰۱/۵شرح المواهب للزرقانی: ۳۲۶/۲فتح الباری: ۷۰/۳.

(۵) تاریخ الرسل والملوک حدیث المدائن القصوی التی کان فیها منزل کسری: ٤۶٤/۲.

(۶) إکمال المعلم: ۶۱/۳زادالمعاد: ٤۱۰/٤فتح الباری:۷۰/۳.

(۷) سنن ابی داؤد کتاب الصلاة باب صلاة الضحی رقم الحدیث: ۱۲۹۱.

(۸) صحیح مسلم کتاب الحیض باب التستر عندالمغتسل بثوب وغیره رقم الحدیث: ۳۳۶.

(۹) التمهید لمحمدبن شهاب الحدیث الخامس والثلاثون:۱۳۶/۸.

(۱۰) ردالمختار مع الدرالمختار کتاب الصلاة سنة الضحی: ٤۶۵/۲.

باندې کولې شي.(١)

**داشراق او چاشت مونځ هم يو دې که جداجدا؟** :دويم بحث په دې ځائې کښې دادې چه دَ چاشت مونځ اودَ اشراق مونځ هم دَ يو مونځ دوه نومونه دى که دا دواړه جدا جدا دى؟ په دې باره کښې به تفصيلى بحث په خپل مقام باندې راځى. خلاصه داده چه دَ فقهاء او محدثينو دَ ظاهرى کلام مطابق دا دواړه مونځونه جدا جدا نه دى بلکه هم يو مونځ دې. ځکه چه فقهاؤ دَدې دواړو مونځونو دپاره هم يو وخت ذکرکړې دې يعنى دَ نمر دَ راختونه تر نمر دَ زوال پورې. ليکن معتمد اومختار قول دادې چه دا دواړه جدا جدا مونځونه دى.(٢)

ملاعلى قارى رحمه الله په شرح الشمائل کښې ليکلى دى تحقيق دادې چه دَ چاشت دَمونځ وخت هغه وخت شروع کيږى کله چه دکراهت وخت ختم شى اودَدې مونځ آخرى وخت ترزوال پورې وى اوکوم مونځ چه ددغه وخت په شروع کښې اداکولې شي هغې ته دَ اشراق مونځ وائى.(٣)

شيخ الحديث مولانا محمدزکريا کاندهلوى رحمه الله خصائل النبوى شرح شمائل ترمذى کښې ليکلى دى دَ فقهاؤ او محدثينو په نيز دَمکروه وخت دَوتلونه پس ترزوال پورې ټول ته صلوة الضحى ونيلې شى. ليکن دَ صوفياؤ په نيز دا دوه مونځونه دى يو ته دَ اشراق مونځ وائى او بل ته دَ چاشت مونځ. دَ ورځې دَ څلورمې حصې پورې وخت ته دَ اشراق وخت وائى او دَ څلورمې حصې نه پس ترزوال پورې دَ چاشت وخت دې.(٤)

## استنباط احکام اوفوائد

① دَ مذکوره حديث نه يوه داخبره معلومه شوه چه دَ يوسړى دَپاره دَ غسل په وخت په خپله يوه محرم ښځه باندې پرده کول جائز دى.

② داهم معلومه شوه چه محرم ښځه خپل رشته دار سړى ته سلام کولې شى.

③ داهم معلومه شوه چاته دَ پردې نه شاته جواب ورکول جائز دى.

④ اوداهم معلومه شوه که څوك پيژندګلوکول غواړى نو په جواب کښې صرف "زه" نه دى ونيل پکار بلکه په خپل هغه نوم باندې خپله پيژندګلو کول پکار دى کوم چه مشهور وى که هغه په نوم وى که په کنيت سره وى اوکه په لقب سره.

⑤ دا هم معلومه شوه چه دَ راتلونکى په استقبال اواعزاز کښې مرحبا ونيل پکاردى.

⑥ اوداهم معلومه شوه چه دَ چاشت اته رکعته مونځ مستحب دې.

⑦ اودَدويم قول مطابق دَ صلاة الفتح استحباب هم معلوم شو.

⑧ اوداهم معلومه شوه که يوه ښځه يوغيرمسلم ته امان ورکړى نودَ هغې امان ورکول جائز دى.

⑨ اوداهم معلومه شوه چه ميلمه په کورېه کښې ياکوربه په ميلمه کښې چه کوم ښه صفات اووينى نو هغه دې نورو ته اورسوى.(٥) والله اعلم بالصواب.

---

(١) أوجزالمسالک:٣/٢٢١-٢٢٠الحل المفهم لصحيح مسلم: ١/١٨٦-١٨٥فتح البارى:٣/٧٠بذل المجهود: ٥/٥١٣.

(٢) أوجزالمسالک:٣/٢٢٢ بذل المجهود: ١/٥١٦ الحل المفهم لصحيح مسلم: ١/١٨٦أنوارالبارى: ١١/١٠٠.

(٣) جمع الوسائل فى شرح الشمائل: ٢/٨٥.

(٤) خصائل نبوى ص: ٣١٩.

(٥) شرح الکرمانى: ٤/١٧التوضيح لابن ملقن کتاب الصلاة: ٥/٢٨٨-٢٨٧عمدة القارى: کتاب الصلاة: ٤/٩٥.

## الحديث الخامس

[٣٥١] - حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوسُفَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ سَائِلًا سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّلَاةِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَوَلِكُلِّكُمْ ثَوْبَانِ» (١) [٣٥٨]

**ترجمه:** دَحضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې چه يو سائل دَ نبى كريم ﷺ نه تپوس اوكړو چه په يو كپړه كښې مونځ ادا كول جائز دى؟ نبى كريم ﷺ هغه ته اوفرمائيل آيا تاسو كښې هريو كس سره دوه كپړې وى؟ (يعنى په يوه كپړه كښې مونځ ادا كول جائز دى).

### تراجم رجال

**عبدالله بن يوسف:** دا ابومحمدعبدالله بن يوسف تنيسى كلاعى دمشتى رحمه الله دې. دَدوى احوال كتاب بدءالوحى دويم حديث او كتاب العلم باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب كښې تيرشوى دى. (٢)

**مالك:** دا ابوعبدالله مالك بن انس الاصبحى المدنى رحمه الله دې. دَدوى حالات كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن كښې تيرشوى دى. (٣)

**ابن شهاب:** دَدوى پوره نوم ابوبكر محمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب بن عبدالله الزهرى المدنى رحمه الله دې. دَدوى تفصيلى حالات كشف البارى رومبې جلد كتاب بدء الوحى دريم حديث لاندې تيرشوى دى. (٤)

**سعيدبن المسيب:** داسعيدبن المسيب بن حزن بن ابى وهب قرشى مخزومى رحمه الله دې. دَدوى حالات كتاب الإيمان باب من قال: إن الإيمان هوالعمل كښې تيرشوى دى. (٥)

**ابوهريرة:** دَحضرت ابوهريره ﷺ تذكره كتاب الإيمان باب أمور الإيمان كښې تيره شوې ده. (٦)

### شرح الحديث

**قوله: أن سائلا:** په دې روايت كښې دى چه يوسائل دَ نبى كريم ﷺ نه سوال اوكړو، امام طحاوى رحمه الله دَ حضرت ابوهريره ﷺ روايت ذكركړې دې «قال: قام رجل فقال: يارسول الله! أونصلي في ثوب واحد؟ قال: نعم، فقال: أوكلكم يجد ثوبين؟» (١)

---

(١) أخرجه البخاري في باب الصلاة في القميص والسراويل والبنان رقم الحديث ٣٦٥ ومسلم في كتاب الصلاة باب الصلاة في ثوب واحد رقم الحديث: ٥١٥ وأبوداؤد في كتاب الصلاة باب جماع أثواب مايصلى فيه رقم الحديث: ٢٢٥ والنسائي في كتاب الصلاة باب الصلاة في الثوب الواحد رقم الحديث: ٧٦٤ والمؤطا في كتاب الصلاة باب الرخصة في الصلاة في الثوب الواحد رقم الحديث ٣٠ جامع الأصول كتاب الصلاة رقم الحديث: ٣٦٣٥، ٤٥٢/٥.

(٢) كشف البارى: ٢٨٩/١، ١١٣/٤.

(٣) كشف البارى: ٨٠/٢.

(٤) كشف البارى: ٣٢٦/١.

(٥) كشف البارى: ١٥٩/٢.

(٦) كشف البارى: ٦٥٩/١.

او ابن شیبه رحمه الله چه کوم روایت ذکرکړي دي په هغې کښې دي: «قال: سئل النبي صلى الله عليه وسلم عن الصلاة في الثوب الواحد؟ فقال: أولكلكم ثوبان؟» [۲]
د دواړو روایاتو مفهوم هم هغه دي کوم چه د حدیث باب وو. بهرصورت د سائل نوم معلوم نه دي البته علامه سرخسی رحمه الله په المبسوط کښې د هغه نوم ثوبان ذکرکړي دي. [۳]

**قوله: أولكلكم ثوبان؟:** همزه استفهام د پاره دي. علامه کرمانی فرمائی چه همزه نه پس واؤ عاطفه دي. بیا که چرې دا سوال اوکړي شی چه د دغه واؤ په ذریعه په څه باندې عطف اچولې شوې دي؟ نو زه به وایم چه دلته معطوف علیه محذوف دي د دې تقدیر «ألت سائل عن مثل هذا الظاهر به شی. د دې معنی به داشی چه د دې په شان واضح اوښکاره سوالونو باره کښې خونه سوال کولې شی او نه تاسو سره دوه دوه کپړې دی. یعنی استفهام په دې مقام باندې د قرینې د وجې د نفی فائده ورکوي. [۴]
لفظ سره د دې چه د استفهام دي لیکن دلته نبی کریم ﷺ د هغوی حال پیژندلو د وجې نه چه هغوی سره خو یا کپړې وی نه یابیا تنګې وی هغه ته خبر ورکوی لکه چه داسې وائی چه کله ستاسو حال دادې چه په تاسو کښې چاسره هم دوه کپړې نه وی او مونځ ادا کول په تاسو باندې فرض هم دی نو پوهه شئ چه ستاسو د پاره هم په یوه کپړه کښې مونځ ادا کول جائز دی. [۵]
دا صیغه صیغه د استفهام ده لیکن د دې معنی د. تقریر او اخبارده. کومه چه د دې د حال نه معلومیدله. د دې په ضمن کښې نبی کریم ﷺ هغوی ته اجازت ورکړو. [۶] علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه دا لفظ خود استفهام دې لیکن د دې معنی د اخبار ده چه نبی کریم ﷺ د هغوی ظاهری حال ته په کتلوسره خبر ورکړو. د دې کلام په ضمن کښې حضورپاك فتویٰ هم ورکړه چه کله په تاسو باندې د ستر پټول واجب دی او د مونځ ادا کول هم په تاسو باندې لازم دی او دوه دوه کپړې هم نشته نو ولې تاسو دا خیال اونه کړو چه هم په یوه کپړه کښې مونځ کول جائز دی. [۷]
علامه طحاوی رحمه الله فرمائی که چرې مونځ کول په یوه کپړه کښې مکروه وې نو د دغه سړی د پاره به هم مکروه وو چاسره چه هم یوه کپړه ده خکه چه چاسره دوه کپړې وی د هغه د پاره په یوه کپړه کښې مونځ اداکولوحکم هم هغه دې کوم چه د هغه سړی د پاره دې چه د یوې کپړې نه علاوه نور څه نه لری. [۸]

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د دې حدیث ترجمة الباب سره مطابقت ښکاره دی. خکه چه په دې حدیث کښې په یوه کپړه کښې د مونځ کولوباره کښې سوال کړې شوې دې. د کوم جواب چه دا ورکړې شو چه مونځ هم په یوه کپړه کښې اداکول جائز دی. [۹]

---

[۱] شرح معانی الآثار باب الصلاة فی الثوب الواحد رقم الحدیث: ۲۰۶۱.
[۲] المصنف لابن أبی شیبة فی الصلاة فی الثوب الواحد رقم الحدیث: ۳۱۸۲.
[۳] المبسوط للسرخسی کتاب الصلاة کیفیة الصلاة: ۳۳/۱.
[۴] شرح الکرمانی: ۱۷/۴.
[۵] عمدة القاری: ۹۶/۴ التوضیح لابن ملقن: ۲۸۹/۵.
[۶] إکمال المعلم شرح مسلم: ۲۳۹/۲.
[۷] معالم السنن للخطابی رقم الحدیث: ۲۰۱، ۱۵۶/۱
[۸] شرح معانی الآثار رقم الحدیث: ۲۲۳۳، ۳۸۰/۱.
[۹] عمدة القاری: ۹۵/۴.

شیخ الحدیث مولانا محمدزکریا کاندهلوی رحمه الله فرمايي چه «أولكلكم ثوبان» سره د دې خبرې طرف ته اشاره کړې شوې ده چه دامسئله په غیرمحل کښې واقع شوې ده. څکه چه کوم وخت نبی کریم ﷺ هغه خلق په مونځ کولوسره اولیدل چاچه یوه کپړه اچولې وه نوبیاهم حضورپاك هغوی منع نه کړل نودا دحضورپاك دهغوی په فعل باندې تقریر شو لهذا ددې نه پس په دې باره کښې دسوال کولو هیڅ معنی باقی نه پاتې کیږي.(۱)

# ۵-باب: إِذَاصَلَّى فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ فَلْيَجْعَلْ عَلَى عَاتِقَيْهِ

داباب دې په هغه باره کښې چه کله څوك سړې په یوه کپړه کښې مونځ کوي نوهغه له پکاردي چه دهغې څه حصه په خپله اوږه باندې واچوي. بعض نسخو کښې «علی عاتقه» مفرد لفظ سره دې.(۲)

**دعاتق نه څه مراددي؟** دادضرب یضرب نه د اسم فاعل صیغه ده. دسټ اواوږې په مینځ کښې خانی ته عاتق وائی. دادځادر کیخودو خائی وی. مذکراومؤنث دواړه شان استعمالیږي ددې جمع عواتق ده.(۳)

## الحدیث الأول

[۳۵۳/۳۵۲]-حَدَّثَنَا أَبُوعَاصِمٍ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَايُصَلِّي أَحَدُكُمْ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ لَيْسَ عَلَى عَاتِقَيْهِ شَيْءٌ»(۴)[۳۵۸]

**ترجمه:** دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې په کوم کښې چه هغوی فرمائی چه نبی کریم ﷺ ارشاد فرمائیلې چه تاسو کښې دې څوك په داسې کپړه کښې مونځ نه کوي په کومه کښې چه څه دهغه په اوږه نه وي.

## تراجم رجال

**ابوعاصم:** دا ابوعاصم ضحاك بن مخلد بن ضحاك بن مسلم الشیبانی البصری رحمه الله دې. ددوی حالات کتاب العلم باب القراءة والعرض علی المحدث کښې تیرشوی دی.(۵)

---

(۱) الکنزالمتواری: ۳۳/۴.

(۲) شرح الکرمانی: ۱۷/۴عمدة القاري: ۹۷/۴.

(۳) القاموس المحیط ص: ۱۷۱ المحکم: ۱/۱۷۹المغرب فی ترتیب المعرب: ۲۴۷/۲تاج العروس: ۱۲۳/۲۶لسان العرب:۱/۲۳۴عمدة القاري: ۹۷/۴.

(۴) رواه البخاري فی هذا الباب ومسلم فی کتاب الصلاة باب الصلاة فی الثوب واحد رقم الحدیث: ۵۶۶ وأبوداؤد فی کتاب الصلاة باب جماع أثواب مایصلی فیه رقم الحدیث: ۶۲۶ والنسائی فی کتاب الصلاة باب صلاة الرجل فی ثوب واحد لیس علی عاتقه منه شئ رقم الحدیث ۷۷۰ جامع الاصول کتاب الصلاة النوع الثانی فی الثوب الواحد وهیئة اللبس رقم الحدیث:۳۶۳۳، ۴۵۲/۵.

(۵) کشف الباري: ۱۵۶/۳.

**مالک:** دا ابوعبدالله مالك بن انس المدني رحمه الله دي. دَدوی حالات کتاب الایمان باب من الدین الفرار من الفتن کښې تیرشوی دی.[۱]

**ابي الزناد:** دا ابوالزناد عبدالله بن ذکوان المدني رحمه الله دي. دَدوی حالات کتاب الایمان باب حب الرسول من الایمان کښې تیرشوی دی.[۲]

**عبدالرحمن الاعرج:** دا ابوداؤد عبدالرحمن بن هرمز مدني قرشي رحمه الله دي. دَدوی حالات هم کتاب الایمان باب حب الرسول من الایمان کښې تیرشوی دی.[۳]

**ابوهريرة:** دَحضرت ابوهریره رضي الله عنه حالات کتاب الإیمان باب أمور الإیمان کښې تیرشوی دی.[۴]

## شرح حدیث

**قوله: لایصلي أحدکم:** دَ حدیث مبارك په دې جمله کښې یصلي دَ یاء په اثبات سره دې خکه چه په دې باندې لاي نفي داخل ده لیکن دَدې معنی دَ نهی ده "چه په تاسو کښې دې هیڅوك مونځ نه کوی".

خو دارقطني په غرائب المالك کښې لایصل لفظ سره روایت ذکرکړې دې دې خائې کښې به لا ناهیه وی کوم چه یاء ساقط کړه.[۵]

**قوله: لیس علی عاتقیه شئ:** داجمله حالیه ده دَ واؤنه بغیر. علامه عیني رحمه الله فرمائي په دې قسم جملو کښې واؤ ترك کول جائز دی.[۶]

**په اوږه باندې دَ څادر اچولونه بغیردَ مونځ کولوحکم:** علامه کرماني رحمه الله فرمائي چه دا نهی تحریمي ده که تنزیهي؟ بیانې دَدې جواب ورکولوسره اوفرمائیل زه وایم چه دَنهی ظاهر خو دَنهی تحریمي تقاضه کوی لیکن دَدې دَترك په جواز باندې اجماع منعقده ده (یعنې که یوسړې په یوه کپړه کښې مونځ ادا کړی اودَ دغه کپړې یوه حصه په اوږه باندې وانچوی نودَهغه مونځ به صحیح شي) خکه چه مقصود سترعورت دې په کومه طریقه هم چه داحاصل شي جائز دې.[۷]

علامه عیني رحمه الله فرمائي چه دَعلامه کرماني رحمه الله په دې باندې دَ اجماع دعوی کول صحیح نه دی خکه چه امام احمد رحمه الله اودَمحمدبن علي نه دَعدم جواز قول نقل دې. دَدې نه علاوه امام ترمذي رحمه الله هم خلاف ذکرکړې دې. امام طحاوي رحمه الله دَدې موضوع متعلق مستقل باب قائم کړې دې. هغوی دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما طاؤس رحمه الله او نخعي رحمه الله هم خلاف ذکر کړې دې. بیادَ تولو احادیثو ذکر کولو نه پس دا نتیجه رااوبشکلې ده چه اصل خو هم دغه دې چه دَ څادر دواړه پلونه په اوږو باندې اچولو سره مونځ اداکړې شي. دا هغه وخت دې چه کله څادر دومره لوئي وی چه دا په اوږو باندې واچولې شي

---

[۱] کشف الباري: ۸۰/۲.
[۲] کشف الباري: ۱۰/۲.
[۳] کشف الباري: ۱۰/۲.
[۴] کشف الباري: ۶۵۹/۱.
[۵] شرح الکرماني: ۱۷/۴فتح الباري: ۶۲۱/۲عمدة القاري: ۹۸/٤.
[۶] عمدة القاري: ۹۸/٤ارشادالساري: ۱۸/۲.
[۷] شرح الکرماني: ۱۷/٤.

اوکه چرې څادر وړوکې وي نوبيا به حکم دا وي چه دا دَ لنګ په شان اوتړلې شي.(۱)
شيخ تقي الدين سبکي رحمه الله دَ امام شافعي رحمه الله طرف ته هم دَ وجوب قول منسوب کړې دې مګر په کتب شافعيه کښې راجح قول دَدې خلاف دې.(۲)
علامه خطابي په عدمِ وجوب باندې دَدې حديث نه استدلال کړې دې په کوم کښې چه حضورپاک په يوه کپړه کښې مونځ ادا کړو په داسې حال کښې چه دَهغه کپړې يو پلو په بعض ازواج مطهرات باندې پروت وو اوهغه اوده وه. دَکوم نه چه معلوميږي چه نه خو کپړه دومره لويه وه چه هغه په اوږو باندې واچولې شي اونه دومره وړه وه چه هغه دَ لنګ په توګه اوتړلې شي. حافظ صاحب رحمه الله فرمائي چه په دې استدلال کښې تامل دې.(۳)
په ظاهر دَامام بخاري رحمه الله په مذهب کښې تفصيل دې چه کپړه لويه وي نو په اوږو باندې اچول واجب دي. اوکه چرې تنګه وي نو واجب نه دي. هم دَدې تفصيل طرف ته اشاره کولودپاره امام بخاري رحمه الله روانديې باب «إذاكان الثوب ضيقا» قائم کړې دې. (۴)
علامه عيني رحمه الله فرمايي چه معلوميږي دَ امام بخاري رحمه الله مذهب دَامام احمد رحمه الله دَ مذهب نه مختلف دې. هغه داسې چه امام احمد رحمه الله صرف اوږې پټول دَ مونځ شرط يا واجب ګرځوي امام بخاري رحمه الله او ابن المنذر رحمه الله صرف دَ وجوب قائل دي اوکپړه دَتنګيدو په وخت خودَ وجوب هم قائل نه دي.(۵)
امام مسلم رحمه الله دَابن عيينه رحمه الله په طريق سره چه کوم روايت ذکرکړې دې په هغې کښې «ليس على عاتقيه شئ» جمله کښې شئ نه وړاندې منه اضافه ده.(۶)
اودَدې جملې نه مراد دَادې چه کله څادر ارت وي نودغه څادر دَ لنګ په شکل په ملا يا کوناتو باندې مه اچوئي بلکه دَ څادر دَ دواړو پلونو په ذريعه اشتمال دې اوکړې يعنې دَ څادر دواړه پلونه دې په اوږو باندې واچوې ځکه چه په دې طريقه سره دَ بدن دَ پورتنني حصې ستر هم اوشي سره ددې چه دغه حصه په ستر کښې داخل نه ده. بل په دې طريقه کښې ستر عورت باندې قدرت هم زيات په مضبوطه طريقه سره حاصليږي.(۷)
**دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَمذکوره حديث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې چه په دواړو کښې څادر په اوږو باندې دَ اچولوذکردې دَ مانځه په حالت کښې.(۸)

(۱) شرح معانی الآثار کتاب الصلاة باب فی الثوب الواحد رقم الحديث:۲۰۹۷، ۳۸۳/۱.
(۲) الحاوی کتاب الصلاة باب إذا صلت الأمة مکشوفة الرأس: ۱۷۳/۲ المجموع شرح المهذب: ۱۷۴/۳.
(۳) التوضيح: ۲۹۱/۵فتح الباری: ۶۲۱/۲عمدة القاری: ۹۸/۴.
(۴) فتح الباری: ۶۲۱/۲عمدة القاری: ۹۷/۴.
(۵) عمدة القاری: ۹۸/۴.
(۶) صحيح مسلم کتاب الصلاة باب الصلاة فی ثوب واحد رقم الحديث: ۵۱۶.
(۷) فتح الباری: ۲/۶۲۱.
(۸) عمدة القاری: ۹۸/۴.

## الحديث الثاني

[٣٥٣]-حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، قَالَ: سَمِعْتُهُ- أَوْ كُنْتُ سَأَلْتُهُ- قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: أَشْهَدُ أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَنْ صَلَّى فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ فَلْيُخَالِفْ بَيْنَ طَرَفَيْهِ»(١)

**ترجمه:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلې چه كوم سړې په يوه كپړه كښې مونځ ادا كوى نوهغه له پكاردى چه دَخپلې كپړې دواړه سرونه په اوږو باندې واچوى او مخالفت پيدا كړى (يعنى يو سر په دويمه اوږه او دويم سر په رومبۍ اوږه باندې واچوى).

## تراجم رجال

**ابونعيم:** دا ابونعيم الفضل بن دكين الملائى الكوفى رحمه الله دې. دَدوى احوال كتاب الإيمان باب فضل من استبرألدينه كښې تيرشوى دى.(٢)

**شيبان:** دا ابومعاويه شيبان بن عبدالرحمن تميمى نحوى بصرى رحمه الله دې. دَدوى حالات كتاب العلم باب كتابة العلم دَدويم حديث لاندې تيرشوى دى.(٣)

**يحيىٰ بن كثير:** دا مشهور امام يحيى بن كثير طائى يمامى رحمه الله دې. دَ دوى تذكره هم كتاب العلم باب كتابة العلم دَدويم حديث لاندې تيره شوى ده.(٤)

**عكرمة:** دا ابوعبدالله عكرمه مولى عبدالله ابن عباس مدنى رحمه الله دې. دَدوى احوال كتاب العلم باب قول النبى صلى الله عليه وسلم اللهم علمه الكتاب كښې تيرشوى دى. (٥)

**ابوهريرة:** دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات كتاب الإيمان باب أمور الإيمان كښې تيرشوى دى.(٦)

## شرح حديث

**قوله: سمعته، أوكنت سألته:** دَدې حديث راوى يحيىٰ بن كثير رحمه الله ته دَحضرت عكرمه رحمه الله نه سماع يادهغه نه سوال كولوباره كښې شك دې. يعنى اول هغوى اوونيل چه ما دَعكرمه نه واوريده بيائى اوونيل چه ما دَهغه نه سوال اوكړو چنانچه مفهوم به هم دا جوړيږى چه ما دَعكرمه نه واوريده دَخپل تپوس كولونه پس يادتپوس نه بغير(٧) دسنن أبى داؤد په تخريج كړېشوې روايت كښې دَدې شك نه

(١) سنن أبوداؤد كتاب الصلاة باب جماع أثواب مايصلى فيه رقم الحديث: ٦٢٧جامع الأصول كتاب الصلاة النوع الثاني رقم الحديث: ٣٦٣٤، ٤٥٢/٥.

(٢) كشف البارى: ٦٦٩/٢.

(٣) كشف البارى:٢٦٣/٢.

(٤) كشف البارى:٢٦٣/٢.

(٥) كشف البارى:٣٦٣/٣.

(٦) كشف البارى: ٦٥٩/١.

(٧) شرح الكرمانى: ١٨/٤فتح البارى: ٦٢١/٢عمدة القارى: ٩٩/٤.

بغیرعنعنة سره مضمون دې یعنی(یحیی عن عکرمة عن أبی هریرة سان أبی داؤد کتاب الصلاة باب جماع أبواب ما یصلی فیه رقم: ٦٣٧)».

**قوله: أشهد أنی سمعت:** دحضرت ابوهریره رضی الله عنه دې الفاظوسره دهغوی د ذهانت دهغوی د حافظې او استحضار باندې اشاره ده.[۱]

**قوله: فی ثوب واحد:** ثوب صفت واحد صرف دکشمیهنی په روایت کښې دې. ددوی نه دعلاوه په روایت کښې واحد نه بغیر صرف ثوب ذکر دې.[۲]

**قوله: فلیخالف بین طرفیه:** مراد دادې چه دکپړې په دوارو پلونوکښې مخالفت پیداکړنی. او ددې مخالفت نه مراد توشح یعنی اشتمال علی المنکبین دې. حضورپاك ددې خبرې ځکه حکم ورکړو چه د بدن پورتنئ حصه اودزینت مواضع هم په سترکښې پټ شی. علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا حکم ئې ځکه ورکړو چه دړکوع په حالت کښې څادر وغیره ښکته پرینوځی[۳] علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه د مونځ ګذار نظر د رکوع په حالت کښې په خپل ستر باندې پرینوځی.[۴]

دا امر د جمهور علماؤ په نیز داستحباب دپاره دې، تردې پورې چه که یوسړې په خپله اوږه باندې د څادر څه پلو کیخودو بغیرد مونځ ادا کړی نودهغه مونځ به صحیح شی.[۵]

یوه خبره دا هم کړې شوې ده که چرې توشح اونه کړې شی یعنی چه خپل څادر ئې په خپلو اوږو باندې وانچولو نو په مونځ کښې دکیناستو پاسیدو په وخت اوهم دغه شان د رکوع او سجدو په وخت به دغه څادر سنبالوې په دې کښې د مشغول کیدو د وجې نه ښې لاس په ګس لاس باندې د کیخودو سنت به دده نه فوت شی.[۶]

امام احمد رحمه الله ددې حدیث په ظاهر باندې عمل کولوسره دقدرت په وخت د څادر حصه په خپله اوږه باندې کیخودل شرط ګرځولې دې. هم ددوی نه یو روایت بل هم دا دې چه که چرې چاداسې اونه کړل نو دهغه مونځ به صحیح شی لیکن هغه به ګناهګار وی.[۷]

**دحدیث باب ترجمة الباب سره مناسبت:** دحدیث به ترجمة الباب سره مناسبت داسې وی چه دکپړې دواړه پلونه په دواړو اوږدوباندې مخالفت لازمی نتیجه داده چه د څادر اړخ په اوږه باندې وی اوهم دغه څیز په ترجمة الباب کښې دې.[۸]

---

[۱] شرح الکرمانی: ۱۸/٤فتح الباری:۶۲۱/۲.

[۲] فتح الباری: ۶۲۱/۲إرشادالساری: ۱۹/۲.

[۳] شرح الکرمانی: ۱۸/٤عمدة القاری: ۱۰۰/٤.

[۴] شرح ابن بطال: ۱۶/۲.

[۵] شرح الکرمانی: ۱۹/٤فتح الباری:۶۲۲/۲عمدة القاری: ۱۰۰/٤إرشادالساری: ۱۹/۳الکوثرالجاری: ۴۱/۲.

[۶] شرح الکرمانی: ۱۹/٤فتح الباری:۶۲۳/۲عمدة القاری: ۱۰۰/٤.

[۷] شرح الکرمانی: ۱۹/٤فتح الباری لابن رجب:۳۲/۲فتح الباری لابن حجر:۶۲۲/۲عمدة القاری: ۱۰۰/٤تقریر البخاری:۳۳۳/۱.

[۸] شرح الکرمانی: ۲۰/٤ عمدة القاری: ۱۰۰/٤.

# ۵- باب: إذا كان الثوب ضيقا

داباب دې په هغه باره کښې چه کله مونځ ګذارسره تنګه (وړه) کپړه وی نو هغه به څه کوی؟

ضيقًا: دَ ياء په تشديد او تخفيف دواړه شان لوستل صحيح دی. دَدواړو معنې هم يوه ده. دا صفت مشبه دی. دَدې مادې نه اسم فاعل به دَ ضائق فاعل په وزن باندې وی. البته ددې په مينځ کښې به فرق په داسې توګه وی چه ضيقًا دَ صفت مشبه کيدو دَ وجې نه په دوام او ثبوت باندې دلالت کوی او ضائقًا اسم فاعل کيدو دَ وجې نه حدوث باندې دلالت کوی (۱)

شاته ذکرشوچه کپړې په درې قسمه کيدې شي: ① لويه ② متوسط ③ قصير يعنى وړه. نوامام بخاری رحمه الله باب «الصلوة فى الثوب الواحد ملتحفًا» قائمولوسره اوخودل چه که کپړه ارته او لويه وی نو بيا دې دَ مونځ دَ پاره التحاف اوکړې شی اوکه چرې کپړه دَ دويم قسم وی يعنى متوسطوی نو دَ هغې دَپاره امام صاحب رحمه الله باب «إذا صلى فى الثوب الواحد، فليجعل على عاتقيه» قائم کولوسره اوخودل چه په دې صورت کښې به څادر داسې اچولې شی چه يو اړخ ئې په اوږه باندې وی. اوکه چرې کپړه دَ دريم قسم نه وی يعنى وړه وی نوبيا دَ مانځه دَ پاره دغه کپړه په خپلو کوناټو باندې اوتړی، ددې دپاره امام بخاری رحمه الله دا باب «إذاكان الثوب ضيقًا» قائم کړې دی.(۲)

## الحديث الأول

[۳۵۴]- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ صَالِحٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْحَارِثِ، قَالَ: سَأَلْنَا جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ الصَّلَاةِ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ، فَقَالَ: خَرَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ، فَجِئْتُ لَيْلَةً لِبَعْضِ أَمْرِي، فَوَجَدْتُهُ يُصَلِّي، وَعَلَيَّ ثَوْبٌ وَاحِدٌ، فَاشْتَمَلْتُ بِهِ وَصَلَّيْتُ إِلَى جَانِبِهِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ: «مَا السُّرَى يَا جَابِرُ» فَأَخْبَرْتُهُ بِحَاجَتِي، فَلَمَّا فَرَغْتُ قَالَ: «مَا هَذَا الِاشْتِمَالُ الَّذِي رَأَيْتُ»، قُلْتُ: كَانَ ثَوْبٌ - يَعْنِي ضَاقَ - قَالَ: «فَإِنْ كَانَ وَاسِعًا فَالْتَحِفْ بِهِ، وَإِنْ كَانَ ضَيِّقًا فَاتَّزِرْ بِهِ» (۳)

---

(۱) شرح الكرمانى: ۴/ ۲۰ عمدة القارى: ۴/ ۱۰۰.

(۲) تقرير بخارى شريف: ۲/ ۱۲۳.

(۳) رواه البخارى أطراف هذا الحديث فى الصلاة باب عقد الإزار على القفا فى الصلاة رقم الحديث: ۳۰۳ وفى باب الصلاة بغير رداء رقم الحديث: ۳۷۰ صحيح مسلم كتاب صلاة المسافرين باب الدعا فى صلاة الليل رقم الحديث: ۷۶۶ وفى كتاب الصلاة باب الصلاة فى ثوب واحد وصفة لبسه رقم الحديث ۵۱۸ وفى كتاب الزهد والرقاق رقم الحديث: ۳۰۱۰ سنن أبى داؤد كتاب الصلاة باب فى الرجل فى قميص واحد رقم الحديث ۶۳۳ وباب إذاكان الثوب ضيقا عزر به رقم الحديث: ۶۳۴ المؤطا كتاب الصلاة الجمعة باب الرخصة فى الصلاة فى الثوب الواحد رقم الحديث: ۳۰ جامع الأصول كتاب الصلاة باب فى الثوب الواحد رقم الحديث: ۳۶۳۶، ۵/ ۴۵۴.

حضرت سعید بن الحارث رحمه الله فرمائی چه ما دَحضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه نه په یوه کپړه کښې دَ مونځ کولوباره کښې تپوس اوکړو هغوی اوفرمائیل چه یوځل زه نبی کریم ﷺ سره په یوسفرکښې اووتلم. یوه شپه زه دَ خپل څه ضرورت دپاره حضورپاك ته لاړم نو ما حضورپاك په مونځ کولوسره اولیدلو. زما په بدن باندې هم یوه کپړه وه نو ما په هغې سره اشتمال اوکړو او دَحضورپاك په اړخ کښې اودریدم اومونځ مې اوکړو. کله چه حضورپاك دَ مونځ نه فارغ شو نوونی فرمائیل اې جابر! دَ شپې په وخت په کوم غرض سره راغلې؟ ما حضورپاك ته خپل ضرورت اوخودلو. کله چه زه دَ دغه امر نه فارغ شوم نو حضورپاك معلومات اوکړل چه دا اشتمال کوم ما اولیدلو دا څنګه وو؟ ما عرض اوکړو چه هم یوه کپړه وه، حضورپاك اوفرمائیل که چرې کپړه کولاؤ وی نو په هغې سره التحاف کوه اوکه کپړه تنګه وی نودَهغې نه لنګ تړه.

## تراجم رجال

<u>یحیی بن صالح:</u> دا الامام العالم الحافظ الفقیه ابو زکریا یحیٰی بن صالح الوحاظی رحمه الله دې دوی ته ابو صالح الشامی الدمشقی هم وئیلی شی اودَدوی نسب دَ حمص طرف ته کولوسره الحمصی هم وئیلې شوې دې.(۱)

**ولادت:** دَابن حبان رحمه الله دَ تحقیق مطابق دَهغوی پیدائش ۱۴۷هجری کښې شوې اودَ ابن زبر رحمه الله دَ قول مطابق ۱۳۷هجری کښې شوې.(۲)

**مقام:** ابن سعد رحمه الله دَدوی تذکره «الطبقة السابقه من الشام» کښې کړې ده.(۳)

**مشائخ و تلامذه:** دې چه دکومو حضراتو نه روایت نقل کوی په هغوی کښې مالك بن انس، سعید بن عبدالعزیز،فلیح بن سلیمان، زهیر بن معاویه، حماد بن شعیب الکوفی، سلیمان بن بلال، عفیر بن معدان،سعیدبن بشیر، سلیمان بن عطاء محمدابن مهاجر، سلمة بن کلثوم، معاویه بن سلام حبشی، اسحاق بن یحیٰی الکلبی رحمهم الله وغیره شامل دی.

اودَدوی نه روایات کونکوکښې امام بخاری، امام مسلم، ابوداؤد، ترمذی، ابن ماجه ، محمدبن یحیٰی الذهلی، احمدبن ابی الحواری، محمدبن عوف، ابن وارة، ابوامیه الطرسوسی، عثمان بن سعید الدارمی، ابوزرعه الدمشقی، یعقوب التسوی، احمدبن محمدبن یحیٰی بن حمزة، احمدبن عبدالوهاب، علی بن محمدبن عیسٰی الجکانی اودَ دوی نه علاوه کنړ تعداد شامل دې.(۴)

**دَدوی باره کښې دَ محدثینو حضراتو اقوال:** دَ دوی باره کښې یحیی بن معین رحمه الله فرمائی ثقة(۵) ابوحاتم رحمه الله فرمائی صدوق(۶)ابن حبان رحمه الله دَهغه ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې(۷)ابوعوانه

---

(۱) الکاشف ۳۶۸/۲التاریخ الکبیر:۲۸۲/۸تاریخ الإسلام للذهبی: ۱۶۳/٤.

(۲) تهذیب الکمال: ۳۷۸/۳۱إکمال تهذیب الکمال:۳۲۷/۱۲.

(۳) طبقات لابن سعد:٤٧٣/۷تقریب التهذیب: ۲۰۵/۲.

(۴) تهذیب الکمال: ۳۷۸/۳۱-۳۷۵.

(۵) الجرح والتعدیل: ۱۹٤/۹.

(۶) الجرح والتعدیل: ۱۹٤/۹.

(۷) کتاب الثقات لابن حبان: ۲۶۰/۹.

االاسفرا اينى رحمه الله فرمائى (حسن الحديث، وصاحب الرأي، وكان عديل محمد بن الحسن الفقيه الى مكة) [1] أبوزرعه الدمشقي رحمه الله فرمائى (لم يعقل -يعني- أحمد بن حنبل في يحيى بن صالح الاخيرا) [2]

سليمان بن عبدالحميد البهرانى رحمه الله فرمائى چه ما د ابواليمان رحمه الله داسې اوريدلى چه (الحسن بن موسى الأشهب) مونږ سره د حمص قاضي جوړيدوسره راغلو، هغوى اوونيل چه ماته د يوداسې سړى باره كښې اوښايه چه ثقه وى، موسر وى زه د هغه نه د خپلو معاملاتو باره كښې رائې غوارم. نو ما ورته اوونيل چه زه خود يحيى بن صالح رحمه الله نه زيات ثقه څوك نه وينم [3]

علامه ذهبى رحمه الله هغه ثقه گرځولې دې [4] ابن عدى رحمه الله هغه د شام په ثقات كښې ذكر كړې دې [5]

الخليلى رحمه الله فرمائى ((ثقة، روي عنه الأئمة)) [6] ابويحيى وائى (وهومن عندهم من أهل الصدوق والأمانة) [7]

احمدبن صالح المصري فرمائى چه يحيى بن صالح د مالك بن انس نه ديارلس احاديث روايت كړى دى مونږ دغه روايات د هغه نه علاوه د بل چانه نه دى اوريدلى. [8] احمدبن حنبل رحمه الله فرمائى چه ماته يومحدث بيان اوكړو چه يحيى بن صالح رحمه الله ونيلى كه چرې اصحاب حديث د رؤيت باره كښې لس احاديث پريږدى نوښه خبره ده. امام احمد رحمه الله فرمائى لكه چه د هغه خيال د جهميانو طرف ته دې. [9]

د څه ائمه د طرف نه په ده باندې جرح هم شوې ده اودا جرح د هغوى د عدم اتقان د وجې نه ده بلكه په هغه كښې د بدعت د موجود كيدو د وجې نه ده. [10] عقيلي رحمه الله فرمائى ((يحيى ابن صالح حمصي، جهمي)) [11]

د تهذيب الكمال په حاشيه كښې بشار عواد ليكى چه د يحيى بن صالح د تضعيف باره كښې كوم څه تير شو هغه په عقائدو او رائې كښې د هغوى د مخالفت د وجې نه دې. په دې وجه بهترين خبره هغه ده كومه چه علامه ذهبي رحمه الله په خپل كتاب النافع كښې كړې ده چه د چاباره كښې كلام كړې شوې دې هغه ثقه دې. يعنې د خپل ذات په اعتبار سره ثقه دې ليكن د هغوى د رائې اوتجهيم باره كښې كلام كړې شوې دې. [12]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه يحيى بن صالح الوحاظي الحمصي رحمه الله د امام بخارى رحمه الله د شيوخ نه دې. يحيى بن معين رحمه الله ابواليمان رحمه الله اوابن عدى رحمه الله د هغوى توثيق كړې دې او امام احمدبن

---

[1] سير أعلام النبلاء: ۱۰/٤٥٤.

[2] تهذيب الكمال: ۳۱/۳۸۰.

[3] تهذيب التهذيب: ۱۱/۲۳۰.

[4] تاريخ الإسلام للذهبي: ٦/١٦٣.

[5] تهذيب الكمال: ۳۱/۳۷۹ تهذيب التهذيب: ۱۱/۲۳۰.

[6] إكمال تهذيب الكمال: ۱۲/۳۲۷ تهذيب التهذيب: ۱۱/۲۳۱.

[7] ميزان الاعتدال: ٤/٣٨٦ إكمال تهذيب الكمال: ١٢/٣٢٧.

[8] ميزان الاعتدال: ٤/٣٨٦.

[9] ميزان الاعتدال: ٤/٣٨٦ تهذيب التهذيب: ١١/٢٣٠.

[10] سير أعلام النبلاء: ١٠/٤٥٥.

[11] تهذيب الكمال: ٣١/٣٧٩ تهذيب التهذيب: ١١/٢٣١.

[12] تهذيب الكمال: ٣١/٣٨١.

حنبل رحمہ اللہ دهغه مذمت بیانولو سره دهغه نسبت د جهمیانو طرف ته کړې دې او اسحاق بن منصور رحمہ اللہ هغه ته ((کان مرجئا)) ونیلي دي. اوالساجی رحمہ اللہ دهغوی باره کښې ((هومن أهل الصدق والأمانة)) ونیلي دي. ابوحاتم رحمہ اللہ ورته صدوق ونیلي دې. امام بخاری رحمہ اللہ د هغوی نه دوه یا درې احادیث نقل کړي دی. او د ائمه سته نه امام نسائی رحمہ اللہ نه سوا ټولو دهغوی روایات نقل کړي دی.(۱)

تحریر تقریب التهذیب کښې دی چه دې ثقه دې. امام بخاری، ابن معین، ابن عدی، ابوالیمان او ذهبی رحمهم الله هغه ثقه ګرځولي دي. ابوحاتم رحمہ اللہ د دوی نه روایت کړې دې اود دوی باره کښې ئې صدوق ونیلي دې. ابن حبان رحمہ اللہ هم دې په ثقات کښې شمیرلي دې. احمد عقیلی اوالحاکم د "الرأي" د وجې نه د دوی باره کښې کلام کړې دې اودا یو داسې تضعیف دې د کوم چه هیڅ اعتبار نشته دې.(۲)

**وفات:** دهغوی عمر د لس کم سلو کالونه زیات وو. یو جماعت دهغوی باره کښې دا ونیلی دی چه دهغوی وفات ۲۲۲هجری کښې شوې دې.(۳) ابن زبر رحمہ اللہ دا ونیلی چه دهغوی عمر د پنځه اتیا کاله وو.(۴)

**فلیح بن سلیمان:** داابویحیی فلیح بن سلیمان بن ابی المغیره خزاعی اسلمی مدنی دې. ددوی حالات کتاب العلم باب من سئل علماً وهومشتغل فی حدیثه، فأتم الحدیث ثم أجاب السائل کښې تیرشوی دی.(۵)

**سعید بن الحارث:** دا سعید بن الحارث بن ابی سعید بن المعلی رضی اللہ عنہ دې. دمدینې قاضی وو. دوی ته ابن ابی المعلی الانصاری المدنی هم ونیلی شی.(۶)

دې د جابر بن عبدالله، حضرت عبدالله بن حنین، عبدالله بن عمربن الخطاب ابوسعیدالخدری او حضرت ابوهریره رضی اللہ عنہم نه روایت کوی. اوددوی نه روایت کونکوکښې عمرو بن الحارث، فلیح بن سلیمان، محمدبن عمرو بن علقمة بن وقاص، موسی بن عبیدة الترمذی او ابویحیی الاسلمی رحمهم الله دی.(۷)

ابن معین رحمہ اللہ فرمائی مشهور(۸) یعقوب بن سفیان رحمہ اللہ فرمائی هوثقة.(۹) ابن حبان رحمہ اللہ هغه په کتاب الثقات کښې ذکرکړې دې.(۱۰) دهغوی وفات ۱۲۰هجری کښې شوې.(۱۱) دې د طبقه ثالثه نه وو.(۱۲)

---

(۱) هدی الساری مقدمه فتح الباری ص: ۶۳۵ دارالسلام.
(۲) تحریر تقریب التهذیب: ۸۸/٤.
(۳) سیرأعلام النبلاء: ٤٥٦/١٠تهذیب التهذیب: ۳۲۷/۱۱.
(۴) تهذیب الکمال: ۳۸۱/۳۱إکمال تهذیب الکمال: ۳۲۷/۱۱.
(۵) کشف الباری: ۵۵/۳.
(۶) الکاشف: ٤٣٣/١التاریخ الکبیر للبخاری: ٤٦٣/٣تقریب التهذیب: ۳٤٩/١.
(۷) تهذیب الکمال: ۳۷۹/١٠سیرأعلام النبلاء: ١٦٥/٥-١٦٤.
(۸) الجرح والتعدیل: ١٢/٤تهذیب التهذیب: ١٥/٤.
(۹) إکمال تهذیب الکمال: ٢٧٣/٥تقریب التهذیب: ١٥/٤.
(۱۰) تهذیب التهذیب: ١٥/٤.
(۱۱) سیرأعلام النبلاء: ١٦٥/٥تاریخ الإسلام للذهبی: ٥٢٤/٣.
(۱۲) تقریب التهذیب: ۳٤٧/١.

**جابربن عبدالله:** دامشهور صحابی حضرت جابربن عبدالله الانصاری رضی الله عنه دی. دَدوی حالات کتاب الوضوء باب من لم یر الوضوء الا من المخرجین من القبل والدبر کښې تیرشوی دی.[۱]

## شرح حدیث

دا روایت سعیدبن الحارث رضی الله عنه په طریق سره دَ افراد بخاری رحمه الله نه دی.[۲] دَحضرت جابر رضی الله عنه دا حدیث امام مسلم رحمه الله دَ حضرت عبادة رضی الله عنه په طریق سره یوطویل حدیث کښې نقل کړې دې، په دې کښې دی «یا جابر! إذا کان واسعًا، فخالف بین طرفیه، وإن کان ضیقًا، فاشدده علی حقویك»[۳] او امام ابوداؤد رحمه الله هم دَ عبادة بن الصامت رضی الله عنه په طریق سره هم دغه روایت ذکرکړې دې.[۴]

**قوله: خرجت مع النبی صلی الله علیه وسلم فی بعض أسفاره:** یوسائل دَ حضرت جابربن عبدالله رضی الله عنه نه سوال اوکړو چه کله مونږ کښې چاسره یوه کپړه وی نوهغه به په دغې کښې څنګه مونځ کوی؟ نودَدې په جواب کښې حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه خپله یوه قصه بیان کړه چه زه یوځل نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره په یو سفرکښې ووم. دَ بخاری په مذکوره روایت کښې دَ دغه سفر تفصیل نه دې بیان کړې شوې. لیکن دَ مسلم شریف په روایت کښې تصریح ده چه غزوة غزوة بواط وو.[۵]

**غزوة بواط:** په کوم جهاد او جنګ کښې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم پخپله ذاتی شرکت کړې وی هغې ته غزوه وائی که په هغې کښې دَ قتال نوبت راغلې وِی اوکه نه وی راغلې. دَ غزواة په شمیرکښې دَ علماء سیر اختلاف دې. دَ راجح قول مطابق ۲۷ غزوات دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې شوی.[۶] ددې پوره تفصیل به کتاب المغازی کښې راځی. دَ دغه ۲۷ غزوات نه صرف په نهو غزواتوکښې دَ قتال نوبت راغلې دې . بدر، احد، خندق، قریظه، مصطلق، خیبر، مکه، حنین او طائف[۷] په غزوة بواط کښې دَ قتال نوبت نه دې راغلې. بواط دَ باء فتحه او ضمه دواړه شان لوستلې شوې دې. بواط دَ یوغر نوم دې چه دَمکې مکرمې اومدینې منورې په مینځ کښې یومقام ینبع سره نیزدې واقع دې.[۸]

طبقات ابن سعد کښې دی چه دَ ینبع اومدینې منورې په مینځ کښې دَ څلور برد فاصله ده.[۹] هجری دَ ربیع الاول په میاشت کښې دا غزوه پیښه شوې. په دې غزوه کښې حضورپاك سره دوه سوه صحابه کرام رضی الله عنهم وو. دَ قریشو چه کومې قافلې پسې حضورپاك وتلې وو هغه دَ حضورپاك دَ زد نه وتلې وه اوحضورپاك بغیردَ جنګ نه واپس تشریف راوړو. په دې غزوه کښې حضورپاك حضرت سائب بن

---

[۱] کشف الباری کتاب الوضوء باب من لم یرالوضوء إلا من المخرجین من القبل والدبر.
[۲] التوضیح لابن الملقن: ۲۹۲/۵عمدة القاری: ۱۰۱/٤.
[۳] صحیح مسلم کتاب الأدب والرقاق باب حدیث جابر الطویل رقم الحدیث: ۳۰۱۰.
[۴] سنن أبی داؤد کتاب الصلاة باب إذا کان الثوب ضیقًا یتزر به رقم الحدیث: ٦۳٤
[۵] صحیح مسلم کتاب الزهد والرقاق باب حدیث الطویل رقم الحدیث: ۳۰۱۰.
[٦] تاریخ الطبری: ٤۰۵/۲-٤۰٤الکامل لابن اثیر: ۲۰۷/۲سیرة ابن هشام: ۳۵٤/۲.
[۷] سیرة ابن هشام مع الروض الأنف: ۳۵٤/۲.
[۸] معجم البلدان ماده ینبع: ٤۵۰/۵.
[۹] طبقات ابن سعد، غزوة بواط: ۱۰/۲. ۲

عثمان بن مظعون رضي الله عنه د مديني منورې حاکم مقرر کړې وو.[1] خود ابن سعد د بيان مطابق حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه د مديني حاکم مقرر کړې شوې وو.[2]

**قوله: فجئت ليلة لبعض أمري** پوره عبارت به په تقديرى توګه سره داسې وى: «فجئت ليلة إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم لأجل بعض حوائجي» په دې سفر کښې زه يوه شپه د خپل حاجت د پاره نبى کريم صلى الله عليه وسلم ته راغلم. "الأمر" نه مراد د امور نه يو امر دې يعنى د څه کار يا د څه حاجت د پاره راغلم. دا امر د اوامر نه دې يعنى د احکاماتونه د يوحکم د وجې نه رانغلم.[3]

اوس حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه د کوم کار په غرض د نبى کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شوې وو؟ په دې باره کښې د مسلم په روايت کښې تفصيل موجود دې.[4] چه حضورپاک هغه اوحضرت جبار بن صخر رضي الله عنه ليکلې وو چه هغوى دې د ډيرې اچولو په مقام باندې تللو سره د اوبو لټون اوکړې او بندوبست دې اوکړى.[5]

**قوله: فاشتملت به:** حضرت جابر رضي الله عنه د خپل حالت خبر ورکولوسره ښائي چه زما په بدن باندې هم يو کپړه وه د کومې نه چه ما اشتمال کړې وو. علامه انور شاه کشميرى رحمه الله فرمائى چه دې خانى «فاشتملت» ونيلو تعبير اختيارولو کښې څه نقص دې. ځکه چه هغه د خپلې کپړې دواړه پلونه د خپل زنې لاندې کلک کړې وو. دې ته اشتمال نه شى ونيلې. هغه ته مسئله معلومه نه وه ګنى په داسې حالت کښې کپړه ملا سره ترل پکار وو.[6]

**قوله: وصليت إلى جانبه:** ونى فرمائيل چه زه د حضورپاک په اړخ کښې اودريدم اومونځ مې اوکړو. په دې جمله کښې د "إلى" لفظ استعمال کړې شوې دې او "إلى" د انتهاء د پاره استعمالولې شى په دې خانى کښې دا سوال پيدا کيږى چه په دې جمله کښې د انتهاء د معنې څه مطلب دې؟ اوڅه مقام دې؟ مناسب خوداچه داسې ونيلې وې «صليت فى جانبه» نودې جواب دادې چه "إلى" په دې خانى کښې "فى" په معنى کښې دې اوداسې اکثر کيږى چه په کلام کښې يو حرف جر د دويم حرف جر په معنى کښې استعمالولې شى.

دويم جواب دادې چه دلته د "صليتُ" کښې د انضمام د معنى تضمين دې يعنى دا جمله «صليت منضمًا إلى جانبه» ده. د دې بحث تفصيل دادې چه تضمين وائى يو اسم يا فعل کښې د بل اسم يا فعل معنى استعمالول د دې حاصل او فائده دا وى چه کله فعل په خپل فعل اصلى کښې وى نو اکثر د هغې د پاره د يوصله استعمال صحيح نه وى لکه دلته چه د صليت استعمال إلى سره کيږى اود صلى صله إلى نه راځى. نودلته به ونيلى کيږى چه صليت، انضممت معنى ته متضمن دې اود انضممت صله

---

[1] ) سيرة ابن هشام غزوه بواط رقم الحديث: ۶۹۸، ۲/۲۵۱تاريخ الطبرى: ۲/۴۰۵.
[2] ) طبقات ابن سعد غزوه بواط: ۲/۱۰ البداية والنهاية: ۳/۲۴۶.
[3] ) شرح الكرمانى: ۴/۱۹عمدة القارى: ۴/۱۰۱الكنز المتوارى: ۴/۲۷.
[4] ) صحيح مسلم كتاب الزهد والرقاق باب حديث الجابرالطويل رقم الحديث: ۳۰۱۰.
[5] ) فتح البارى: ۲/۶۲۲الكنز المتوارى: ۴/۲۷.
[6] ) فيض البارى: ۲/۱۴أنوار البارى: ۱۱/۱۰۴.

إلی استعمالیږي. نوجمله «صلیت متنهیاً إلی جانبه» په معنی کښې به وي. دکوم مطلب چه دادې ما د حضور پاك اړخ سره ملاؤ مونځ اوکړو.

دریم جواب دا ورکړې شوې دې چه إلی په دې خانی کښې د انتهاء دپاره دې او هم په دغه معنی کښې استعمال شوې دې. په دې صورت کښې به جمله داسې شي «صلیت متنهیاً إلی جانبه» ددې مطلب به دا شي چه زه د حضورپاك اړخ ته اورسیدم مونځ مې اوکړو. (۱)

**قوله: فلمّا انصرف:** بیاچه کله حضورپاك راتاؤ شو یعنی کله چه حضورپاك دمانځه نه فارغ شو او د قبلې د طرف نه تاؤ شو. (۲)

**قوله: ما السُّری:** السُّری د سین ضمه اوالف مقصوره سره د شپې وخت کښې تګ ته وائي. په دې خانی کښې د "سری" د وجود سوال اونه کړې شو بلکه د "سری" د سبب باره کښې سوال کړې شوې دې. یعنی اې جابر! ستا د شپې په وخت د راتلو څه سبب دې؟ اود حضورپاك د طرف نه دا سوال څکه اوکړې شو چه په عام توګه دغه وخت د چا د تګ راتګ نه وي. (۳)

**قوله: ما هذا الاشتمال الذي رأیت؟:** د اشتمال مطلب خو هم دغه دې چه د یوې کپړې په ذریعه سره خپل بدن رانغاړل بیا که چرې دا رانغاړل داسې وي چه د ضرورت په وخت خپل لاس د څادر نه راویستل ممکن وي نواشتمال کول جائز دي. لیکن یوصورت د اشتمال ناجائز هم دې هغه دادې چه د پوره بدن نه کپړه داسې راتاوول چه د ضرورت په وخت په آسانتیا سره لاس راویستې نه شي تردې چه د لاس راویستلو دپاره د څادر پلو اوچتول وي. د کوم د وجې نه چه ستر ښکاره کیږي دې اشتمال ته اشتمال صماء او اشتمال ممنوع وائي. (۴)

په مذکوره حدیث کښې د حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه "فاشتملت" ونیل اود حضورپاك «ما هذا الاشتمال» ونیلونه متبادر معنی خو هم دغه جوړیږي چه کیدې شي هغه د اشتمال صماء، والا صورت جوړ کړې وو دکوم د وجې نه چه حضورپاك دهغه نه سوال اوکړو. (۵)

دویمه خبره دلته د "ماهذا" نه سوال استفهامی انکاری دې. د کوم مطلب چه به دا جوړیږي چه حضورپاك لکه چه داسې اوفرمائیل چه تاله داسې اشتمال نه وو کول پکار. (۶)

لیکن حقیقت دادې چه دلته د حضورپاك سوال د اشتمال صماء د وجې نه نه وو لکه څنګه چه د حضرت علامه انور شاه کشمیری رحمه الله قول ذکرکړې شوې دې چه دلته ناقص تعبیر استعمال کړې شوې دې. هغه داسې چه اشتمال صماء خو هغه وخت ممکن وي کله چه کپړه لویه او ارته وي خو د حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه سره خو کپړه وړه وه لکه چه وړاندې هغوی پخپله «کان ثوباً یعني ضاق»

(۱) شرح الکرماني: ۲۰/۴ عمدة القاري: ۱۰۱/۴ إرشادالساري: ۲۰/۲.
(۲) شرح الکرماني: ۲۰/۴ عمدة القاري: ۱۰۱/۴ إرشادالساري: ۲۰/۲.
(۳) شرح الکرماني: ۲۰/۴ فتح الباري: ۲۳/۶ الکوثر الجاري: ۴۲/۲.
(۴) فتح الباري لابن رجب: ۱۴۴/۲ فیض الباري: ۱۱/۲ إرشادالساري: ۲۰/۲.
(۵) التوضیح لابن ملقن: ۲۹۲/۵ شرح ابن بطال: ۲۱/۲.
(۶) فتح الباري: ۶۲۳/۲

ونيلي دي.(۱) چنانچه ونيلې به شي چه حضرت جابر رضي الله عنه صورتاً اشتمال كړي وو هغه داسې چه هغوي سره كپړه وړه وه د دغه كپړې استعمال په دې صورت كښې په توګه د اشتمال نه ووكيدل بلكه دا د لنګ په طريقه تړل وو اوهغه د مسئلې د نه معلوميدو د وجې نه دا وړه كپړه د اشتمال په طرزد خپل بدن نه راتاؤ كړې وه. په دې باندې حضورپاك د انكار په غرض تپوس اوكړو چه اې جابر! دا د اشتمال په شان شكل دې ولې جوړ كړې دې؟

هم داخبره امام مسلم رحمه الله په صحيح مسلم كښې بيان كړې ده چه د حضورپاك د انكار سبب دا وو چه كپړه وړه وه اودا كپړه حضرت جابر رضي الله عنه د اشتمال په توګه اچولې وه. دكوم په وجه چه ستر په پوره طريقه پټول مشكل وو نوحضورپاك هغوي ته د مسئلې صحيح صورت اوخودلو چه اشتمال په هغه صورت كښې وي كله چه كپړه كولاؤ وي خوچه كله كپړه وړه وي نوهغه وخت دغه كپړه د لنګ په شان تړل پكاردي. ځكه چه اصل مقصد د ستر پټول دي اوهغه په وړه كپړه كښې هم د لنګ په شكل كښې كيدې شي.(۲)

د مسلم شريف د روايت الفاظ دا دي «وكانت علي بردة، ذهبت أن أخالف بين طرفيها، فلم تبلغ لي، وكانت لها ذباذب فنكستها، ثم خالفتُ بين طرفيها، ثم تواقصت عليها، ثم جئت حتى قمتُ عن يسار رسول الله صلى الله عليه وسلم، فأخذ بيدي فأدارني، حتى أقامني عن يمينه، ثم جاء جبار بن صخر فتوضأ، ثم جاء فقام عن يسار رسول الله صلى الله عليه وسلم، فأخذ رسول الله صلى الله عليه وسلم بأيدينا جميعًا، فدفعنا حتى اقامنا خلفه، فجعل رسول الله صلى الله عليه وسلم يرمقني وأنا لا أشعر، ثم فطنت به، فقال هكذا بيده، يعني شُدَّ وسطك، فلما فرغ رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: يا جابر! قلت: لبيك، يا رسول الله! قال: إذاكان واسعًا فخالف بين طرفيه، وإذاكان ضيقًا فاشدده على حقوك» (۳)

د دې عبارت مفهوم دادې چه حضورپاك د مانځه د پاره اودريدو زما په بدن باندې يو وړوكې څادر وو. ما دهغې دواړه غاړې راواړولې اوهغه مې په خپل سټ پورې اوتړلو. دې نه پس زه راغلم او د حضور پاك ګس طرف ته اودريدم. حضورپاك زما لاس اونيولو او تاوولو سره نې ښي طرف اودرولم. بيا جبار بن صخر رضي الله عنه راغلو هغوى هم اودس اوكړو او د حضورپاك ګس طرف ته اودريدو. رسول الله ﷺ زمونږ دواړو لاسونه اونيول شاته نې كړو. او خپل خان پسې شاته اودرولو بيا حضورپاك ماته نيغ كتل شروع كړل دكوم چه ماته علم اونه شو دې نه پس ماته خبر اوشو. حضورپاك په خپل لاس مبارك سره اشاره اوكړه چه خپله شا اوتړه «دې د پاره چه پرده ښكاره نه شي»، كله چه حضورپاك د مانځه نه فارغ شونو حضورپاك اوفرمائيل اې جابر! نوماعرض اوكړوحاضر يم يارسول الله! حضورپاك اوفرمائيل كله چه څادر ارت وي نوهغې دواړه غاړې راواړه وه اوچه كله تنګ وي نودا په ملا باندې اوتړه.

**قوله: كان ثوبًا:** لكه چه جابر رضي الله عنه اوفرمائيل «كان الذي اشتملت به ثوباً واحداً»، يعنى هغه كپړه په كومې سره چه ما اشتمال كړي وو هغه يوه كپړه وه. ثوبا منصوب دې دكان خبر كيدو په وجه. دابوذر اوكريمه رحمهما الله په روايت كښې ثوب دې رفع سره. په دې صورت كښې به دا كان تامه وي اوثوب د دې فاعل. اواسماعيلى دلته د يولفظ اضافه هم نقل كړې ده. هغه دې ضيقًا يعني «كان ثوبًا ضيقًا» (۴)

---

(۱) فيض الباري: ۱٤/۲ أنوار الباري: ۱۰٤/۱۱.

(۲) فتح الباري: ۶۲۳/۲

(۳) صحيح مسلم كتاب الزهد والرقاق باب حديث الجابر الطويل رقم الحديث: ۳۰۱۰.

(۴) شرح الكرماني: ۲۰/٤ فتح الباري: ۶۳۲/۲ عمدة القاري: ۱۰۱/٤ إرشادالساري: ۲۰/۲.

حضرت علامه کشمیری رحمه الله فرمائی دې خانې کښې دَ ثوبًا صفت واحداً راویستل صحیح نه دې لکه چه امام شهاب الدین ابوالعباس احمد قسطلانی رحمه الله چه راویستې دې.[1] خکه چه دامقام دَ یوې کپړې تنګوالې دَ ورې کیدو روان دې. په دې وجه مناسبت هم دادې چه دې خانې دَ ثوبًا صفت ضیقًا سره اوویستلې شي یعنی ((کان ثوبًا ضیقًا)).[2] په دې خانې ثوب دَرفع صورت کښې دکان تامه ګرځولو سره حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله لیکلی دی چه کله کان تامه دې نو بیا دَخبر ضرورت نشته دې.[3]

په دې باندې علامه البدرالدمامینی رحمه الله په دې دواړو حضراتو باندې اعتراض کولوسره ونیلی دی چه کان تامه جوړولوسره دَ دې په فاعل باندې اقتصار کول مناسب نه دی. خکه چه دَ حضرت جابر رضي الله عنه صرف ((کان ثوب)) سره به دَحضورپاك دَ سوال جواب نه جوړیږی بلکه جواب خو به دَ خبر ورکولو صورت کښې جوړیدې شي. نومناسب هم دغه دی چه هم دَدې مقام مناسب څه تقدیر رااوویستلې شي په دې وجه په اکثر نسخوکښې په دې مقام باندې یعنی ضاق ونیلوسره دَ مقام وضاحت کړې شوې دې.[4]

**دَ ارتې کپړې استعمالولو طریقه:** رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه ته ارشاد اوفرمانیلو ((فإن کان واسعًا فالتحف به)) که چرې کپړه لویه او ارته وی نودَهغې التحاف کوه. په دې صورت کښې علامه قسطلانی رحمه الله دا لیکلی دی چه دَ کپړې یوه غاړه دَ لنګ په شکل کښې راغونډه کړه او دویم پلو په اوږه باندې واچوه.[5]

**دَتنګې کپړې استعمالولو طریقه:** حضورپاك حضرت جابر رضي الله عنه ته اوفرمانیل که چرې کپړه تنګه یا وړه وی نو په هغې سره لنګ تړه.[6]

**قوله: فاتزر به:** اتزر دَ باب افتعال نه دَ امر حاضر معروف واحد صیغه ده. دالفظ اتزر دې رومبې همزه د باب افتعال نه دې او دویم همزه دَ فعل حرف اصلی دې. دا همزه په تاء سره بدل کړو تاء کښې مدغم کړو، اتزر شو.[7]

**دَحدیث مبارک نه مستنبط احکام:** دَ مذکوره حدیث نه دا احکام مستنبط کیږی.

① دَ چادَ سوال په جواب کښې صرف دَ او یا نه په خانې مکمل تفصیل ذکرکول نه صرف جائز دې بلکه اکثر زیات فائده مند ثابتیږی. ② په غرض دَ حوائج دَ شپې په وخت چا له تلل جائز دی. ③ دَ مونځ شوق اودَ نبی کریم صلى الله عليه وسلم ملګرتیا اواقتداء کښې دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم مونځ کول هم معلومیږی ④ په مانځه کښې قلیل عمل سره څوك خبردار کول هم ثابت دی. ⑤ دَ مانځه نه پس راتلونکې

---

[1] إرشادالساري: ۲/ ۲۰.

[2] فیض الباري: ۲/ ۱٤أنوارالباري: ۱۱/ ۱۰٤.

[3] فتح الباري: ۲/ ٦۲۳عمدة القاري: ٤/ ۱۰۱.

[4] إرشادالساري: ۲/ ۲۰.

[5] إرشادالساري: ۲/ ۲۰.

[6] حدیث باب رقم الحدیث: ۳٦۱.

[7] شرح الکرماني: ٤/ ۲۰عمدة القاري: ٤/ ۱۰۲-۱۰۱إرشادالساري: ٤/ ۲۰تحفة الباري: ۱/ ۲۸۸.

مقصد په صراحت سره معلومول هم ښکاره شوی. ⑥ په یوخطا باندې نرم انداز سره متصل پوهه کول هم معلومیږی.[1]

**دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:** دمذکوره حدیث ترجمة الباب سره مطابقت آخری جمله «وإن کان ضیقًا فاتزر به» سره ښکاره دی.[2]

## الحدیث الثانی

[۳۵۵]- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: كَانَ رِجَالٌ يُصَلُّونَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَاقِدِي أُزْرِهِمْ عَلَى أَعْنَاقِهِمْ، كَهَيْئَةِ الصِّبْيَانِ، وَيُقَالُ لِلنِّسَاءِ: «لَا تَرْفَعْنَ رُءُوسَكُنَّ حَتَّى يَسْتَوِيَ الرِّجَالُ جُلُوسًا»[3] [۱۱۵۲، ۷۸۱]

**ترجمه:** حضرت سهل بن سعدساعدی رضی الله عنه فرمائی چه څه خلقو حضورپاک سره داسې مونځ کولو چه هغوی خپل ازار (لنګ څادرونه وغیره) خپلو ستونوسره داسې تړلې وو لکه چه دماشومانو په ستونوکښې کېږې تړلې شی اوحضور پاک به ښځوته فرمائیل چه ترکومې پورې سړی پاسی اوناست نه وی ترهغه وخته پورې تاسو د سجدې نه سر مه اوچتوئی.

### تراجم رجال

**مسدد:** دا مسدد بن مسرهد بن مسربل بن مرعبل الاسدی البصری رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه او کتاب العلم باب من خص بالعلم قومًا دون قوم کراهیة أن لا یفهموا کښې تیره شوې ده.[4]

**یحیی:** دا یحیی بن سعید بن فروخ القطان تمیمی رحمه الله دې. ددوی حالات کتاب الإیمان باب أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه کښې تیر شوی دی.[5]

**سفیان:** دا مشهور تابعی ابوعبدالله سفیان بن سعید ثوری کوفی رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب الإیمان باب علامة المنافق په دویم حدیث کښې تیره شوې ده.[1]

---

[1] عمدة القاری: ۱۰۲/٤شرح الکرمانی: ۲۰/٤.

[2] عمدة القاری: ۱۰۰/٤منارالباری: ۳۷۹/۱.

[3] أخرجه البخاری فی الصلاة باب عقد الإزار علی القفا، وفی باب هذا، وفی صفة الصلاة باب عقد الثیاب وشدها، رقم الحدیث: ۸۱٤ وفی العمل فی الصلاة باب إذا قیل للمصلی، تقدم أو انتظر، فانتظر لابأس رقم الحدیث: ۱۲۱۵ ومسلم فی الصلاة باب خروج النساء المصلیات وراء الرجال رقم الحدیث: ٤٤۱ وأبوداؤد فی الصلاة باب الرجل یعقد الثوب فی القفا رقم الحدیث: ۶۳۰ والنسائی فی القبلة باب الصلاة فی الإزار رقم الحدیث: ۷۶۷ وجامع الأصول کتاب الصلاة رقم الحدیث: ۳۶٤۵، ٤۶۰/۵.

[4] کشف الباری: ۲/۲، ۵۸۸/٤.

[5] کشف الباری: ۲/۲.

ابوحازم: دا سلمه بن دينار الاعرج الزاهد المدنى رحمه الله دې د دوى كنيت ابوحازم دې. د دوى حالات كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه كښې تيرشوى دى.[2]

سهل: دا ابن سعد الساعدى ابوالعباس الانصارى الخزرجى رضي الله عنه دې. دَدوى حالات هم كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه كښې تيرشوى دى.[3]

## شرح حديث

مذكوره حديث امام بخارى رحمه الله ((باب عقد الإزار على القفا في الصلاة)) كښې تعليقًا نقل كړې وو اوس نى په دې باب كښې سنداً ذكركوى. دَدې حديث په سندكښې سفيان نه مراد سفيان بن عيينه دې كه سفيان الثورى؟ په دې كښې اختلاف دې خكه چه دا دواړه حضرات د ابوحازم رحمه الله نه روايت كوى لكه چه علامه كرمانى رحمه الله اوشيخ الاسلام زكريا الانصارى رحمه الله ذكركړې دى.[4]
ليكن علامه قسطلانى رحمه الله د سفيان بن عيينه رحمه الله احتمال رد كړې دې او په سفيان الثورى رحمه الله باندې جزم ګرځولې دې.[5] اوعلامه عينى رحمه الله هم دَحافظ مزى رحمه الله په حواله سره هم په دې باندې جزم كړې دې لكه چه په أطراف كښې حافظ مزى رحمه الله تصريح كړې ده.[6]
داحديث امام مسلم رحمه الله ((عن أبى بكر بن أبى شيبة عن وكيع))[7] ابو داؤد رحمه الله ((عن محمد بن سليمان الأنبارى عن وكيع))[8] اونسائى رحمه الله ((عن عبدالله بن سعيد عن يحيى)) په سندسره روايت كړې دې.[9] په دې كښې د سنن ابى داؤد د روايت الفاظ لږشان مختلف دى اوهغه دادى: ((عن سهل بن سعد قال: رأيت الرجال عاقدي أزرهم في أعناقهم من ضيق الأزار خلف رسول الله صلى الله عليه وسلم في الصلاة كأمثال الصبيان، فقال قائل: يامعشر النساء لاترفعن رؤوسكن حتى يرفع الرجال)).

**قوله: كان رجال يصلون مع النبى صلى الله عليه وسلم:** سهل بن سعد رضي الله عنه اوفرمائيل چه خلقوبه نبى كريم صلى الله عليه وسلم سره مونځ كولو. په رجال كښې د تنوين باره كښې علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه دا د تنويع يا تبعيض دَپاره دې. يعنى بعض الرجال، كه چرې دا معرفه ذكر كړې شوې وې نودا به په استغراق باندې دلالت وو كوم چه دَمقصود نه خلاف وو.[10]

---

[1] كشف البارى: ۲/۲۷۸.
[2] كشف البارى كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه.
[3] كشف البارى كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه.
[4] شرح الكرمانى: ۴/۲۰ تحفة البارى: ۱/۲۸۸.
[5] إرشادالسارى: ۲/۲۰.
[6] عمدة القارى: ۴/۱۰۲ تحفة الأشراف سهل ابن سعد رقم الحديث: ۴۶۸۱، ۴/۱۰۵.
[7] صحيح مسلم كتاب الصلاة باب خروج النساء المصليات وراء الرجال رقم الحديث: ۴۴۱.
[8] سنن أبى داؤد كتاب الصلاة باب الرجل يعقد الثوب فى القفا رقم الحديث: ۶۲۸
[9] سنن النسائى كتا ب الصلاة باب الصلاة فى الإزار رقم الحديث: ۷۶۷.
[10] شرح الكرمانى: ۴/۲۱.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه رجال كښې تنوين د تنويع د پاره دې چه دَدې خبرې تقاضا كوى چه بعض رجال يعنى بعض سرو به داسې كول اوبعض به دَدې خلاف كول. اودَ ابوداؤد په روايت كښې الرجال معرف باللام دې او په دې كښې لام دَ جنس دَپاره دې كوم چه دَ نكره په حكم كښې وى (۱).

علامه عينى رحمه الله دَ دواړو حضراتو قول نقل كولونه پس ليكى چه زه وايم كوم څه چه دَ ابوداؤد په روايت كښې ذكردى هغه داخبره ردكوى كوم. چه دا دواړه حضرات فرمائى اوهغه الرجال معرف باللام دې. (۲)

علامه سهارنپورى رحمه الله ليكى چه الرجال كښې لام دَعهد دَپاره دې. دې نه مراد بعض الرجال دې اودَ دې رجال نه مراد اصحاب صفه دى. (۳)

**قوله: عاقدي أزرهم على أعناقهم كهيئة الصبيان:** مراد دادې چه هغه سړو به خپلې ځادرې په خپلو سټونوكښې داسې تړلې لكه ماشومانوته دهغوى په غاړه كښې كپړه تړلې شوه دې دپاره چه هغه كپړه كولاؤ نه شى. عاقدي مضاف دې أزرهم طرف ته. اصل كښې عاقدين وو دَ اضافت دَوجې نه نون پريوتلو او أزر جمع دَ الإزار.

دا جمله منصوب ده دَ حال كيدودَ وجې نه او دا هم ممكن دى چه دَدې نصب دَ كان خبركيدو په وجه وى. (۴)

دَ بخارى په دې روايت كښې «كهيئة الصبيان» الفاظ دى اودَ ابوداؤد په روايت كښې «كأمثال الصبيان» الفاظ دى اومعنى دَ دواړو تقريبًا هم يوه ده لكه چه دَماشومانوغاړه كښې غوټه تړلوسره زوړندولې شى هم دغه شان دې سړو دَ خپلو كپړو غوټې په خپلو سټونو باندې لګولې وې. (۵)

**قوله: وقال للنساء: لا ترفعن رؤوسكن حتى يستوي الرجال جلوسًا** اوښځوته نى اوفرمائيل چه تاسو په مانځه كښې دَ سرو دَ سجدې نه دَ اوچتيدونه وړاندې خپل سرونه مه اوچتوئ دَ سنن ابوداؤد په روايت كښې دى «قال قائل» دا قائل څوك وو؟ په دې كښې دوه احتمال دى چه داقول دَ نبى كريم ﷺ وى يا دَحضورپاك په حكم سره دَ بل چاوى. (۶)

حضرت سهارنپورى رحمه الله ليكلى دى چه دَقال فاعل حضرت بلال رضي الله عنه دې. (۷) كشميهنى رحمه الله په روايت كښې «ويقال للنساء» الفاظ دى (۸) او دَ نسائى رحمه الله په روايت كښې دى «فقيل للنساء» الفاظ دى. (۹)

---

۱) فتح البارى: ۶۲۳/۲

۲) عمدة القارى: ۱۰۲/۴.

۳) بذل المجهود: ۵۶۱/۳.

۴) شرح الكرمانى: ۲۰/۴ عمدة القارى: ۱۰۹۲/۴ إرشادالسارى: ۲۰/۲ بذل المجهود: ۵۶۲/۳.

۵) سنن أبى داؤد رقم الحديث: ۶۲۸

۶) سنن أبى داؤد رقم الحديث: ۶۲۸

۷) بذل المجهود: ۵۶۲/۳.

۸) عمدة القارى: ۱۰۲/۴.

۹) سنن النسائى كتاب الصلاة باب الصلاة فى الإزار رقم الحديث: ۷۶۷.

اوحضرت ابوداؤد رحمه الله دحضرت اسماء رضي الله عنها نه يو روايت په دې الفاظو سره نقل کړې دې. ((سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: من كان منكن تؤمن بالله واليوم الآخر، فلا ترفع رأسها، حتى يرفع الرجال رؤوسهم، كراهية أن ترين عورات الرجال))[1] په دې روايت كښې تصريح ده چه دا قول پخپله د نبی كريم صلى الله عليه وسلم دې.

((لاترفعن رؤوسكن أي: لاترفعن من السجود)) [2]

مراد دادې چه تاسو خپل سرونه دسجدې نه مه اوچتونی تردې چه سړی نيغ شی اوکينی. جالسًا منصوب دې د حال کيدو د وجې نه اودا مصدر دې جالسين په معنى كښې [3]

ښځو ته دغه حکم د کپړې د تنګوالی ورو کوالی او يا کميدو د وجې نه ورکړې شو. دې دپاره چه که چرته ستر ښکاره وی نو چه د چا نظر په پټو اندامونوباندې اونه لګی. [4]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دې نه معلوميږی چه که چا په خپلو اندامونوباندې کپړه رانغښتې وی او پټ کړې وی اود ښکته کتلو په صورت کښې د ستر والا اندامونه ښکاره شی نو په دې کښې هيڅ حرج نشته دې. يعنی د ښکته طرف نه هم پرده کول ستر پټول واجب نه دی. [5]

دغه شان علامه عينی رحمه الله د ابوداؤد په شرح کښې ليکی که چرته د هوا په وجه د مونځ ګذار د ستر والا اندامونه ښکاره شی او بيا هم په هغه خائی بغيرد څه تاخير نه خپلې خائی ته واپس شی نو په دې سره څه حرج نه کيږی. خو که د رکن د اداکيدو په وخت برابر يو اندام ښکاره پاتې شی نومونځ فاسد کيږی. [6]

**دمذکوره حديث ترجمة الباب سره ربط:** دَدې حديث شريف ترجمة الباب سره مناسبت داسې دې چه دښځو د سجدې نه د سر اوچتولو نه منع کولو وجه دا وه چه سړو سره به کپړه تنګه وه مکمل ستر پټول به ورته ګران وو. په دې وجه ښځې منع کړې شوې چه د سړو نه اول خپل سر دسجدو نه مه اوچتونی دې نه معلومه شوه چه سړو سره به کپړه تنګه وه اوهم دغه خبره په ترجمة الباب کښې ذکرده

## ۲- باب: اَلصَّلَاةِ فِي الْجُبَّةِ الشَّامِيَّةِ

داباب دې په هغه جبه کښې د مونځ کولوپه بيان کښې کومه چه د شام جوړه شوې وی

**قوله: جُبَّة:** دجيم په ضمه او باء مشدد فتحه سره دې ((ثوب مقطوع الكم طويل، يلبس فوق الثياب، وجمعه جُبَبٌ وجِبَابٌ)) [7]

جبة داسې لباس دې چه د کپړو دپاسه اغوستلې شی دَدې لستونړی کټ شوې وی اودا اوږده وی دَدې جمع جُبَبٌ او جِبَابٌ راځی.

---

[1]) سنن أبي داؤد كتاب الصلاة باب رفع النساء إذا كن مع الرجال رؤوسهن من السجود رقم الحديث: ۸۵۱.

[2]) شرح الكرماني: ۲۱/٤عمدة القاري: ۱۰۳/٤.

[3]) شرح الكرماني: ۲۱/٤عمدة القاري: ۱۰۳/٤.

[4]) شرح ابن بطال: ۲۰/٤شرح الكرماني: ۲۱/٤عمدة القاري: ۱۰۳/٤شرح النووي على صحيح مسلم: ۳۸۰/٤.

[5]) فتح الباري: ۲۳/۱العالمگيرية كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الأول: ۶۵/۱بدائع الصنائع: ۲۱۹/۱الفقه الإسلامي وأدلته: ۷٤۳/۱.

[6]) شرح أبي داؤد للعيني رقم الحديث: ۶۱۱، ۱۵۸/۳الفقه الإسلامي وأدلته: ۱۰۳۳/۲.

[7]) أقرب الموارد، المادة ج،ب، ب": ۱۰۰/۱۰لسان العرب: ۱۶۲/۲-۱۶۱معجم الصحاح ص:۱۵۱.

**قوله:: الشام**: دا دَ عربو يومشهور ملك دې دَرومبي همزه فتح سره اودَدويم همزه سكون (يعنى الف) سره اودا دهمزه فتحه سره لوستل هم جائزدى. دې ملك ته دَ انبياء زمكه وائى دَحضورپاك په زمانه كښې دا دَ كافرو ملك وو.([1])

**قوله:: الجبة الشامية**: نه مراد داسې جبه ده كومه چه دَ شام دَملك جوړه وى اوچونكه دَشام ملك دَ كافر ملك وو په دې وجه په نورو الفاظوكښې داسې ونيلى شى چه داسې جبه كومه چه كافرانوتياره كړې وى. دَالشامية صفت نه داخبره مقصود ده چه دكافرانوتياره كړې شوې كپړه. ځكه چه الشام دارالكفروو، مطلقاً صرف دَ شام والو تياره شوې كپړه مرادنه ده. بلكه په ترجمة الباب كښې ددې لفظ ذكر صرف په حديث مبارك كښې راغلې لفظ شام په رعايت سره دې اومراد ترې دَ هركافر تياره كړې شوې كپړه ده. په دې شرط چه هغې كښې دَ نجاست كيدل متحقق نه شى. كه دَ دغه كپړو نجس كيدل ثابت شى نوبيا هغه پاكول ضرورى دى.([2])

**دَترجمة الباب مقصد**: علامهٔ ابن بطال رحمه الله علامه كرمانى رحمه الله علامه ابن رجب حنبلى رحمه الله حافظ ابن حجر رحمه الله علامه عينى رحمه الله علامه احمدبن اسماعيل الكورانى رحمه الله علامه قسطلانى رحمه الله اوشيخ الاسلام زكرياالانصارى رحمه الله دَدې ترجمة الباب مقصد دا بيان كړې دې چه دَ غيرمسلم دَ لاس جوړ شوې لباس كښې مونځ كول جائز دى. كه هغوى دغه كپړې په خپل ملك كښې تياركړې وى اودَ هغه خائى نه راغوښتې وى اوكه په دارالاسلام كښې تيارې كړې وى.([3])

**دَحضرت مولاناكشميرى صاحب رحمه الله رائې**: حضرت مولاناانورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى چه دَ ترجمة الباب اوحديث الباب دواړو په ظاهره او مقصد اولى دادې چه دَ كافرانو دَ وضع قطع كپړې هم دَ مونځ په وخت كښې استعمالولې شى لكه څنگه چه رسول الله ﷺ مبارك شامى جبه استعمالوله ځكه چه هغه وخت شام دَ روميانو لاندې اودكافرانو په قبضه كښې وو اوهلته به هم دَ روميانو دَ طرز لباس استعماليدلو. دويم ضمنى او ثانوى مقصدداهم كيدې شى چه دَ كافرانو جوړشوې يا دَاستعمالى كپړو استعمالول بغيردَ وينځلو په مانځه كښې استعمالولې شى كه نه؟ دكوم طرف ته چه امام بخارى رحمه الله پس دَ ترجمه په آثارسره اشاره كړې ده. دَحضرت شاه صاحب رحمه الله رائې داده چه دَامام بخارى رحمه الله مخې ته رومبې مقصد هم وضع قطع دې. كوم چه دَحديث الباب هم منطوق اومنصوص مطابق دې اودويمه خبره ضمنى او دَ ثانوى درجې ده.

دَدې په خلاف شارحين بخارى (لكه څنگه وړاندې تير شو) دَ كافرانودَلباس طرف ته پاكوالې او پليتوالې مقصود گرځولې دې اودَ وضع اوقطع طرف ته ئې هيڅ تعارض نه دې كړې حالانكه په حديث باب كښې ټولې خبرې هم دې سره متعلق معلوميږى چه حضورپاك شامى جبه اچولې وه. دكوم چه لستونړى تنگ وو دَ اودس په وخت حضورپاك دا پورته نه كړې شو نوحضورپاك خپل لاسونه د

---

[1]) معجم البلدان تذكرة الشام: ۳۱۱/۳شرح الكرمانى: ۲۱/٤تحفة البارى: ۲۸۸/۱.

[2]) شرح ابن بطال:۳۲/۲عمدة القارى: ۱۰۳/٤إرشادالسارى: ۲۱/۲تحفة البآرى: ۲۸۸/۱.

[3])شرح ابن بطال: ۳۲/۲فتح البارى لابن رجب: ۳۸/٤ فتح البارى لابن حجر: ٦۲۳/۲عمدة القارى: ۱۰۳/٤الكوثر الجارى : ٤۳/۲إرشادالسارى: ۲۲/۲تحفة البارى: ۲۸۸/۱.

لستونړو لاندې راويستل اوبيانى اودس اوكړو. لهذا په حديث باب كښې په ظاهر طهارت او نجاست د كافرانولباس سره هيڅ تعارض نشته دې البته ضمناً دغه خبره ضرور راوتلې شى. (۱)

**د شيخ الحديث رحمه الله رائې:** زمااود شارحينورائې ده چه دكافرانود لاس جوړې شوې كپړې. د اغوستلو جواز ثابت كوى دى. چونكه كافرانوبه د نجاست او طهارت څه پرواه نه كوله لهذا دهغوى د لاس جوړې شوې كپړې استعمالول منع كيدل پكار دى، نوامام بخارى رحمه الله ددې جواز ثابتوى. دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه صرف كراهت نقل دې اود امام مالك رحمه الله په نيز په وخت كښې دننه راګرخول دى او د جمهورو رائې داده چه اصل طهارت دې په دې وجه د دې اغوستل جائز دى.

امام بخارى رحمه الله هم جمهورو سره دې اود بعض مشائخ درس رائې داده چه په دې ترجمه سره دهغه كپړو داغوستلو جواز ثابتول دى كومې چه دكافرانو په هيئت سره جوړې وى لكه پتلون اوكوټ وغيره مګر زما په نيز دا صحيح نه ده څكه چه په روايت او آثاركښې هيڅ يوڅيز ددې مساعدت نه كوى. (۲)

حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چه دلته دوه څيزونه دى يوهغه دكوم طرف ته چه علامه عينى رحمه الله اشاره كړې ده چه دا باب دې په هغه كپړو كښې د مونځ د جواز په بيان كښې كومې چه كافرانوجوړې كړې وى. (۳) اوددويمې خبرې طرف ته اشاره دحافظ ابن حجر رحمه الله دخبرې نه ملاويږى چه دا باب دې په هغه كپړو كښې دمونځ جائزكيدو په بيان كښې كومې چه دكافرانو وى خوچه دهغې نجس كيدل ثابت نه شى. (۴) يوه دريمه خبره دحضرت شاه كشميرى رحمه الله نه ملاويږى چه دكافرانو په وضع قطع سره جوړشوى لباس كښې د مونځ د جواز حكم. (۵)

**دكافرانو جوړشوى لباس د استعمال حكم:** د جمهور علماء كرامو په دې باره كښې مسلك دادې چه كومې كپړې كافرانو تيارې كړې وى جوړې كړې وى يا ګنډلې وى نودهغه كپړو په مانځه كښې استعمال او بهر د مانځه نه استعمال صحيح دې. څكه چه دمذكوره باب باره كښې پخپله دعلامه عينى رحمه الله الفاظ دادى: «إنما أولنا بهذا لأن الباب معقود لجواز الصلاة في الثياب التي تنسجها الكفار مالم تتحقق نجاستها». (۶)

يعنى مذكوره باب قائم كړې شوې هم ددې دپاره دې چه د كافرانو تيارې كړې شوې كپړې اغوستلوسره دمونځ د جائز كيدو حكم معلوم شى. په دې شرط چه دا يقين وى چه دا كپړې نجس نه دى. كه په دې كښې د نجاست كيدل ثابت شى نو مونځ به جائزنه وى لبكن په دې صورت كښې د مونځ دعدم جواز به دهغه نجاست د وجې نه وى نه چه دكافرانود لاس تياريدو د لباس د وجې نه.

حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى د جمهورو په نيز راجح دادى چه د كافرانو په تيارشوى لباسونو كښې دهغې پاكولو نه بغير مونځ كول مكروه دى. د مالكيه په نيز په وخت كښې دننه د دغه مونځ راګرځول ضرورى دى اود وخت تيريدونه پس ضرورى نه دى. اود صاحبينو په نيز تركومې پورې چه په

---

(۱) فيض البارى ۲/۱۵ أنوارالبارى: ۱۱/۱۰۵.
(۲) الكنزالمتوارى: ۴/۲۷ تقرير البخارى: ۲/۳۳۴.
(۳) عمدة القارى: ۴/۱۰۳.
(۴) فتح البارى لابن حجر: ۲/۶۲۳.
(۵) فيض البارى: ۲/۱۵ أنوارالبارى: ۱۱/۱۰۵.
(۶) عمدة القارى: ۴/۱۰۳ مرقاة المفاتيح رقم الحديث: ۴۳۵، ۸/۱۹۲.

دي کښې نجاست ثابت نه شي ترهغه وخته پورې په دې کښې مونځ کول او نور اعمال کول ټول جائز دي او زمونږ په نيز هم په دې قول فتوی ده.[1]

**دکافرانو د استعمال شوو کپړو حکم:** دويمه خبره د هغه کپړو د استعمال ده کومې چه کافرانو استعمال کړې وی چه د هغې استعمال جائز دې که ناجائز؟ ځکه چه دکافرانو په نيز د نجاست يا طهارت څه معنی نه وی. چنانچه عين ممکن ده چه دهغوی استعمال شوې کپړې هم پاکې نه وی. نو د دغه کپړو د استعمال باره کښې فقهاء کرام ليکی که چرې هغه داسې کپړې وی چه دکافرانو د ملکونو نه راغلی اونوې وی او دهغوی استعمال شوې نه وی نو دې حکم وړاندې تيرشوې دې چه دهغې د پاکوالی اوناپاکوالی مدار په هغه کپړو کښې دنجاست ثبوت يا عدم ثبوت باندې دې اوکه چرې هغه استعمال شوې وی نوبيا به کتلې شی چه هغه کپړې د بدن په پورتنی حصه کښې د استعمال دی يا د ښکته حصې.نوکه هغه کپړې د بدن په پورته حصوکښې استعماليږی لکه ټوپئ پټکې سينه بند قميص څادر رومال وغيره نودغه کپړې بغيرد وينځلو نه استعمالولوکښې هيڅ حرج نشته اوکه هغه کپړې د بدن په لاندينو حصوکښې استعماليږی لکه پرتوګ، لنګ وغيره نو د هغې باره کښې امام احمد رحمه الله فرمائی چه په دې قول کښې دوه احتمالات دی چه دهغه مونځ واپس راګرځول واجب دی. دا قول د مالکيه نه د قاضی صاحب رحمه الله دې.اودويم قول (يعنی احتمال) دعدم وجوب دې دا قول د ابوالخطاب دې ځکه چه اصل طهارت دې کوم چه په شک باندې ختميږی نه.

دامام ابوحنيفه رحمه الله امام شافعی رحمه الله نه د کراهت قول نقل دې. ځکه چه هغوی د نجاست نه د بچ کيدو خيال نه کوی لهذا پاجامه پرتوګ اولنګ وغير ه استعمال مکروه دی. اوقول راجح تيرشوې دې چه اصل ثبوت نجاست دې. لهذا د کافرانو کپړې به وينځلو سره استعمالولې شی.[2]

**دکافرانو مشابهت اختيارولوحکم:** لکه څنګه وړاندې معلومه شوه چه د علامه انورشاه کشميری رحمه الله په نيز راجح دا دی چه په مذکوره حديث کښې دحضورپاک دجبې شامیې کوم ذکردې دهغې نه مقصد د غيرمسلمو اوکافرانو د وضع قطع د بعض خاص صورتونو اختيارولو جواز معلومول دی. ځکه چه کله د شاميانو د تنګو لستونړو (کوم چه د تنګوالی د وجې نه پورته اوچتول مشکل وو د کوم د وجې نه چه حضورپاک خپلې متې د جبې نه لاندې ويستلې) هغې طرف ته اشاره ده. په دې ځائې کښې ددې بحث کافی تفصيلی معلوماتوکښې موجود دی چه کافرانوسره په کومو څيزونوکښې ترکوم حده پورې مشابهت اختيارولوګنجائش دې اوترکومه حده پورې ممانعت دې؟ لاندې به کافرانو سره د تشبيه متعلق څه قدرې وضاحت کولې شی.

**د شبه تعريف:** دتشبه بالکفار باره کښې دتولو نه زيات تفصيلی بحث حضرت مولانا قاری محمد طيب قاسمی صاحب رحمه الله کړې دې. حضرت د اسلامی تهذيب وتمدن المعروف به ((التشبه فى الاسلام)) په نوم سره د ۲۲۵ صفحاتو کتاب ليکلې دې حضرت اشرف علی تهانوی رحمه الله ددې کتاب باره کښې ليکی چه دتشبه مسئله داسې مکمل اومدلل ما نه ده ليدلې ترکومو لطائفو پورې چه د ذهن تللو

---

[1]) الکنزالمتواری: ۲۷/٤تقرير بخاری: ۲/ ۳۳٤.

[2]) المغنی لابن قدامة کتاب الطهارة: ۹۷/۱شرح الکبير: ٤۱/۲۱کشاف القناع لابن يونس البهوتی الحنبلی: ٤٤۷/۱ تهذيب الفروق والقواعد السنية فی الإسرار الفقهية، الفرق التاسع والثلاثون والمائتان: ۲۸۵/٤فتح القدير: ۲۱۲/۱-۲۱۱ حاشية ابن عابدين کتاب الحيض مطلب فی الفرق بين الاستبراء والاستنقاء والاستنجاء: ۵۶۵/۱الکنز المتواری: ۲۸/٤.

احتمال نه وو هغه رانبکاره شو د لرې نه د لرې شبهات ختم کړې شو. (مجموعه رسائل حکیم الاسلام اسلامی تهذیب وتمدن: ۳۵/۵).
دې نه علاوه مولانامحمدادریس صاحب کاندهلوی رحمه الله په دې موضوع باندې ډیر په وضاحت سره خپل تصنیف سیرة المصطفی ﷺ کښې سیرحاصل خبرې اترې کړې دی چه په جدا رساله کښې هم چهاپ دی. حضرت کاندهلوی رحمه الله د تشبه په تعریف کښې پنځه اقوال ذکرکړی دی دکوم نه چه د تشبه قباحتونو او مضرتونو اندازه لګولې شی.
① **اول تعریف:** خپل حقیقت خپل صورت او وجود پریخودو سره د بل قوم حقیقت د هغوی صورت او دهغوی په وجود کښې د ورګډو کیدو تشبه ده.
② **دویم تعریف:** خپله هستی د بل په هستئی کښې فناکولونوم تشبه ده.
③ **دریم تعریف:** خپل هیئت اووضع بدلولوسره د بل قوم وضع اوهیئت اختیارولو نوم تشبه ده.
④ **څلورم تعریف:** خپل امتیازی شان پریخودل او د بل قوم امتیازی شان اختیارولونوم تشبه ده
⑤ **پنځم تعریف:** خپل اود خپلوانو صورت اوسیرت پریخودل اود غیرو اوپردو صورت اوسیرت خپلولونوم تشبه ده.([1])
ددې دپاره چه شریعت مطهره دمسلم اوغیرمسلم په مینځ کښې یوخاص قسم فرق کول غواړی. چه مسلمان به په خپله وضع قطع کښې اوسیدوکښې تګ راتګ کښې په غیرمسلم باندې غالب اود هغه نه به جدا وی. خانله او جدا توګه باندې به دمسلمان عبادت، معاملات اومعاشرت وی. ظاهری علامت د دغه امتیاز دپاره ډیره او لباس مقررکړې شو چه لباس ظاهری اوخارجی علامت دې اوپه خپل انسانی بدن کښې ډیره اوسنت کول فرق کونکې ګرخولې شوی دی. نبی کریم ﷺ موقع په موقع خپل صحابه کرام ﷺ د غیرمسلمو د مشابهت نه منع کړی دی. دې باره کښې لاندې یوڅو احکامات ذکرکولې شی:
**تشبه بالکفار سره متعلق د حضورپاک ارشادات:** دالله ﷻ د طرف نه د رسول الله ﷺ په واسطه سره امت محمدیه ﷺ دغیرمسلمو کافرانو یهودیانو اونصاری نه د لرې ساتلوپه مختلفو مقاماتو کښې تلقین کړې شوی دې. مثلاً
﴿يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ﴾([2]) یعنی اې د ایمان خاوندانو مه جوړه ونی یهودیان اونصاری دوستان، هغوی خپل مینځ کښې دوستان دی د یوبل، اوڅوك چه تاسو نه دوستی اوکړی هغوی سره، نوهغه هم دهغوی نه دی. الله ﷻ هدایت نه کوی ظالمانوخلقوته.([3])
﴿يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ كَفَرُوا﴾ ([4]) یعنی اې ایمان والوتاسو مه (کیږئې) دهغوی په شان څوك چه کافران شوی.([5])

[1]) تشبہ بالکفار للکاندهلوی ص: ۷ مکتبہ حکیم الامت کراچی.
[2]) سورة المائدة: ۵۱.
[3]) تفسیر عثمانی، ص: ۱۵۰.
[4]) سورة آل عمران: ۱۵۶.
[5]) تفسیرعثمانی، ص: ۹۰.

سنن ترمذی کښې يو روايت دې په کوم کښې چه حضورپاك ارشاد فرمائيلې دې کوم سړې چه دَ اسلامي ملت نه علاوه يوبل ملت سره مشابهت اختيارکړی نوهغه زمونږ نه نه دې، ارشاد اوفرمائيلې شو چه تاسو يهود اونصاریٰ سره مشابهت مه اختياره ونی.(١)

((عن عمرو بن شعيب عن أبيه، عن جده، أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: ليس منا من تشبه بغيرنا، لا تشبهوا باليهود ولا بالنصارى)) دَدې حديث په شرح کښې صاحب تحفة الاحوذی ليکی چه مراد دادې چه تاسو يهوديانو اونصاریٰ سره دَهغوی په يوکارکښې هم مشابهت مه اختياره ونی.(٢)

سنن ابی داؤدکښې دی چه حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه کوم سړې دَ کوم قوم مشابهت اختيارکړی هغه به هم دَهغوی نه وی.(٣) علامه سهارنپوری رحمه الله فرمائی چه مشابهت عام دې که دَخير په کارونوکښې وی اوکه دَ شر، آخری انجام به ئې هم دَهغوی سره وی په خير يا شرکښې.(٤)

دَ من تشبه په شرح کښې ملاعلی قاری رحمه الله ليکی چه کوم سړې مشابهت اختيارکړی دَ کافرانو فاسقانو فاجرانو يا بيا دَ نيکانو صالحانو په لباس وغيره کښې (يا په بل څه صورت کښې) هغوی به په گناه اوخير کښې هم هغوی سره وی.(٥)

په يوبل حديث شريف کښې دی په مونږ کښې اومشر کانوکښې فرق (علامت) په ټوپو باندې دَ پټکو تړل دی. يعنی مونږ په ټوپئی باندې پټکې تړو او مشرکان بغيردَ ټوپئی نه پټکې تړی.(٦)

**دَتشبه باره کښې دَ صحابه کرامو او تابعين آثار:** دَحضرت عمر فاروق په دور حکومت کښې چه کله دَ اسلامي سلطنت دائره خوريدله نو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دَدې خبرې فکر راگيرکړو چه دَ مسلمانانو دَ عجميانوسره دَ گډوډوالی سره په اسلامي امتيازاتوکښې څه فرق رانه شی. دَدې خطرې دَ مخې يوطرف ته ئې مسلمانانوته دَدې نه دَ بچ کيدو تلقين کولو نوبل طرف ته ئې دَ غيرمسلمو دَپاره هم دستور قائم کړو. لکه چه دَ حضرت عثمان النهدی رحمه الله په روايت کښې دی مونږ دَ عتبه بن فرقد رضي الله عنه سره په آذربيجان کښې وو چه مونږ ته حضرت عمر رضي الله عنه يو خط راؤليگلو په کوم کښې چه ډير زيات احکامات اوهدايات وو. دَهغه ټولونه يو داهم وو چه،تاسو خپل ځان دَ اهل شرک اواهل کفر دَ لباس اوهيئت نه لرې اوساتئی. ((عن أبي عثمان النهدي قال: كتب إلينا عمر بن الخطاب ونحن بأذربيجان مع عتبة بن فرقد: يا عتبة إنه ليس من كدك ولا كد أبيك ولا كد أمك، فأشبع المسلمين في رحالهم ما تشبع منه في رحلك وإياكم والتنعم وزي أهل الشرك ولبوس الحرير..... الخ))(٧)

په يوبل روايت کښې دی چه حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه ليکلی وو چه ((أما بعد! فاتزروا وارتدوا وانتعلوا....وعليكم بلباس أبيكم إسماعيل، وإياكم والتنعم وزي العجم...... وتمعددوا واخشوشنوا واخلولقوا... الخ))(٨)

---

(١) سنن الترمذی کتاب الاستئذان باب ماجاء في كراهية إشارة اليد بالسلام رقم الحديث: ٢٦٩٥.
(٢) تحفة الاحوذی للمباكفوری: ٥٠٤/٧.
(٣) سنن أبی داؤد كتاب اللباس باب فی لبس الشهرة رقم الحديث: ٤٠٣٠.
(٤) بذل المجهود: ٥٩/٤.
(٥) مرقاة المفاتيح: ٢٢٢/٨.
(٦) سنن أبی داؤد كتاب اللباس رقم الحديث: ٤٠٧٨ مرقاة المفاتيح رقم الحديث: ٤٣٤٠، ٢١٥/٨.
(٧) جامع الأصول الكتاب الأول فی اللباس الفصل الرابع فی الحرير النوع الثانی، رقم الحديث: ٨٣٤٣، ٦٨٧/١٠.
(٨) شعب الإيمان للبيهقی، الملابس والزی رقم الحديث: ٥٧٧٦، ٢٥٣/٨.

دَدي مفهوم دادې چه اې مسلمانانو دَ ازار اوځادر استعمال کوني ځپلني اچوني اودَ جدامجد اسماعيل عليه السلام لباس (لنګی اوځادر) لازم اونيسئ اوخپل ځان دَ عيش پرستئ او عجميانو دَ لباس او دَهغوی دَ وضع قطع اوهينت نه لرې اوساتئ (هسې نه چه تاسو په لباس او وضع قطع کښې دَ عجميانو په شان نه شئ)... او پيرې ژګې اوزرې جامې اچوني کوم چه دَ اهل تواضع لباس دي او بل طرف ته اهل نصاری او يهود دارالاسلام کښې دَ اوسيدلو په صورت کښې ئې دَ ډيرو کارونو پابند کړل دکوم نه چه صفا معلوميدله چه په ډير مضبوط انداز کښې اسلامی طور طريقې او اسلامی اقدارو حفاظت کړې شوې دي.

چنانچه دَ شام دَ فتح په موقع دَ شام نصاریٰ سره دَ عهد صلح نه پس کوم شرائط فيصله کړې شو هغه دا وو: ((.... وأن نؤقر المسلمين وأن نقوم لهم من مجالسنا إن أرادوا جلوساً ولا نتشبه بهم في شي، من لباسهم من قلنسوة، ولا عمامة، ولا نعلين، ولا فرق شعر ولا نتكلم بكلامهم ولا نتكنى بكناهم ولا نركب السروج ولا نتقلد السيوف ولا نتخذ شيئاً من السلاح ولا نحمله معنا ولا ننقش خواتيمنا بالعربية ولا نبيع الخمور وأن نجز مقاديم رؤوسنا وأن نلزم زينا حيثما كنا وأن نشد الزنانير على أوساطنا، وأن لانظهر صليب على كنائسنا ولا كتبنا في شئ من طريق المسلمين ولا أسواقهم وأن لا نضرب في كنائسنا إلا خفيفاً وأن لا نرفع أصواتنا بالقرآءة في كنائسنا في شيء من حضرة المسلمين وأن لا نخرج شعانين ولا بعوثاً ولا نرفع موتانا مع أمواتنا ولا نظهر النيران معهم في شيء من طرق المسلمين ولا نجاوزهم موتانا.... الخ))

په عهدنامه کښې دَ امان دَ مطالبه نه پس دَدې لاندينو شرائطو دَ خيال ساتلو اقرار وو چه مونږ (دَشام نصاریٰ) به دَمسلمانانو تعظيم اوتوقيرکوو. اوکه چرې مسلمانان زمونږ په مجالسوکښې کيناستل غواړی نومونږ به دَهغوی دَپاره مجلس پريږدو. اومونږ به په يوکارکښې هم دَمسلمانانو سره تشبه اومشابهت نه اختياره وو. نه په لباس کښې نه په پټکی کښې نه په څپلوکښې اونه دَسر په لاروپستوکښې. مونږ به دَ دوی په شان خبرې نه کوو اونه به دَمسلمانانو په شان نومونه اوکنيت ايږدو او نه به په زين باندې په اس سورلی کوو، نه به تورې رازوړنده وو نه به څه قسم وسله جوړه وو اونه به ئې راوچتوو او نه به په خپلو مهرونوباندې عربی نقش کنده کوو اونه به دَ شرابو کاروبارکوو اودَ سر دَ وړاندې حصې ويښته به کټ کوو اومونږ چه کوم ځائی کښې هم اوسيږو په خپله وضع باندې به يو او په غاړوکښې به زنار (مخصوص تار) زوړنده وو او په خپلو ګرجوباندې به دَ صليب نشان نه اوچتوو اودَمسلمانو په يوه لار اوبازارکښې به خپل مذهبی کتاب نه چهاپ کوو. او مونږ به په ګرخوکښې ناقوس (جرس) ډير په مزه آواز سره وهو اومونږ به خپلو مړو سره اور نه اوړو. (دا آخری شرط مجوسيانوسره متعلق دي).

عبدالرحمن بن غنم رحمه الله فرمائی چه ما دا شرائط نامه اوليکله دَحضرت عمرفاروق رضي الله عنه مخې ته مې. دَ کتلودَپاره کيخوده نوهغوی په دې شرائط نامه کښې څه نوره اضافه اوکړه هغه داده. ((وأن لا نضرب أحداً من المسلمين، شرطنا لهم ذلك على أنفسنا وأهل ملتنا وقبلنا منهم الأمان، فإن نحن خالفنا شيئاً مما شرطناه لكم، فضمناه على أنفسنا، فلا ذمة لنا، وقد حل لكم ما يحل لكم من أهل المعاندة والشقاق)) [۱] چه مونږ به يومسلمان نه وهو، يعنی تکليف به ورته نه رسوو، مونږ هم په دې شرائطودَ خپل ځان دَپاره اودَ خپل اهل مذهب دَپاره امن حاصل کړې دې نوکه مونږ په دغه پورتنو شرائطو کښې دَ کوم شرط خلاف ورزی اوکړه نو زمونږ عهد اوامان به ختم شی اوکومه معامله چه دَاهل اسلام دَ دښمنانو او مخالفينوسره ده هم هغه به ددوی دَپاره رواه وی.

[۱] تفسيرابن كثير سورة التوبة: ۲۹، ۳/ ۳۷٤.

يو بل روايت كوم چه علامه ابن كثير رحمه الله نقل كړي دي كښې د دغه پورتنو شرائطونه علاوه څه نور شرطونه هم ذكر دى اوهغه دادى: «أن لانحدث في مدينتنا ولا في حولها ديراً ولا كنيسة، ولا قلاية ولا صومعة راهب، ولا نجدد ما خرب منها، ولا نحيي منها ما كان في خطط المسلمين، وأن لا نمنع كنائسنا أن ينزلها أحد من المسلمين في ليل ولا نهار، وأن نوسع أبوابها للمارة وابن السبيل، وأن ينزل من مرّبنا من المسلمين ثلاثة أيام نطعمهم، ولا نؤوي في كنائسنا ولا منازلنا جاسوساً، ولا نكتم غشاً للمسلمين، ولا نعلم أولادنا القرآن ولا نظهر شركاً، ولا ندعو إليه أحداً، ولا نمنع أحداً من ذوي قرابتنا الدخول في الاسلام إن أرادوا......الخ» ([1])

مونږ به په خپله آبادئى كښې هيڅ نوې ګرجه نه جوړه وو اوكومه ګرجه چه خرابه شى دهغې مرمت به نه كوو، اوكه حصه د زمكې چه دمسلمانانودآپاره وى مونږ به هغه نه آباده وو، اويو مسلمان كه هغه شپه وى اوكه ورځ يووخت به هم د ګرجې د وركوزيدونه منع كوو، اودخپلو ګرجو دروازې به دمسافرو او لارې لاروو دپاره كولاو ساتو اودريو ورځو پورې به دمسلمان ميلمه ميلمستياكوو اوپه خپل يوګرجه اومكان كښې به د مسلمانانو جاسوسى كونكوته ځآنې نه وركوو اودمسلمانانودپاره به بغض اوحسد پټ نه ساتو اوخپل اولاد ته به د قرآن تعليم نه وركوو اويود شرك رسم به په ښكاره اوداګه نه كوو اونه به چاته د شرك دعوت وركوو اونه به خپل خپلوان په اسلام كښې د داخليدو نه منع كوو.

دغه پورتنو شرائطو ته په كتلو سره صفا اندازه كيږى دچه د مسلمانانو اسلامى تشخص په ځائى ساتلو دپاره څومره اهتمام اوكړې شو څكه چه په اسلام كښې د غيرو طريقې راتلل داسلام ختمول او په اسلام كښې دتخريب مترادف دى. حكيم الاسلام قارى محمد طيب صاحب رحمه الله هم دې طرف ته اشاره كولوسره فرمائى چه تشبه بالغير في الحقيقت تخريب حدود اود ابطال ذاتيات نوم دې([2])

غيروسره د اختلاط نه ئى څنګه منع كړل دې دې اندازه لاندې ذكركړې شوې دې مكالمې نه ښه كيدې شى كومه چه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه اود ابوموسى اشعرى رضي الله عنه په مينځ كښې شوې ده.

«أبوموسى: قلت، لعمر رضى الله عنه أن لى كاتباً نصرانياً» «عمر: مالك؟ قاتلك الله! أما سمعت الله يقول: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَىٰ أَوْلِيَاءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ﴾ ألا اتخذت حنفياً؟» «أبوموسى: ياأمير المؤمنين! إن لى كتابته وله دينه. عمر: لا أكرمهم إذا أهانهم الله ولا أعزهم إذا أذلهم الله ولا أدنيهم إذا أقصاهم الله تعالى»

حضرت ابوموسىٰ اشعرى رضي الله عنه فرمائى چه ما حضرت عمر رضي الله عنه ته اوونيل چه ما سره يونصرانى كاتب نوكر دې. حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل په تا څه شوى دى؟ الله دې تاغرق كړى ولې تا د الله جل جلاله دا حكم نه دې اوريدلې چه يهود اونصارىٰ خپل دوستان مه جوړه وئى څكه چه هغوى په خپل مينځ كښې د يو بل دوستان دى، تا يومسلمان ولې نوكر اونه ساتلو؟ ابوموسىٰ اشعرى رضي الله عنه وائى چه ما اوونيل اې اميرالمؤمنين! زما د پاره دهغه كتابت دې اودهغه دپاره د هغه دين ديعنى زماخود هغه كتابت سره غرض دې زمادهغه دين سره څه تعلق دې؟)، حضرت عمر رضي الله عنه جواب وركړو چه د چا اهانت سپكاوې الله جل جلاله كړې دې زه به دهغوى عزت نه كوم څوك چه الله جل جلاله ذليل كړى دى هغه ته به عزت نه وركوم څوك چه الله جل جلاله لرې كړى دى زه به هغوى نه رانيزدې كوم

---

[1] تفسيرابن كثير سورة التوبة: ٢٩، ٣٧٣/٣.
[2] مجموعه رسائل حكيم الاسلام إسلامى تهذيب وتمدن: ٨١/٥

دَدې فائده مندو خبرو اترو نه داخبره ښکاره کیږي چه: ① ترکومې چه یو اضطراري حالت داعي نه وي دَهغه وخته پورې اصل هم دغه دې چه غیرمسلمو نه استغاثه او هغه هم داسې په کوم کښې چه دَهغوی تکریم کیږي. دَ دین متین فهم حقیقي اوعقل اوسوچ دَدې اجازت نه ورکوی. ② دا عذر دَ اوریدو قابل نه دې چه زمونږ خو صرف خدمتګار پکار دې نه چه دهغه مذهب، ځکه چه دَدې خدمت حاصلولو کښې هغوی سره ملګرتیا به هغه سختوالې او تغلیظ کم یا یوطرف ته کړی کوم چه دَ یومسلمان اسلامي شعار ښائي او هم دغه دُ تغلیظ قلت آخر مداهنت او سترګې پټول اودَ دین نه اعراض مقدمه جوړیدو سره څومره دَ دین منکرات دَ زیاتیدو سبب ثابتیږي. ③ دَحضرت فاروق اعظم رضی الله عنه او ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه نه پس یوسړې دَهغوی په شان تدین نه شي راوړلې خو که یوسړې فرض کړه راوړي هم نوهیڅ وجه نشته چه دَحضرت ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه غوندې شخصیت خودې دکافرانونه دَخدمت اخستو نه منع کړې شي او دغه سړې دې منع نه کړي.

داخبره منلې کیدې شي چه یوسړې پوخ اودَ صحیح عقیدې والا ایماندار هم دې او دَعمل په دې اشتراك سره په هغه کښې څه اضطراب هم نه شي راتلې لیکن داسې خوکیدې شي چه داسې ذمه وارې هستئی اشتراك عمل دَعامو مسلمانانو دَپاره دَ لوئی استعانت او اختلاط په معامله کښې دَ شك شبه سبب جوړشي او عوام دَخپل خان دَپاره دغه کار حجت اوګنړی اودغه شان دا اختلاط او التباس عام کیدوسره ناقابل تدارك مفاسدسبب جوړشي.

④ دکوم مخلوق چه هغه خالق تکریم اونه کړو اودَهغوی دَپاره نې دَعزت یوه کرښه هم برداشت نه کړه نوهم دَهغه خالق دَ منونکو غیرت اوحمیت خلاف دې چه هغوی دَ هغه دَدښمنانو عزت اوکړي اوخوك چه هغه اوشړي دې دې هغوی سره محبت اوکړي. ګنی دا خودَ اسلام په نوم سره دَ الله ﷻ دَ شرائع توهین او پخپله دَ الله ﷻ دَ کارونو به صریح تکذیب اوشي. نعوذبالله.

⑤ په اسلام کښې محض سیاست مقصودنه دې بلکه محض دین مقصود دې. سیاسې ګربړ صرف دَ دین دَحفاظت دَپاره برداشت کولې شي. نوکه چرې هم دَ سیاست یوه شعبه دَ دین دَ ګډوډوالي یا مداهنت اودَحق نه دَ سترګوپټولو ذریعه جوړه شي نوپه بې پرواهنې سره به دغه ختمولې شي اودَ دین حفاظت به کولې شي ګنی دَ خلاف په صورت کښې به قلب موضوع او انقلاب ماهیت لازم راشي. چه وسیله مقصود شي اومقصوددَ وسیلې په درجه کښې هم پاتې نه شي.[1]

**دَتشبه بالکفار مفاسد:** دَغیرو په شان وضع قطع اودَهغوی په شان لباس اختیارولوکښې ډیرزیات مفاسد دي: ① رومبې نتیجه خو به داوی چه کفر او اسلام کښې به په ښکاره څه فرق پاتې نه شي او حق ملت به باطل ملت سره پټ شي. چه رښتیاتپوس اوکړې نوحقیقت دادې چه تشبه بالنصاریٰ (معاذالله) دَ نصرانیت دروازه اودرشل ده. ② بل دا چه دَغیرو مشابهت اختیارول دَغیرت هم خلاف دي. آخر قومي ننبه او قومي پیژندګلو هم څه څیز دې دکوم نه چه دا ښکاره وي چه دا سړې دَفلانکي قوم دې. نوکه دا ضروري وي نودَدې طریقه بغیرددې نه بل څه دي چه دَ نورو قومونو لباس دې وانچوي. لکه څنګه چه نور قومونه دَ خپلې خپلې وضع پابند دي اودَ نورو قومونو په مقابله کښې دې زمونږ یوخاص پیژندګلو وي. ③ دکافرانو لباس معاشرت استوګنه او لباس اختیارول په حقیقت کښې دَهغوی سیاست او اوچتوالې منل دي بلکه دَخپل ځان کمتری اوتابع کیدلو اقرار او اعلان دې

[1] مجموعه رسائل حکیم الاسلام اسلامی تهذیب وتمدن: ۵/۹۸-۹۷.

دکوم چه اسلام اجازت نه ورکوی. ④ بل دَ دې تشبه بالکفار نتیجه به داوی چه په مزه مزه دَ کفر سره مشابهت سره به په زړه کښې خیال او داعیه پیداکوی کوم چه صراحت سره ممنوع دی. کما قال الله ﷻ: ﴿ وَلَا تَرْكَنُوٓا۟ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِنْ أَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ ﴾ (۱)
اودَهغه خلقو طرف ته مه ورتیتیږه څوك چه ظالمان دی، هسې نه چه دَ هغوی طرف ته مائل کیدو وجې نه په تاسو اور اونه لګی اودَ الله ﷻ نه سوا بل څوك ستاسو دوست اوامدادی نشته بیا به تاسو چرته امداد اونه مومنی. بلکه دَغیرمسلمو لباس او شعار اختیارول دَهغوی دَمحبت علامت دې کوم چه شرعًا ممنوع دې. کماقال الله ﷻ: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ (۲)
اې ایمان والو تاسو یهود اونصاریٰ دوستان مه جوړه وئی. هغوی خپل مینځ کښې دَ یو بل دوستان اوملګری دی. هغوی ستاسو دوستان نه دی اوتاسوکښې چه څوك هغوی دوستان جوړوی هغه به هم دَهغوی نه وی. تحقیق الله ﷻ ظالمانوخلقو ته هدایت نه کوی

⑤ دَدې نه پس په مزه مزه اسلامی لباس اواسلامی تمدن پورې به مسخرو او توقو نوبت راشی اسلامی لباس به سپك ګنړلې شی او تبعاً به دَهغې دَ اسلام خلق هم سپك ګنړلې شی که اسلامی لباس نې سپك نه ګنړلو نو انګریزی لباس به ئې ولې اختیارولو؟

⑥ دَاسلامی احکامو په جاری کولوسره به مشکلات راځی. مسلمان به دَهغوی کافرانه صورت کتلوسره ګمان کوی چه دا څوك یهودی یا نصرانی دې یا هندو دې اوکه چرې داسې نعش ملاؤ شی نو تردد به کیږی چه دَدې کافر په شان انسان جنازه اوکړو که نه؟ او په کوم قبر کښې دې خښ کړو؟

⑦ کله چه اسلامی وضع پرېږدی اودَ نورو قومونو وضع اختیارکړی نو په خپل قوم کښې به دَهغه هیڅ عزت پاتې نه شي اوچه کله قوم دَهغه عزت اونه کړو نو په غیرو باندې څه بوج دې چه دَ هغه عزت به کوی. غیر هم دَهغه عزت کوی دَ چا چه په قوم کښې عزت وی ⑧ دَ بل قوم لباس اختیارول دَخپل قوم نه دَ بې تعلقئی دلیل دې. ⑨ افسوس چه دعوی خودَاسلام مګر لباس خوراك معاشره تمدن ژبه او دَ ژوند تیرولو طریقه ټول په ټول دَ اسلام دَ دښمنانو په شان کله چه حال دادې نودَ اسلام دَ دعوې کولوڅه ضرورت دې؟ اسلام ته دَ داسې مسلمانانو نه څه حاجت شته اونه څه پرواه څوك چه دَ هغه دښمنانو مشابهت دخپل خان دَپاره دَعزت موجب او فخر سبب ګنړی (۳)

**دَتشبه په فقهی اعتبار سره مرتبې:** دَ تشبه ممانعت اومفاسد ښکاره کیدونه پس پوهیدل پکاردی چه دَ تشبه بالکفار هغه کوم مراتب دی په کوم سره چه دَتشبه جواز اوعدم جواز، حرمت اوکراهت استحسان اوعدم استحسان او امکان او عدم امکان تفصیلات واضح کیدوسره مخې ته راشی چنانچه دَ انسان نه صادریدونکی افعال او اعمالو عقلاً دوه قسمونه کیدې شی اضطراری امور او اختیاری امور لاندې په هرو دوارو باندې تفصیلی بحث نقل کولې شی

**په اضطراری امورو کښې دَتشبه اختیارولوحکم:** دَ اضطراری امورو نه مراد هغه امور دی دَ کوم په پیداکولوکښې اوپه نه پیداکولوکښې چه دَانسان دَ اختیاراتو هیڅ دخل نه وی مثلاً دَ انسانی خلقی

---

(۱) سورة الهود: ۱۱۳.
(۲) سورة المائدة: ۵۱
(۳) مسئله تشبه بالکفار للکاندهلوی:ص: ۲۰-۱۶.

اوضاع اطوار او جبلي اقتضاءات يعنى دهغه د بدن اندامونه، مخ سټ بيا د ده ذاتي عوارض مثلا اولږه، تنده په دغه دننه داعيه سره په خوراك څښاك باندي مجبورکيدل خپل بدن پټول وغيره داسي امور دي کوم چه غيراختياري دي که چري هغه نه هم غواړي خو بيا هم دغه جذبات د هغه په زړه باندي وربيره کوي.

نوبنکاره خبره ده چه شريعت په داسي کارونوکښي انسان ته خطاب نه کوي دا امور په کافرانو او غير کافرانوکښي مشترك دی داسي نه شي ونيلي کيدي چه منع د تشبه د وجي نه دي اشتراك ختم کړي شي. يعني شريعت په دي امورو کښي دانه وائي چه کافران خوراك کوي نوتاسو دهغوی مشابهت ترك کولوسره خوراك مه کوني، يا لکه هغوی لباس اچوی لهذا تاسو لباس مه اچوني يا دهغوی لاسونه پوزه اوخپي وغيره دي نوتاسودهغوی په مخالفت کښي دغه اندامونه پري کړني. بلکه شريعت ددي خبري حکم ورکوی چه تاسو خوراك اوکړني خو تاسو د خوراك طريقي دترك تشبه په ذريعه سره ممتاز ضرور جوړي کړني خکه چه دا ستاسو اختياري فعل دي. دغه شان شريعت دا نه وائي چه د ترك تشبه په جوش کښي لباس ترك کړني ليکن دا ضرور وائي چه تاسو د لباس وضع قطع د غيرو قومونو د لباس نه ممتاز او جدا اوساتني اودا خامخا ستاسو په حدود او اختيارکښي دي.

شريعت به کله هم اونه وائي چه تاسو دغير مسلم پوزه غوږ وغيره کټلوسره په ترك تشبه خپل د بدن اندامونه پري کړني دا اندامونه ستاسو په اختيار او پيدا کولوسره کله په وجودکښي راغلي دي؟او دا خبره به ضرور کوي چه ستاسو د مخ اوبدن بنانست د غيرو قومونود زينت نه دي جدا وی خکه چه دا خو هم ستاسو د اختيار فعل دي.

شريعت به چري هم دا اونه وائي چه دخپل بدن اندامونه پري کړني خکه چه دا ستاسو اعضاء او جوارح د غيرمسلم قومونو په شان دی. ددي دپاره د مشابهت په وجه دا نه دی کيدل پکار او دا به ضرور وائي چه صحيح ده ددي په وجود کښي راتلل ستاسو په اختيار او پيدا کولوسره نه دی شوی ليکن ستاسو د اعضاء دا بنانست او جوړخ د غير اقوامونه ممتاز او جدا کيدل خو هم ستاسو اختياري فعل دي هغه درنه پاتي نه شي.

**په اختياري امورو کښي دتشبه اختيارولوحکم:** دي نه پس پوهيدل پکاردی چه دانسان نه صادر کيدونکي اختياري امور دوه قسمه دی. مذهبي امور او معاشرتي امور.

**په مذهبي امورو کښي دتشبه حکم:** دمذهبي امورو نه مراد هغه اعمال دي د کوم تعلق چه مذهب سره دي يعني دغه اعمال او افعال دعبادت په توګه سره کولي شي. لکه د نصاری په شان په سينه باندي صليب زوړندول، د هندوانو په شان زنار تړل، يا په تندی باندي قشقه لګول، يا د سيکهانو په شان په لاس کښي د اوسپني کړه اچول وغيره، نو ددي قسم په مذهبي امورو کښي د غيرقومونو مشابهت اختيارول بالکل ناجائز او حرام دی. هم ددي حرمت د وجي نه داسلامي اقدارو امتياز باقي پاتي کيدي شي ګني دغيرو سره ګډوډوالي نه د تباهئي نه علاوه به نور هيڅ هم حاصل نه شي.

**په عادي اومعاشرتي امورو کښي دتشبه حکم** عادي اومعاشرتي امور هم دوه قسمه دی. يوهغه امور چه قبيح بالذات دی يعني دکوم نه چه شريعت اسلامي نيغ په نيغ منع کړي ده چه دغه کارونه به نه کوني. دويم هغه امور کوم چه مباح بالذات دی د کوم نه چه شريعت نيغ په نيغه کړي نه ده خود نورو خارجي امورو د وجي نه ني هغه منع کړی وی

**په قبيح بالذات امورو کښي دتشبه حکم:** په قبيح بالذات امورو کښي هم دغير قومونو مشابهت اختيارول هم حرام دی لکه د ګيټونه لاندي پرتوګ زوړندول، ريښمن لباس استعمالول يا د يوقوم

دداسې حركت نقل كول په كوم كښې چه دهغوى د باطل معبودانو تعظيم وى لكه د بتانو مخې ته تيتيدل وغيره. په دې افعالوكښې دتشبه حرمت په دې وجه دې چه دا امور بالذات قبيح دى. د شريعت د طرف نه ددې ممانعت په صفاتوګه راغلې دې.

**په مباح بالذات امورو كښې دتشبه حكم:** كه چرې هغه امور دخپل ذات په اعتبارسره قبيح نه وى بلكه مباح وى نود هغې هم دوه صورتونه دى. يو هغه امور چه د يوغير قوم شعار (يعنى علامتى او شناختى علامت) وى. دويم هغه افعال چه د يو غير قوم شعار نه وى. ددې دواړو قسمونو تفصيل لاندې ليكلې كيږى:

**دغير قومونو په شعائركښې مشابهت:** كه چرې هغه امور (مباح بالذات) وى اود غيرو قومونوشعائر (يعنى علامتى اوشناختى علامت) نه وى نوبياهم په دغه امورو كښې دغيرو قومونو مشابهت اختيارول حرام دى. مثلاً دغير قوم هغه لباس چه صرف هم دهغوى طرف ته منسوب وى اوهم دهغوى په نسبت سره مشهور وى اود دغه مخصوص لباس استعمالونكې هم دهغوى نه ګنړلې شى. لكه زمونږ په زمانه او زمونږ په علاقه كښې دمحرّم په مياشت كښې خصوصا او باقى ورخوكښې عموماً تورلباس يا صرف تور قميص د شيعه ګانو طريقه ده اودغه شان شين پټكې او د تيز براؤن رنګ څادر په دې دوركښې د يو بدعتى جماعت طريقه جوړه شوې ده.

**مطلقاً د غيرو په افعال كښې دمشابهت حكم:** كه چرې هغه مباح بالذات امور د غيرمسلم قومونو طريقې نه نه دى نوبيا د دغه افعالو دوه قسمونه دى. چه ددغه افعالو بدل مسلمانانوسره موجوددې يادهغې بدل مسلمانانوسره موجود نه دې.پدې دواړو قسمونوكښې دمشابهت حكم لاندې اوګورئ.

**په ذى بدل څيزونو كښې د غيرو دمشابهت اختيارولوحكم:** كه چرې په دغه مباح بالذات اموروكښې مسلمانانوسره په امتيازى توګه باندې داسې طور طريقې موجود وى چه دكافرانود طور طريقې مشابهه نه وى نو په داسې امورو كښې دغيرو مشابهت مكروه دې. ځكه چه د اسلامى غيرت تقاضا هم دغه ده چه مونږ د دغه قومونو دغه ټولو څيزونو استعمال پريږدو د كوم بدل چه مونږ سره موجود وى ګنې دا د مسلمانانو قومونودپاره به دعزت خلاف يو څيز وى اوبغيرد ضرورت نه هسې به د نورو خلقو محتاج جوړيږى. لكه څنګه چه رسول الله ﷺ دچا په لاس كښې فارسى كمان (يعنى د ايران د ملك جوړشوې كمان) اوليدلو نو په خفګان ئې ارشاد اوفرمائيلو داڅه دې راخستې دى؟ دا اوغورزه او عربى كمان په لاس كښې واخله. د كوم په ذريعه چه الله ﷻ تاسو ته قوت او عزت دركړې اود زمكې ښارونه مو فتح كړل.اوګورئ (عن على رضى الله عنه، قال: كانت بيد رسول الله صلى الله عليه وسلم قوس عربية، فرأى رجلا بيده قوس فارسية، فقال: ماهذه؟ ألقها، وعليكم بهذه وأشباهها ورماح القنا فإنهما يزيد الله لكم بهما فى الدين، ويمكن لكم فى البلاد)[1] چونكه د فارسى كمان بدل عربى كمان موجودوو په دې وجه حضور پاك ورته غيرت واچولو منع ئې كړو دې دپاره چه غير قوم سره دهر ممكن نه دممكن امتياز پيداشى اود وړوكى نه وړوكې اشتراك هم ختم شى.

**په غير ذى بدل څيزونو كښې د غيرو دمشابهت حكم:** اوكه چرې د غيرقومونو څيزونه داسې وى چه د هغې څه بدل مسلمانانوسره موجودنه وى لكه د نن يورپ نوى نوى ايجادات، نوې وسله، دتهذيب اوتمدن نوى نوى سامانونه. نود دې بيا دوه صورتونه دى يا خوبه د دې استعمال د تشبه په نيت سره

[1] سنن ابن ماجة كتاب الجهاد باب السلاح رقم الحديث: ٢٨١٠.

کولې شي اویا به د تشبه د نیت نه بغیر کولې شي. په رومبي صورت کښې به استعمال جائزنه وي ځکه چه تشبه بالکفار په نیت او ارادې سره مقصود جوړول. د هغې طرف ته خیال اورغبت نه بغیر نه شي کیدې اودکافرانوطرف ته خیال یقینا د اسلام ځیز نه دې بلکه د اسلام نه ویستونکې ځیز دې قرآن کریم خو صفا اعلان کړې دې ﴿وَلَا تَرْكَنُوٓا۟ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ﴾ (۱) اودهغوی طرف ته مه تیتیږه کوم چه ظالمان دي هسې نه چه دهغوی طرف ته مائل کیدو د وجې نه تاسو پورې اور اونه لګي.
بل د غیرمسلم تقلید یومسلمان د ترقئی منزل ته نه شي رسولې لکه چه د تیارو تقلید د نور په برق کښې، د مرض تقلید په صحت کښې او د یوضد تقلید د بل ضد کښې څه اضافه او قوت نه شي پیداکولې. اوکه په دې ځیزونو کښې د تشبه نیت نه وي بلکه په اتفاقي توګه یا د ضرورت په توګه په استعمال کښې راځي نود ضرورت دحد پورې دهغې په استعمال کښې څه حرج نشته دې (۲)
**د کلام خلاصه:** ددې پوره بحث خلاصه داده چه مونږ مسلمانان د خپل تهذیب او خپل اقدار باقي ساتلو سره د هرغیرمسلم قوم د طور طریقونه د بچ کیدو هرممکن کوشش اوکړو.
**دحضرت کشمیری رحمه الله تحقیق:** دتشبه بالکفار د ممانعت باره کښې یو ډیره ښکلې نتیجه ورکونکې بحث صاحب انوار الباري حضرت مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله نقل کړې دې، فرماني د شعار بحث به صرف په هغه امورو کښې چلیږي دکوم باره کښې چه د صاحب شرع نه څه د ممانعت حکم موجودنه وي کښې دهر شرعي ممنوع نه به خان ساتل ضروري وي که هغه د یوقوم شعار وي اوکه نه وي. دې نه پس د کوموځیزونوچه ممانعت موجودنه وي اوهغه د نورو شعار وي نودهغې نه به هم مسلمانانوله خان ساتل ضروري وي. که چرې هغه بندنه شو اودهغې تعامل هم د نورو په شان عام شي تردې چه د دې زماني مسلمانان صالحان هم هغه اختیارکړي نوبیابه د ممانعت سختي باقي پاتې نه شي لکه څنګه چه دکوټ استعمال په شروع کښې صرف د انګریزانو لباس ګڼرلې شو بیا هغه په مسلمانانو کښې راخور شو تردې چه په پنجاب کښې صلحاء او علماء پورې خلقو اختیارکړو نوچه کوم قباحت په شروع کښې د اختیارونکو دپاره وو هغه په آخره کښې باقي پاتې نه شو او حکم بدل شو خو چه کوم امورو په کافرانو اومشرکانو کښې د مذهبي شعار په توګه رائج وي یا د کوم ممانعت چه صاحب شرع په صراحت سره کړې وي په هغې کښې د جواز یا نرمئی حکم هیڅ کله نه شي ورکولې (۳)
دتشبه سره متعلق آخري خبره چه کوم کوم صورتونه به تشبه بالغیر ګڼرلې شي. ددې باره کښې زمونږ د دیوبند علماؤ موقع په موقع د امت مسلمه لار خودنه کړې ده دکوم نظائر چه د دغه اکابرعلماؤ په مطبوعه اردو فتاوی کښې کتلې شي. واضحه دې وي چه په لباس کښې مشابهت ،که هغه لباس دغیرو مخصوص لباس نه وي اود هغې، تعلق دهرې علاقې مزاج او عرف سره وي. چه هم یو ځیز په یوښار اوعلاقه کښې دعرف د وجې نه ناجائز وي نوهم هغه ځیز په بله علاقه کښې د عرف نه کیدو د وجې نه ناجائزنه وي. ددې دپاره په دې معامله کښې دخپلې علاقې ماهر تجربه کار مفتیان عظام سره رابطه کولوسره د حقیقي صورت نه خان خبرول ضروري دی. «وَقَالَ الْحَسَنُ فِي الثِّيَابِ يَنْسِجُهَا الْمَجُوسِيُّ: لَمْ يَرَ بِهَا بَأْسًا. وَقَالَ مَعْمَرٌ: رَأَيْتُ الزُّهْرِيَّ: يَلْبَسُ مِنْ ثِيَابِ الْيَمَنِ مَا صُبِغَ بِالْبَوْلِ. وَصَلَّى عَلِيٌّ فِي ثَوْبٍ غَيْرِ مَقْصُورٍ»

---

(۱) سورة الهود: ۱۱۳.
(۲) مجموعه رسائل حکیم الإسلام اسلامی تهذیب وتمدن: ۱۳۳/۵-۱۲۸تشبه بالکفار للکاندهلوی ص: ۸ – ۱۲ أنوارالباري:۱۰۶/۱۱-۱۰۵فیض الباري:۱۵/۲.
(۳) فیض الباري: ۱۵/۲أنوارالباري: ۱۰۱/۵.

**قوله: وقال الحسن فی الثیاب ینسجها المجوسی لم یر بها بأسا**: حسن بصری دهغه کپړوباره کښې فرمائیلي کومې چه مجوسیان جوړه وی (چه دهغې په اغوستو سره مونځ کولو کښې) هیڅ حرج نشته دې

**قوله: الحسن**: دامشهور تابعی ابوسعید الحسن بن ابی الحسن یسار بصری رحمه الله دې دَدوی تفصیلی حالات کتاب الایمان باب وان طائفتان من المؤمنین اقتتلوا فاصلحوا بینهما، فسماهم المؤمنین کښې تیر شوی دی [۱]

**قوله: ینسجها**: ینسجها بکسر السین المهملة وضمها وبضم الجیم دې دَدې معنی ده بنړل یا تیارول [۲]

**قوله: المجوسی**: دَحموی اوکشمیهنی په روایت کښې دغه شان دې دَمفرد صیغې سره اومراد جنس مجوس دی اودَدې دوو حضراتونه علاوه نسخو کښې دَ جمع صیغې سره دې المجوس [۳]

**قوله: لم یر**: لم یر معروف اومجهول دواړه شان استعمال کړې شوې دې. معروف لوستونکې راوی علامه عینی رحمه الله او مجهول لوستونکې راوی علامه کرمانی رحمه الله دې. په رومبی صورت کښې دَ لم یر فاعل حضرت حسن بصری رحمه الله وی او دا صیغه به دَ صنعت تجرید نه وی لکه چه حضرت حسن رحمه الله دَ خپل ځان نه یوسړې جدا کړو اوبیائې دَ هغه طرف ته دَ غائب اسناد راوګرځول اودَ مجهول په صورت کښې دَ ده نائب فاعل القوم ګرځولې شوې دې. [۴]

**دَمذکوره جملې تخریج**: دااثر ابن ابی شیبه رحمه الله موصولاً نقل کړې دې، اوګورئ (حدثنا وکیع، قال: لابأس بالصلاة فی رداء الیهودي والنصراني) [۵] اودَدې نه هم واضحه اثر حافظ صاحب رحمه الله دَابونعیم بن حماد رحمه الله په نسبت سره ذکر کړې دې: (عن معتمر عن هشام، عن الحسن: لابأس بالصلاة فی الثوب الذي ینسجه المجوسي قبل أن یغسل) [۶] اوپه داسې لباس کښې دَ مونځ اداکولوباره کښې ابن سیرین رحمه الله نه دَ کراهت قول نقل دې. [۷]

**قوله: وقال معمر: رأیت الزهري یلبس من ثیاب الیمن ما صبغ بالبول**: معمر رحمه الله وائی ما زهری رحمه الله دَ یمن په داسې کپړو اغوستو سره لیدلې کوم چه به متیازو سره رنګ کولې شوې

**معمر**: معمر په فتح دَ میم مشهور امام دې دَدوی نوم معمر بن راشد ازدی حدانی بصری دې دَدوی حالات کتاب بدء الوحي پنځم حدیث او کتاب العلم باب کتابه العلم دَ دریم حدیث لاندې تیرشوی دی [۸]

**زهري**: دا ابوبکر محمدبن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب بن عبدالله لوئی الزهری المدنی رحمه الله دې دَ دوی حالات کتاب بدء الوحي باب کیف کان بدء الوحي دَ دریم حدیث لاندې تیرشوی دی. [۹]

---

[۱] کشف الباری: ۲/ ۲۲۰.
[۲] فتح الباری: ۲/ ۶۲۴عمدة القاری: ۴/ ۱۰۹.
[۳] شرح الکرمانی: ۴/ ۲۱فتح الباری: ۲/ ۶۲۴عمدة القاری: ۴/ ۱۰۴.
[۴] شرح الکرمانی: ۴/ ۲۱فتح الباری: ۲/ ۶۲۴عمدة القاری: ۴/ ۱۰۴.
[۵] المصنف لابن أبی شیبة کتاب الصلاة فی الثوب یخرج من النساج، رقم الحدیث: ۶۳۷۰
[۶] فتح الباری: ۲/ ۶۲۴
[۷] المصنف لابن أبی شیبة رقم الحدیث: ۶۳۶۹
[۸] کشف الباری: ۱/ ۴۶۵، ۴/ ۳۲۱.
[۹] کشف الباری: ۱/ ۳۲۶.

**د اثر تخريج:** د امام زهرى رحمه الله دا مذكوره اثر امام عبدالرزاق بن همام رحمه الله المصنف كښې موصولاً ذكر كړې دې. «عبدالرزاق عن معمر قال: رأيت الزهري يلبس ما صبغ بالبول» يعنى عبدالرزاق رحمه الله د معمر رحمه الله نه روايت كړې دې چه معمر رحمه الله فرمائى ما زهرى رحمه الله په داسې كپړو كښې اوليدلو چه په متيازو سره رنګ كړې شوې وې.([1])

**ماصبغ بالبول:** د يمن په ملك كښې به كپړې جوړيدو سره په متيازو كښې رنګ كولې شوې. چنانچه معمر رحمه الله د زهرى رحمه الله هغه حالت بيانوى كوم وخت چه هغوى هغه كپړې اچولې وې. په دې باره كښې ډيرو ائمه حضراتو مختلف توجيهات بيان كړې دى كوم چه دلته ذكركولې شى: شيخ الاسلام زكريا الانصارى رحمه الله فرمائى چه امام زهرى رحمه الله به داسې لباس د مونځ نه بهر استعمالولو اوهغه هم د اوچيدو په حالت كښې([2]) علامه كرمانى رحمه الله حافظ ابن حجر رحمه الله علامه عينى رحمه الله اونور ډير ائمه حضرات دا ذكركړې دى چه البول په شروع كښې كوم الف لام دې هغه د جنس د پاره دې يا عهدى دې كه چرې جنسى وى نومراد به داشى چه هغوى به داسې كپړې د وينځلونه پس استعمالولې. يعنى چه كله به په وينځلوسره د متيازو اثر ختميدلو نوبيابه ئې هغه كپړې استعمالولې. اوكه چرې الف لام عهدى وى نومطلب به داشى چه هغه متيازې به د هغه څناورو وې دكومو غوښې چه خوړلې شى يعنى د حلال څاروى. او امام زهرى رحمه الله د ماكول اللحم حيوانات د متيازو د طهارت قائل وو.([3])

**د ماكول اللحم حيواناتو د ابوالوسره متعلق د امام زهرى رحمه الله مسلك:** امام زهرى رحمه الله چه كومې د يمن د ملك كپړې اچولې وې په دې باره كښې د بخارى اكثر شراح ليكلى دى چه د دې وجه دا وه چه امام زهرى رحمه الله به حلال څاروو متيازې پاكې ګڼړلې.

**د علامه انور شاه كشميرى رحمه الله تحقيق:** حضرت كشميرى رحمه الله د شراح بخارى د دې خبرې باره كښې فرمائى چه د امام زهرى رحمه الله طرف ته دا نسبت غلط دې ځكه چه زما په نيز د هغوى مذهب هم د ټولو ابوالو د نجاست دې. او د دې په ثبوت كښې ماسره د مصنف عبدالرزاق وغيره نقول دى. بيا د دغه ټولو باوجود د هغې د مذكوره استعمال وجه دا وه چه داسې كپړې به په متيازوكښې د رنګ كولونه پس د وينځلو رواج هم وو. په دې وجه هغوى به هم خامخا د وينځلونه پس استعمالولې اود وينځلونه پس د استعمال ذكر دلته ځكه اوكړې شو كوم طبائع د داسې كپړو استعمال د وينځلونه پس نه خوښوى هغوى ته به په دې نقل سره فائده وى چه طبعى كراهت به نه كوى. بيائى اوفرمائيل چه ما ته د كله نه دا معلومه شوې ده چه حيدرآبادى رومال د ګډو اوچيلو په متيازو كښې رنګ كولې شى نوزه ئې هم د استعمال نه وړاندې وينځم.

دې نه علاوه نورفرمائى چه دا قول معمر عن زهرى نه استدلال كولوسره د امام زهرى رحمه الله مذهب «طهارة أبوال ماكول اللحم» ګرځول صحيح نه دى ځكه چه د مصنف عبدالرزاق نه د هغوى مذهب نجاست ابوال ثابت دې او امام بخارى رحمه الله په كتاب الطب كښې «باب ألبان الأتن» قائم كړې دې په دې كښې «هل تشرب أبوال الإبل» سره هم اشاره د نجاست طرف ته ده. (د دې سوال جواب كښې ابوادريس رحمه الله

---

[1]) المصنف لعبدالرزاق كتاب الصلاة باب ماجاء فى الثوب يصبغ بالبول رقم الحديث: ۱٤۹۸، ۱/ ۲۹۲.

[2]) تحفة البارى: ۱/ ۲۸۹.

[3]) شرح الكرمانى: ٤/ ۲۲-۲۱فتح البارى: ۲/ ٦۲٤عمدة القارى: ٤/ ۱۰٤شرح ابن بطال: ۲/ ۲۳الكوثر الجارى: ۲/ ٤۳إرشاد السـارى: ۲/ ۲۱فيض البارى: ۲/ ۱٥.

ونيلي چه د دواني په ضرورت سره د دې استعمال جائز ګنړلې شوې دې ګنی که دغه سائل او مجيب په نظر کښې پاکې وې نو د مذکوره سوال اوجواب څه موقع وه؟.

پوره روايت دا شان دې [1] «حدثني عن يونس عن ابن شهاب قال: وسألته: هل نتوضأ أو نشرب ألبان الأتن أو مرارة السبع أو أبوال الإبل؟ فقال: قد كان المسلمون يتداوون بها، فلا يرون بذلك بأساً، فأما ألبان الأتن: فقد بلغنا أن رسول الله صلى الله عليه وسلم نهى عن لحومها، ولم يبلغنا عن ألبانها أمر ولا نهي» يعنى شاه صاحب رحمه الله فرمائي چه ما د حضرت عمر رضي الله عنه أثر هم ليدلې دې چه هغوی د يمنی کپړو د استعمال د ممانعت اراده کړې وه چه په متيازو سره به رنګ کولې شوې. ليکن چه کله حضرت أبی رضي الله عنه اووئيل چه تاسو د يوداسې څيز د ممانعت حکم څنګه ورکولې شئ د کوم ممانعت چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه ثابت نه دې نو حضرت عمر اراده ترک کړه.

پوره روايت داسې دې: «عبدالرزاق عن ابن عيينة عن عمرو عن الحسن قال: قال عمر، لو نهينا عن هذا العصب فإنه يصبغ بالبول، فقال أبي بن كعب: والله! ما ذلك لك، قال: مه؟ قال: لأنا لبسناها على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم والقرآن ينزل، وكفن فيه رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال عمر: صدقت» [2]

مطلب دا چه حضرت عمر رضي الله عنه هم مطلقاً د ټولو ابوالو د نجاست قائل وو څکه خونی د يمنی کپړې استعمال بندول غوښتل. مګر د داسې کپړو د وينځلو نه پس د استعمال شرعاً ګنجائش موجود وو اوهم د دې وجې نه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه ممانعت ثابت نه وو نو حضرت عمر د حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه خبره قبوله کړه دې د پاره چه خلق په سختنی اوتنګوالی کښې راګيرنه شی. بيا چه کله د امام زهری رحمه الله مذهب هم د ټولو ابوالو د نجاست وو نو هغه به ولې بغير د وينځلو نه يمنی کپړې استعمالولې شوې؟ [3]

**د ماکول اللحم څناورو د متيازو حکم** : کتاب الطهارة کښې د ماکول اللحم څناورو د طهارت اوعدم طهارت مسئله سره د اختلافات د ائمه تيره شوې ده د کومې خلاصه چه داده. د امام ابوحنيفه رحمه الله امام شافعی رحمه الله او سفيان ثوری رحمه الله په نيز هر قسم ميتازې بول و براز نجس دي او په صاحبينو کښې د امام ابويوسف رحمه الله مذهب هم دغه دې [4] او حافظ صاحب رحمه الله دا مذهب د جمهورو مذهب ګرځولې دې [5]

امام مالک رحمه الله امام احمد رحمه الله امام بخاری رحمه الله او امام اوزاعی رحمه الله په نيز د ماکول اللحم متيازې پاکې دی. فيض البارى کښې ليکلی دی چه د امام محمد رحمه الله اوامام زفر رحمه الله هم دغه مسلك دې او علامه شوکانی رحمه الله ليکلی دی چه د شوافع نه ابن المنذر رحمه الله ابن خزيمه رحمه الله ابن حبان رحمه الله او اصطخری و رؤيانی هم دغه مسلك دې [6]

---

[1] صحيح البخارى كتاب الطب باب ألبان الأتن رقم الحديث: ٥٧٨١.

[2] المصنف لعبدالرزاق باب ماجاء في الثوب يصبغ بالبول رقم الحديث: ١٤٩٧.

[3] فيض البارى: ١٥/٢ أنوار البارى: ١٠٧/١١-١٠٦.

[4] عمدة القارى: ٣٣١/٣.

[5] فتح البارى: ٤٤٧/٢.

[6] نيل الأوطار كتاب الطهارة باب الرخصة فى بول ما يوكل لحمه، قم الحديث: ٣٧،٦٠/١ عمدة القارى كتاب الوضوء، باب أبوال الإبل والدواب والغنم ومرابضها رقم الحديث: ٢٣٣، ٢٣١/٣.

**د نجاست د قائلین دلیل:** امام ابوحنیفه رحمه الله امام ابویوسف رحمه الله او نورو ائمه چه د هرقسم متیازو د نجس کیدو قائل دی د هغوی دلیل «استنزهوا من البول فإن عامة عذاب القبر منه» دی. د دې حدیث مطلب دا دې چه د ټولو متیازو د څاڅکو نه بچ کیږئی ځکه په عام توګه د عذاب قبر سبب د متیازو د څاڅکو نه بچ کیدل دی.

داحدیث په مختلف طرق او مختلف الفاظوسره الدارقطنی المستدرك علی الصحیحین الجامع الصغیرنیل الأوطار الترغیب والترهیب الجامع الکبیر للطبرانی او په مجمع الزوائد وغیره کنبې ذکر کړې دې. [1]

**د طهارت د قائلین دلیل:** د ماکول اللحم د ابوال د طهارت د قائلینو دلیل حدیث عرینه دې. [2] د دې حضراتو ټول دلائل او د هغې جوابات په خپل مقام باندې تیرشوی دی.

**قوله: وصلی علی فی ثوب غیر مقصور:** علی کوره (بغیر وینځلو) کپړو کنبې مونځ ادا کړو.

**علي:** دا امیر المؤمنین سیدنا علی بن ابی طالب بن هاشم مکی مدنی رضی الله عنه دې د دوی تفصیلی حالات کتاب العلم باب إثم من کذب علی النبی صلی الله علیه وسلم کنبې تیرشوی دی. [3]

**د اثر تخریج:** مذکوره اثر موصولاً ابن سعد رحمه الله د عطاء بن محمد رحمه الله په طریق سره الطبقات الکبری کنبې نقل کړې دې. «عن عطاء بن محمد قال: رأیت علیاً رضی الله عنه صلی وعلیه قمیص کرابیس غیر مغسول» [4]

**قوله: غیر مقصور:** دې نه مراد خام څیز دې یعنی کوری څیز، خام یا کوره مال هغې ته وائی چه په وجود کنبې د راتلونه پس ډیر زیات استعمال شوې نه وی یا وینځلې شوې نه وی [5] دلته هم دغه مراد دې چه حضرت علی رضی الله عنه په داسې کپړو کنبې مونځ اوکړو چه نوې وې وینځلې شوې نه وې.

**د مذکوره آثار ترجمة الباب سره مناسبت:** امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب د جز په توګه درې آثار ذکرکړی دی. په دې کنبې د رومبی اثر ترجمة الباب سره خو مناسبت ښکاره دې البته دویم اثر د ترجمة الباب موافق نه دې. په دې باره کنبې علامه عینی رحمه الله لیکی چه رومبې اثر مقصودی دې او باقی دوه د دې رومبی اثر د موافقت د پاره هم طردا للباب ذکر کړې شوی دی [6]

---

[1] سنن الدارقطنی کتاب الطهارة باب نجاسة البول والأمر بالتنزه رقم الحدیث: ۲، ۷، ۹ المستدرک علی الصحیحین کتاب الطهارة رقم الحدیث: ۶۵۳ الجامع الصغیر باب حرف الألف رقم الحدیث: ۱۳ نیل الأوطار کتاب الطهارة باب الرخصة فی بول مایوکل لحمه رقم الحدیث:۳۷، ۶۰/۱ الترغیب والترهیب الترهیب إصابة البول الثوب رقم الحدیث: ۱۶۷، ۱۵۸، ۱۶۱ الجامع الکبیر للطبرانی باب الصاد صدی بن عجلان أبو أمامة الباهلی رقم الحدیث: ۶۷۰۵، ۶۸۶۹ مجمع الزوائد کتاب الطهارة باب استنزاه من البول رقم الحدیث: ۱۰۳۳، ۴۲۹۳.

[2] صحیح البخاری کتاب الوضوء باب أبوال الإبل رقم الحدیث:۲۳۳.

[3] کشف الباری:۱۴۹/۴.

[4] الطبقات الکبری لابن سعد ذکر لباس علی رضی الله عنه:۱۸/۲ الزهد لابن حنبل زهد امیرالمؤمنین علی ابن ابی طالب رضی الله عنه: ۱۶۲/۱ العلل ومعرفة الرجال رقم الحدیث:۴۰۴۱، ۳۲/۳.

[5] فتح الباری: ۶۲۴/۲ إرشادالساری:۲۹/۲.

[6] عمدة القاری:۱۰۴/۴.

## الحديث الأول

[۳٥٦]- حَدَّثَنَا يَحْيَى، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ مُسْلِمٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ مُغِيرَةَ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ: كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَقَالَ: «يَا مُغِيرَةُ خُذِ الإِدَاوَةَ»، فَأَخَذْتُهَا، فَانْطَلَقَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى تَوَارَى عَنِّي، فَقَضَى حَاجَتَهُ، وَعَلَيْهِ جُبَّةٌ شَأْمِيَّةٌ، فَذَهَبَ [ص: ۸۲] لِيُخْرِجَ يَدَهُ مِنْ كُمِّهَا فَضَاقَتْ، فَأَخْرَجَ يَدَهُ مِنْ أَسْفَلِهَا، فَصَبَبْتُ عَلَيْهِ، فَتَوَضَّأَ وُضُوءَهُ لِلصَّلاَةِ، وَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ، ثُمَّ صَلَّى (۱) [ر۱۸۰]

**ترجمه:** حضرت مغيرة بن شعبه رضی الله عنه روايت كوی چه زه په يوسفركښې نبی اكرم صلی الله علیه وسلم سره وم، حضورپاك اوفرمائيل اې مغيره! د اوبولوښې خان سره واخله چنانچه ما واخستلو. بيا حضورپاك لاړو تردې چه زما نه پناه شو (يعنی دومره لرې لاړو تردې چه) زما د نظر نه غائب شو. بيا حضورپاك خپل حاجت پوره كړو. حضورپاك هغه وخت شامې جبه اغوستې وه. حضورپاك د هغې د لستوڼې نه خپل لاس راويستل غوښتل نو هغه تنګ (كيدو د وجې نه نه پورته كيدل) لهذا حضورپاك خپل لاس مبارك د هغې د لاندې نه راويستل. بيا ما د حضورپاك د اودس په اندامونو مبارکو باندې اوبه واچولې. حضورپاك د مانځه د اودس په شان اودس اوكړو په خپلو موزو باندې مسح اوكړه او بيائې مونځ اداكړو.

### تراجم رجال

**يحيٰی:** دا ابوزكريا يحيی بن موسی البلخی رحمه الله دې. د دوی تذكره كتاب الحيض باب دلك المرأة نفسها، إذا تطهرت من المحيض، وكيف تغتسل كښې تيره شوې ده (۲).

ابن ملقن رحمه الله فرمائې چه د دې يحيٰی تذكره «كتاب الجنائز باب الجريد على القبر رقم: ۱۳٦۱» او د سورت رحمٰن د تفسير لاندې هم تيره شوې ده. ابن السكن كتاب الجنائز كښې د مذكوره يحيی نسبت

---

(۱) صحيح البخاری كتاب الوضوء باب الرجل يوضئ صاحبه رقم الحديث: ۱۸۲ وباب المسح على الخفين رقم الحديث: ۲۰۳ وباب إذا أدخل رجليه وهما طاهرتان رقم الحديث: ۲۰٦ وكتاب الصلاة باب الصلاة فی الجبة الشامية رقم الحديث: ۳٦۳ وكتاب الجهاد الجبة فی السفر والحرب رقم الحديث: ۲۹۱۸ وكتاب المغازی باب (بلاعنوان) رقم الحديث: ٤٤۲۱ وكتاب اللباس باب من لبس جبة الصوف فی الغزو، رقم الحديث: ٥۷۹۹ صحيح مسلم كتاب الطهارة باب المسح على الخفين رقم الحديث: ۲۷٤ سنن أبی داؤد كتاب الطهارة باب المسح على الخفين رقم الحديث: ۱٥۱-۱٤۹ سنن الترمذی كتاب الطهارة باب ماجاء فی المسح على الخفين أعلاه وأسفله رقم الحديث: ۹۷-۹۸ سنن النسائی كتاب الطهارة باب المسح على الخفين رقم الحديث: ۱۲٤ وباب المسح على الخفين فی السفر رقم الحديث: ۱۲٥ وباب المسح على العمامة مع الناصية رقم الحديث: ۱۰۸ المؤطا الإمام مالک كتاب الطهارة باب ماجاء فی المسح على الخفين: ۳٦/۱ سنن ابن ماجه كتاب الطهارة باب الرجل يستعين على وضوءه رقم الحديث . ۳۸۹ جامع الأصول كتاب الطهارة الفرع الأول فی جواز المسح رقم الحديث: ٥۲٦۹، ۲۲۸/۷.

(۲) كشف البارى كتاب الحيض باب دلک المرأة نفسها. إذا تطهرت من المحيض.

دَموسی طرف ته کړې دې یعنی یحیٰی بن موسیٰ اوباقی دواړو خایونوکښې بغیرد نسبت نه مهمل پریخې دې.
اوکلاباذی ذکرکړې دې چه یحیٰی دوه دی. یو یحیی بن موسی او بل یحیی بن جعفر بن عون. دا دواړه دَ ابومعاویه نه روایت کوی. بل الطبرانی په خپل معجم کښې یوطریق یحیی الحمانی عن ابی معاویة هم نقل کړې دې. لیکن دا یحیٰی دَامام بخاری رحمه الله دَ شیوخ نه نه دې.[1] علامه کرمانی رحمه الله فرمانی چه یواحتمال داهم دې چه یحیٰی بن معین وی ځکه چه دې هم دَابومعاویه رحمه الله نه روایت کوی اودَ امام بخاری رحمه الله دَ شیوخ نه هم دې.[2]

**ابومعاویه محمد بن خازم:** دامحمدبن خازم التمیمی السعدی الکوفی رحمه الله دې. دَدوی تذکره **کتاب العلم باب الحیاء فی العلم** کښې تیره شوې ده.[3]

**اعمش:** دا ابومحمدسلیمان بن مهران اسدی کوفی رحمه الله دې. چه دَاعمش په لقب سره مشهوردې دَدوی تذکره **کتاب الایمان باب ظلم دون ظلم** لاندې تیره شوې ده.[4]

**مسلم بن صبیح:** دامسلم بن صبیح الهمدنی الکوفی العطار رحمه الله دې. دَ دوی لقب ابوالضحٰی دې. دَ یو قول مطابق مولی همدان دې اودَدویم قول مطابق مولی آل سعید بن العاص القرشی دې.[5]
هغوی چه دَ کوم مشائخونه روایت کړې دې په هغوی کښې جریر بن عبدالله البجلی، جعدة بن هبیرة المخزومی، شهر بن شکل، شریح القاضی، عبدالله بن عباس، عبدالله بن عمر بن الخطاب، عبدالله بن یزید الخطمی، عبدالرحمن بن هلال العبسی، عبیدة السلمانی، علقمة بن قیس النخعی، مسروق بن الأجدع او نعمان بن بشیر رحمهم الله داخل دی. اودَدوی نه روایت کونکوکښې سلیمان الاعمش، جابر الجعفی، الحسن بن عبیدالله، حصین بن عبدالرحمن، سعید بن مسروق الثوری، شباك الضبی، عاصم بن هبدالة، عباد ابن منصور، عطاء بن السائب، عمرو بن المرة، مغیرة بن مقسم رحمهم الله وغیره شامل دی.[6]
ابن معین رحمه الله دَدوی باره کښې فرمائی **ثقة**.[7] ابوزرعه رحمه الله دَهغوی باره کښې فرمائی **ثقة**.[8] ابن حبان دَهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې[9] ابن سعد دَهغوی باره کښې لیکلی دی ((**کان ثقة کثیرالحدیث**))[10] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ((**ثقة فاضل**))[11] دې په سلم هجری کښې دَحضرت عمر

---

[1]) التوضیح لابن ملقن: ۲۹۸/۵.
[2]) شرح الکرمانی: ۲۲/۴.
[3]) کشف الباری: ۶۰۵/۴.
[4]) کشف الباری: ۲۵۱/۲.
[5]) التاریخ الکبیر: ۲۶۴/۷الکاشف. ۵۸۹/۲تقریب التهذیب: ۱۷۹/۲.
[6]) تهذیب الکمال: ۵۲۱/۲۷ الجرح والتعدیل: ۲۱۴/۸.
[7]) الجرح والتعدیل: ۲۱۴/۸تهذیب الکمال: ۵۲۲/۲۷
[8]) الجرح والتعدیل:: ۲۱۴/۸.
[9]) الثقات لابن حبان: ۳۹۱/۵.
[10]) الطبقات الکبری لابن سعد: ۲۸۸/۹.
[11]) تقریب التهذیب: ۱۷۹/۲.

بن عبدالعزيز رحمه الله دخلافت په زمانه کښې وفات شوې.[1] طبقه رابعه کښې د هغوی شمیر کیږی.[2]

**مسروق:** دا ابوعائشه مسروق بن الاجدع بن مالك بن امیه همدانی کوفی رحمه الله دې. ددوی حالات کتاب الایمان باب علامة المنافق ددویم حدیث لاندې تیرشوی دی.[3]

**المغیرة:** دا ابومحمد المغیرة بن شعبه بن ابی عامر الثقفی رضی الله عنه دې. ددوی حالات کتاب الوضوء باب الرجل یوضی صاحبه کښې تیرشوی دی.[4]

## شرح الحدیث

**قوله: کنت مع النبی صلی الله علیه وسلم فی سفر:** حضرت مغیرة بن شعبة رضی الله عنه فرمانی په یوسفر کښې زه نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره ووم. دې سفرنه مراد د تبوك سفردې لکه چه حافظ ابن حجر او نورو شارحینو ددې تصریح کړې ده.[5]

**قوله: خذ الإداوة:** حضورپاك صلی الله علیه وسلم اوفرمانیل اې مغیره! داوبووالا لوښې خان سره واخله. إداوة دهمزه کسره سره، ددې مطلب دې دځرمن نه جوړشوې د اوبو لوښې ددې جمع أداوی راځی.[6]

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دمذکوره حدیث ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دې چه په دواړوکښې د جبه ذکر دې.[7]

**دمذکوره حدیث نه مستفاد امور:** ① په دې حدیث شریف سره په موزو باندې د مسح مشروعیت پته لګی. ② دنورو نه دامداد غوښتلو جواز هم معلومیږی. ③ دباغت ورکړې شوې مردار ځناور ځرمنې استعمال جائز دې. ④ کله چه د نجاست دعدم تحقق علم اوشی نودکافرانو د لباسونو داستعمال جواز معلوم شو. ⑤ په مذکوره حدیث سره په هغه حضراتو باندې رد کیږی چه د آیات وضوء د نزول نه پس د مسح علی الخفین مشروعیت منسوخ کیدلو قائل وو. ځکه چه آیات وضوء په غزوه مریسیع کښې نازل شوې وو او دا واقعه (مسح علی الخفین) غزوه تبوك کښې پیښه شوې او غزوه تبوك د غزوه مریسیع نه پس واقع شوې وه. ⑥ په سفرکښې چونکه تادی مطلوب وی په دې وجه دآسانتیا په غرض تنګ لباس اغوستل جائز دی. ⑦ د قضاء حاجت دپاره دخلقو د نظر نه لرې تلل مستحب دی. ⑧ په طهارت باندې دوام مستحب اومطلوب دې ځکه چه هم په شروع کښې حکم ورکړې وو چه د

---

[1] تهذیب الکمال: ۵۲۲/۲۷ الثقات لابن حبان: ۲۹۱/۵.

[2] تقریب التهذیب: ۱۷۹/۲.

[3] کشف الباری: ۲۸۱/۲.

[4] کشف الباری کتاب الوضوء باب الرجل یوضی صاحبه.ی

[5] فتح الباری: ۴۰۶/۲ عمدة القاری: ۱۴۷/۳ إرشادالساری: ۲۲/۳ الکوثرالجاری: ۴/۲ شرح الکرمانی: ۳۳/۴.

[6] النهایة فی غریب الحدیث والأثر: ۴۶/۱ تفسیر غریب ما فی الصحیحین: ۱۰۲/۱ القاموس المحیط ص: ۱۱۳۲ المعجم الوسیط ص: ۱۰.

[7] عمدة القاری: ۱۰۵/۴.

اوبولوښې واخله. ⑨ د مذکوره حديث نه د مشرانو استاذانو او مشائخ د مطالبه نه بغير د هغوی د خدمت جواز معلوميږی. ⑩ د ضرورت په وخت متې د لستوڼونه لاندې راويستل جائز دی.[1]

## ۷- باب: كَرَاهِيَةِ التَّعَرِّي فِي الصَّلَاةِ وَغَيْرِهَا

داباب دې په مانځه او بهرد مانځه د بربنډيو مکروه (ناخوښه اوممنوع) کيدو باره کښې موږ سره په مروج نسخوکښې اوعلامه کرمانی رحمه الله په نسخه کښې دا باب داسې دې.[2] (يعنی کَرَاهِيَةِ التَّعَرِّي فِي الصَّلَاةِ وَغَيْرِهَا) خويه نسخه مصريه اوشروح ثلاثه (فتح الباری،عمدة القاری او ارشاد الساری) کښې د دې ترجمې آخری لفظ "وغيرها" نشته دې په دې مقام باندې دې حضراتو داسې ونيلی دی چه په دې ترجمه کښې کشميهنی او حموی د "وغيرها" اضافه کړې ده.[3]

**د ترجمة الباب مقصد**: علامه عينی رحمه الله فرمائی چه د دې باب مقصد ستر د پټولو عموميت بيانول دی لکه چه څنګه د مانځه په حالت کښې ستر پټول فرض دی دغه شان بهرد مانځه نه هم بغيرد ضرورت نه ستر ښکاره کول ناخوښه دی بلکه مکروه دی.[4]

**د حضرت شيخ الحديث رحمه الله رائې**: حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائی چه د شراح رائې ده چه (امام بخاری رحمه الله) اول لباس فی الصلاة ثابت کړو اوس عموم ثابتول فرمائی. که فی الصلاة وی اوکه فی غير الصلاة مګر زما په نيز دا صحيح نه ده څکه چه په دې صورت کښې دا ابواب اللباس کښې ذکرکول پکار وو. بلکه زما په نيز غرض دادې چه په وړاندې باب کښې لباس د فرض په اندازه ثابت کړې شوی دی چه ستر پټول ضروری دی اودلته د باقی بدن پټول ثابتوی چه که چا سره کپړې وی نوهغه د ستر نه علاوه نور بدن هم پټول پکار دی.[5]

## الحديث الأول

[۳۵۷]- حَدَّثَنَا مَطَرُ بْنُ الْفَضْلِ، قَالَ: حَدَّثَنَا رَوْحٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يُحَدِّثُ «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْقُلُ مَعَهُمُ الحِجَارَةَ لِلْكَعْبَةِ وَعَلَيْهِ إِزَارُهُ»، فَقَالَ لَهُ العَبَّاسُ عَمُّهُ: يَا ابْنَ أَخِي، لَوْ حَلَلْتَ إِزَارَكَ فَجَعَلْتَ عَلَى مَنْكِبَيْكَ دُونَ الحِجَارَةِ، قَالَ: «فَحَلَّهُ فَجَعَلَهُ عَلَى مَنْكِبَيْهِ، فَسَقَطَ مَغْشِيًّا عَلَيْهِ، فَمَا رُئِيَ بَعْدَ ذَلِكَ عُرْيَانًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»[6] [۳۶۱۷،۱۵۰۵]

---

[1]) شرح ابن بطال: ۲۳/۲شرح الکرمانی: ۲۲/٤عمدة القاری: ۱۰٤/٤، ۱٤۸/۳-۱٤۷الکوثر الجاری: ٤/۲تحفة الباری: ۲۸۹/۱.

[2]) شرح الکرمانی: ۳٤/٤.

[3]) فتح الباری: ۶۳۵/۲عمدة القاری: ۱۰۶/۳ارشاد الساری: ۳۲/۲تحفة الباری: ۳۸۹/۱.

[4]) عمدة القاری: ۱۰۶/٤.

[5]) تقرير بخاری شريف: ۳۳۵/۲.

[6]) أخرجه البخاری فی کتاب الحج باب فضل مكة وبنيانها وقوله تعالى: ﴿وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِلنَّاسِ وَأَمْنًا وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى وَعَهِدْنَا إِلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ أَنْ طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ﴾ رقم الحديث: ۱۵۸۲وفی کتاب مناقب الأنصار باب

**ترجمه**: حضرت جابربن عبدالله ﷺ روایت کوی چه نبی کریم ﷺ (دَ نبوت نه وړاندې) دکعبه (آبادئی) دَپاره قریشوسره کانړی اوچتول اودَ رسول الله ﷺ په بدن مبارك باندې ازار (لنګ تړلی شوې وو. نودَحضورپاك تره حضرت عباس ﷺ حضورپاك ته اووئيل اې زما وراره كاش چه تا خپل لنګ کولاؤکړې وې او په خپلو اوږو باندې دې دَ کانړی لاندې کیخودلو (نوپه کانړی اوچتولوکښې به آسانی وه). حضرت جابر ﷺ فرمانی چه حضورپاك خپل لنګ کولاؤکړو او په خپلو اوږو باندې واچولو (لیکن) حضورپاك (دَ حیاء دَ وجې نه) بې هوشه کیدوسره راپریوتلو. بیا دَدې نه پس چرې هم حضورپاك بربنډ نه دې لیدلې شوې.

## تراجم رجال

**مطربن الفضل**: دامطر بن الفضل المروزی دې[1] دَدوی په مشائخوکښې روح بن عباده حجاج بن محمد المصيصى، شبابة بن سوار، وكيع بن الجراح، يحيى بن أبي بكير الكرمانى اويزيدبن هارون رحمهم الله نومونه ملاويږی. اودَدوی نه روایت کونکوکښې امام بخاری، احمد بن حمويه الاسفرا بينى، عبيدالله بن واصل البخارى الحافظ اومحمد بن على الحكيم الترمذى شامل دى.[2]

ابن حبان رحمه الله دَدوی ذکر خپل کتاب الثقات کښې کړې دې اودَدوی باره کښې نی ونیلی دی (مستقیم الحدیث)[3] فربری رحمه الله فرمانی چه مطربن الفضل رحمه الله مونږ سره فربرکښې وفات شوې (یعنی ۲۵۰ هجری نه پس).[4]

**روح**: دا ابومحمدروح بن عبادة بن العلاء قیسی بصری رحمه الله دې. دَدوی تذکره **كتاب الايمان باب اتباع الجنائزمن الايمان** کښې تیره شوې ده.[5]

**زكريا بن اسحاق**: دا زكريا بن اسحاق المكى رحمه الله دې.[6]

دې دَ عمرو بن دينار، ابراهيم بن ميسره، عطاء بن ابى رباح، عمرو بن ابى سفيان بن عبدالرحمن بن صفوان بن اميه الجمحى، ابوزبيرمحمدبن مسلم المكى، وليد بن عبدالله بن ابى سميره او يحيى بن عبدالله بن صيفى رحمهم الله نه دَ حديث روايت كوى.

دَ دوى نه روايت كونكوكښې روح بن عبادة، ازهر بن القاسم، يشربن سرى، سعيد بن سلام العطار البصرى، ابوعاصم الضحاك بن مخلد، عبدالله بن المبارك، عبدالرازق بن همام، ابوعامر عبدالملك بن عمرو العقدى، المعافي بن عمران اووكيع بن الجراح رحمهم الله شامل دى.[7]

---

بنيان الكعبة رقم الحديث: ۳۸۲۹ ومسلم فى صحيحه فى كتاب الحيض باب الاعتناء بحفظ العورة رقم الحديث: ۳٤۰ جامع الأصول حرف الفاء الكتاب الأول فى الفضائل والمناقب الباب الثامن فى فضل الأمكنه الفرع الثانى: فى بناء البيت رقم الحديث: ۲۹۰۷، ۳۰۱/۹.

[1] الكاشف: ۲۲۹/۲.

[2] تهذيب الكمال: ۵۸/۲۸-۵۷.

[3] الثقات لابن حبان: ۱۸۹/۹.

[4] تهذيب التهذيب: ۱۷۰/۱۰.

[5] كشف البارى: ۵۱۸/۲.

[6] التاريخ الكبيرللبخارى: ۴۲۳/۳ الكاشف: ۴۰۵/۱.

[7] تهذيب الكمال: ۳۶۵/۹ تقريب التهذيب: ۳۱۳/۱.

دَهغوی باره کښې احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی ثقة (۱) ابوزرعه او ابوحاتم او امام نسائی رحمهم الله فرمائی «لابأس به» (۲) علامه ذهبی رحمه الله فرمائی ثقة. (۳) ابن حبان رحمه الله دَهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې. (۴) ابن سعد فرمائی «کان ثقة، کثیرالحدیث» (۵) ابوعبیدالآجری رحمه الله فرمائی چه ما دَابوداؤد رحمه الله نه تپوس اوکړو چه زکریابن اسحاق قدری دې؟ هغه ماته اوونیل چه ولې ته دَهغه باره کښې ویرېږې؟ نوما اوونیل چه هغه ثقة دې هغوی اوونیل چه او هغه ثقه دې. (۶) ابوالحسن المیمونی رحمه الله فرمائی عبدالله ابن مبارك رحمه الله به دهغوی په مجلس کښې حاضریدلو (۷) البرقی رحمه الله اوالحاکم رحمه الله فرمائی «کان ثقة» (۸) علامه ذهبی رحمه الله فرمائی چه هغوی ۱۵۱ یا ۱۵۲ یا ۱۵۳ هجری کښې وفات شوی. (۹)

**عمرو بن دینار**: دا ابومحمد عمروبن دینار مکی جمحی رحمه الله دې. دَدوی حالات **کتاب العلم باب کتابة العلم** په دریم حدیث کښې تیرشوی دی. (۱۰)

**جابربن عبدالله**: دامشهور صحابی حضرت جابر بن عبدالله الانصاری رضی الله عنه دې. دَ دوی حالات **کتاب الضوء باب من لم یر الوضوء إلا من المخرجین من القبل والدبر** کښې تیرشوی دی. (۱۱)

## شرح حدیث

**قوله: أن رسول الله صلی الله علیه وسلم کان ینقل معهم الحجارة للکعبة**: حضرت جابر رضی الله عنه روایت کوی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به قریشو سره د کعبه (بیت الله) د تعمیردپاره کاڼړی اوچتول او راوړل به نې. دَ للکعبة نه مراد لبناء الکعبة دې. (۱۲)

**قوله: وعلیه إزاره**: په دغه دوران کښې چه حضورپاك به کاڼړی اوچتول او راوړل نودَحضورپاك په بدن مبارك باندې دَهغوی ازار یعنی لنګ تړلې شوې وو. بعض نسخوکښې داجمله دَ واؤ حرف عاطف نه بغیرده. (۱۳)

---

(۱) الجرح والتعدیل: ۵۲۹/۳.
(۲) الجرح والتعدیل: ۵۲۹/۳سیرأعلام النبلاء: ۳۴۰/۶.
(۳) الکاشف: ۴۰۵/۱سیرأعلام النبلاء: ۳۴۰/۶.
(۴) تهذیب الکمال: ۳۵۷/۹.
(۵) الطبقات لابن سعد: ۴۹۳/۵.
(۶) تهذیب الکمال: ۳۵۷/۹.
(۷) تهذیب التهذیب: ۳۲۹/۳الطبقات ابن سعد: ۴۹۳/۵.
(۸) تهذیب التهذیب: ۳۲۹/۳ إکمال تهذیب الکمال: ۶۴/۵.
(۹) سیرأعلام النبلاء: ۳۴۰/۶.
(۱۰) کشف الباری: ۲۰۹/۴.
(۱۱) کشف الباری کتاب الوضوء باب من لم یرالوضوء إلا من المخرجین من القبل والدبر.
(۱۲) عمدة القاری: ۱۰۶/۴إرشادالساری: ۲۲/۲.
(۱۳) عمدة القاری: ۱۰۷/۴.

**قوله:: فقال له العباس عمه، یا ابن أخي**: حضرت عباس رضی الله عنه یعني دحضورپاك تره هغوی ته اوفرمائیل اې زما ورارہ که ته خپل لنګ کولاؤ کړې بیا دا زه ستا په اوږو باندې دکانړي لاندې کیږدم نودابه ښه اود آسانتي سبب شي. دې ځائې کښې به د "لو" جواب محذوف شي. اوهغه لکان أسهل علیك کیدې شي. دې نه علاوه دا "لو" دتمني دپاره هم ګرځولې شي. په دې صورت کښې به د "جواب لو" ضرورت پاتې نه شي.[1]

«فجعلت علی منکبیه دون الحجارة» په دې جمله کښې دکشمیهني د روایت مطابق فجعلت په ځائې فجعله مفعول ضمیر سره دې. او دون الحجارة مطلب تحت الحجارة دې.[2]

**قوله:: قال فحله وجعله علی منکبیه**: دقال فاعل څوك دې؟ په دې باره کښې یواحتمال خودادې چه ددې فاعل حضرت جابر رضی الله عنه دې اودویم احتمال دادې چه ددې فاعل هغه محدث دې څوك چه داحدیث بیانوي.[3]

**قوله:: فسقط مغشیا علیه**: څنګه چه حضورپاك خپل لنګکولاؤکړو په اوږه باندې د کانړي لاندې د اوچتولودپاره کیخودو هم هغه وخت دحیاء اوشرم د وجې نه حضورپاك بې هوشه پریوتلو.[4]

**قوله:: فما رؤي بعد ذلك عریانا صلی الله علیه وسلم** هغه وخت خود رسول الله صلی الله علیه وسلم ازار هغوی ته اوتړلې شو اوحضورپاك ته هوش راغلو مګر ددغې نه پس تربوره ژوندون پورې حضورپاك چا بربنډ اونه لیدلو. په یو روایت کښې راځي د آسمان نه یوه فرښته نازل شوه هغې د حضورپاك ازار هغوی ته اوتړلو.[5]

بل په دې روایت کښې دي چه ددې نه پس چاهم کله حضورپاك بربنډ نه دې لیدلې او په یوبل روایت کښې دا الفاظ دي «فلم یتعر بعد ذلك» چه حضورپاك ددې نه پس کله هم نه دې بربنډ شوې.[6]

**یواشکال اودهغې جواب**: په دې حدیث کښې په مذکوره واقعه باندې یواشکال کبرۍ چه د نبوت د شان نه داخبره لرې ده چه هغوی دې د خلقو په وړاندې بربنډ شي. ددې اشکال دجواب تعلق وقوع واقعه سره دې چه داواقعه کله پیښه شوې ده؟ چنانچه اول په دې باره کښې داخبره واضح کولې شي

**دتعمیر کعبه واقعه کله پیښه شوې؟**: دکعبه ددې تعمیر باره کښې دعلماء سیر مختلف اقوال دي چه دا آبادي کله شوې اوهغه وخت چه کله داواقعه پیښه شوه هغه وخت دحضورپاك عمر مبارك څه وو امام زهري رحمه الله فرمائي چه کله قریشو دکعبه تعمیر کړې، هغه وخت حضورپاك بالغ شوې نه وو[7]

---

[1] شرح الکرماني: ۲۳/۴ فتح الباري: ۶۲۶/۲
[2] فتح الباري: ۶۳۶/۲ تحفة الباري: ۲۸۹/۱.
[3] شرح الکرماني: ۲۳/۴ إرشاد الساري: ۲۲/۲.
[4] شرح الکرماني: ۲۳/۴ عمدة القاري: ۱۰۷/۴.
[5] التوضیح لابن ملقن: ۳۹۹/۵ عمدة القاري: ۱۰۷/۴.
[6] فتح الباري: ۶۲۶/۲ إرشاد الساري: ۲۲/۲.
[7] المصنف لعبدالرزاق باب بنیان الکعبة: ۱۰۰/۵ ۳۱۷/۵.

په دې باره کښې دويم قول دادې چه د کعبه د آبادۍ وخت کښې د حضور پاك عمر پنځلس کاله وو دا قول ذکر کونکې علامه ابن بطال رحمه الله علامه کرمانی رحمه الله علامه زرقانی رحمه الله دي [1].
دريم قول دادې چه دا واقعه د بعثت نه پنځه کاله وړاندې پيښه شوې دا قول ذکر کونکی امام محمدبن اسحاق رحمه الله امام هشام رحمه الله علامه سهيلی رحمه الله اوامام طبری رحمه الله دی [2]. دا هم ونيلی شوی دی چه د پنځه کاله وړاندې والا واقعه بله ده او پيش نظر واقعه دويمه ده. خو بيا هم دومره خبره يقينی ده چه د حضور پاك دغه ذکرشوې واقعه د بعثت نه وړاندې ده.

**د جواب توضيح:** د کومو حضراتو په نيز چه مذکوره واقعه د بلوغت نه د وړاندې وخت ده نو بيا خو هيڅ اشکال نه پيدا کيږی. ليکن د دويم قول په رڼا کښې اشکال راتلې شی چه حضور پاك بربنډېدل څنګه برداشت کړل. نو په دې خبره کښې اول خبره خوداده چه مذکوره واقعه د نبوت نه د وړاندې ده دويمه خبره داده چه په عربو کښې تعری (بربنډوالی) به معيوب نه شو ګڼړلی. مشرکانو به د بيت الله طواف په بربنډه کولو د دې عام رواج وو. دريمه خبره داده چه دلته د ازار کولاوولو ذکر دې د قميص د لرې کولو ذکرنه دې. خوچونکه د حضورپاك د اوچت شان سره دا هم نه وو په دې وجه ئې د دې ذکر اوکړو. دا مقصدئی نه دې چه حضورپاك بالکل بربنډ شوې وو اوکاشف العورة شوې وو. قميص ئی په بدن مبارك باندې وو په دې وجه د دې خبرې ګنجائش وو ليکن الله ﷻ ته چونکه د خپل نبی د پاره داخبره هم خوښه نه وه اود وحی سلسله هم نه وه لهذا د حضورپاك د تربيت عندالله دا انتظام اوشو چه هغوی بې هوشه کړې شو او خلقو په حضورپاك باندې کپړه واچوله هغه کوم د تعری احتمال چه به پيدا کيدلو هغه هم ختم کړې شو. دې نه پس حضور پاك کله هم بربنډ نه دې ليدلې شوې.

**قوله: عصمت انبياء کرام عليهم السلام:** د مذکوره واقعې متعلق د اشکال يو اړخ مسئله د عصمت انبياء عليهم السلام هم ده چه بربنډېدل د عصمت د انبياء کرامو عليهم السلام خلاف دی او د انبياء کرامو عليهم السلام د نبوت د منصب خلاف امر دې. دانبياء کرام عليهم السلام د عصمت د مسئلې متعلق مختصر په دې ځان پوهه کول پکاردی چه په دې خبره باندې اجماع ده چه د انبياء عليهم السلام د نبوت نه وړاندې اود نبوت نه پس د کفر اختيارولو نه معصوم دی. دوی نه کفرهډو کيدې نه شی. په دې خبره باندې هم اجماع ده چه بعدالنبوة قصداً ګناه نه شی کيدې. البته سهواً د صغائر مرتکب کيدې که نه؟ په دې کښې اختلاف دې
د اشاعره په نيزد حضرات انبياء کرام عليهم السلام نه صغائر سهواً خو څه چه عمداً هم صادر کيدې شی وړاندې د نبوت نه هم او پس د نبوت نه هم خو ماتريدی د دې نه مطلقاً انکارکړې دې چنانچه حافظ عراقی تقی الدين سبکی، ابواسحاق اسفراينی او قاضی عياض رحمهم الله هم دا اختيارکړې

[1] شرح الکرمانی: ۲٤/٤شرح ابن بطال: ۲٤/۲التوضح لابن ملقن: ۲۹۹/5شرح المواهب للزرقانی بنيان الکعبة: ۳۷۹/۱

[2] السيرة النبوية لابن هشام حديث بنيان الکعبة: ۱۹۲/۱الروض الأنف حديث بنياد الکعبة: ۱۲۷/۱ تاريخ للطبری تاريخ ماقبل الهجرة: ۵۲۶/۱ البداية والنهاية شیء مماوقع من الحوادث فی زمن الفترة، فمن ذلک بنيان الکعبة: ۲٦٥/۲فتح الباری لابن حجر کتاب الحج فضل مکة وبنيانها: ۵٦٥/۳.

دي بيا دَ صغائر وقوع ممكن ګڼړونکو داهم ونيلي دي چه دَ انبياء عليهم السلام نه هغه صغائر نه شي کيدې کوم چه خست، رذالت او په کمينه توب باندې دلالت کوي (١)

**دَعلامه عثماني رحمه الله رائې:** حضرت مولانا شبيراحمد عثماني رحمه الله فرماني چه په دې واقعه کښې دَ حضورپاك نه تعرى (بربنډيدل) صادرشوى دى. دَدې متعلق دومره خبره باندې پوهه شنى چه هغه وخته (پورې) هيڅ څه احكام نه وو نازل شوى. بيا دا دَ حضورپاك عام عادت نه وو بلكه هم يو خل داسې شوې وو. لهذا دا فعل خاص كر دَ داسې قوم په مينځ کښې په چاکښې چه دا خبره دَ مروت خلاف هم نه شوه ګڼړلې دَزيات نه زيات هغه وخت صغيره ګناه کيدې شي. اود اشاعره مذهب دې چه دَ انبياء كرامو عليهم السلام نه وړاندې دَ نبوت دَ بعثت نه دَ صغائر صدور کيدې شي نو په دې صورت کښې خو هيڅ اشكال نشته دې.

البته دَ ماتريدى مسلك دادې چه انبياء عليهم السلام وړاندې دَ بعثت نه هم كبائر اوصغائر ټولو نه معصوم وې. په دې تقدير باندې (دَحضورپاك نه تعرى صادركيدلو) جواب به داشي چه دَ يومصلحت عظيمه دَ وجې نه يوخل دَدغه صغيره تحمل اوكړې شو. هغه مصلحت دا وو چه قريشو ته دَ اول نه اوخودلې شو چه دَ حضورپاك تربيت په غيرمعمولي توګه باندې دَ يوغيبي طاقت په خاص نګرانئ کښې کيږي ځکه چه دَحضورپاك نه يو لوئې كار اخستل دى. او حضورپاك خو يو خاص شان لرى (هم دغه وجه ده چه دَ تعرى دَ صادر كيدونه پس زر حضورپاك بې هوشه شو) ګني په زرګونو خلق بربنډ ګرځي راځي. په هيچا داسې حال نه دې راغلې او حضورپاك ته يولمحه دا حالت پيښ شوې. دَدې مصلحت په وجه دَحضورپاك په حق کښې دَ لږ شان وخت دپاره دَتعرى تحمل اوكړې شو لكه ځنګه چه دَ يو خصوصي مصلحت په وجه حضرت موسىٰ عليه السلام دَ بعثت نه پس دَ مجمع په وړاندې بربنډ تلل اوشو اوهلته دَ موسىٰ عليه السلام يو نفرت انګيز عيب نه خلاصې دَ ټولوخلقو په وړاندې مطلوب وو (دَحضرت موسىٰ عليه السلام واقعه صحيح بخارى كتاب الغسل باب من اغتسل عريانا واحده في الخلوة رقم الحديث: ٢٧٨كښې موجود ده). (٢)

**دَ صاحب ترجمان السنة رائې:** صاحب ترجمان السنة حضرت مولانا بدر عالم ميرتهى رحمه الله ليکي چه دَ هغه زمانې دَ مؤرخينو دَ حضورپاك په سن مبارك کښې اختلاف دې. خودا خبره متفق عليه ده چه دا واقعه دَ نبوت نه دَ وړاندې وخت ده. ګورئي ولې دلته دا ممكن نه وه چه دَ لنګ كولاويدونه وړاندې حضورپاك دَ بربنډوالى نه بچ كړې شوې وې مګر بيابه دا ځنګه ثابتيدله چه دا هغه نه دې دَ چا بربنډوالي چه يوخل هم دَ برداشت قابل نه وى. دَدې دپاره نظر تربيت داغواړى چه يوه واقعه په ناپوهنئ کښې داسې هم پيښه شي او په هغې باندې رانيول هم وى او دغه شان دا ښكاره كړى چه دَ انبياء كرام عليهم السلام هستي دَ عام انسانانو نه بالكل جدا وى دَ اوچتو اخلاقو خلاف قدرت نه دَهغوى هيڅ عمل خوښ نه وى آخر په قدم قدم باندې دَ قدرت دا منع كول دَ قوم په نظر کښې هغوى

---

(١) شرح المقاصد المبحث السادس الأنبياء صلوات الله عليهم معصومين: ٣/٣١١-٣٠٩النبراس مسئله عصمة الانبياء عليهم السلام ص: ٢٨٣ التفسير الكبير سورة البقرة: ٣٦، ٣/١٠-٧ الشفاء لقاضى عياض: ٢/٩٢شرح النووى على المسلم كتاب الإيمان باب حديث الشفاعة رقم الحديث ٤٧٤ فيض البارى: ١/١٦٩ مرقاة المفاتيح كتاب الإيمان باب الكبائر وعلامات النفاق رقم الحديث:٥٥، ١/٢١٣وكتاب الدعوات باب جامع الدعا رقم الحديث: ٢٤٨٢، ٥/٣٩٠.

(٢) فضل البارى:٣/٤٠-٣٩.

ممتاز کولې شي. دَدې دپاره چه دَ نبوت نه وړاندې داخبره ذهنونو کښې کېني چه دا زمونږ دَ طبقې نه جدا او اوچت انسان دې. ددومره خبرې دپاره ددې ضرورت نشته دې چه دهغوی یو داسې کار اوښي کوم چه دَ ګناه په تعریف کښې راځي که هغه صغیره ولې نه وی بلکه هر هغه کار چه دَ اوچت معیار نه لږ شان هم پریوتې ولې نه وی دَ هغې صادر کیدل هم یو خل دوه بس هم دومره کافي دی. وئیلې شي چه دَ موسیٰ علیه السلام په شریعت کښې دَ ستر مسئله دومره مکمل نه وه څومره چه زمونږ په شریعت کښې ده. په دې لحاظ سره تر هغه وخته پورې په بربنډیدو کښې هیڅ مضائقه هم نه وه. بل طرف ته دَ حضورپاک ﷺ سن مبارک هم په اختلاف کښې دې. بل هغه وخت په عربو کښې یو شریعت هم نه وو هغه خلقو به لکه چه خپل نفس ته حنیف وئیلې. خودملت حنیفه تخم نی هم هیرکړې وو. بیا په دې یوه واقعه باندې دا دومره لویه تنبیه. ددې لازمه ثمره به داکیدله چه دَ خلقو نظرونه دحضورپاک طرف ته اوچت شو او په هغوی کښې دا شعور پیدا شو چه ضرور دَ چا چه شروع داسې ده نودهغه آخر خو به څه کیږی.

درسول الله ﷺ شان مبارک خو ډیر اوچت دې. دَ حضورپاک دَ غار ملګری حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه متعلق کله چه چا دَ شیخ ابوالحسن اشعری رحمه الله نه تپوس اوکړو چه دَجاهلیت په زمانه کښې دهغوی څه حال وو؟ نوشیخ موصوف څه عجیبه خبره اوکړه: «أنه مازال بعین الرضا من الله عزوجل»[1] یعنی هغه خو همیشه نه دَ الله ﷻ دَ رضاء نظر لاندې پاتې دې اودابنکاره خبره ده چه څوک دَ داسې چا پاللې شوې وی نوهغه په شرک اوکفرکښې کله راګیرېدې شي؟

کله چه درسول الله ﷺ دَ یوامتي داحال وی نوبیخپله به دَ بارګاه رسالت څه حال وی؟ ددې اندازه دَ دغه یو واقعې نه کیدې شي. دحضورپاک په ژوند مبارک کښې دا ټول صرف هم یوه واقعه ده. اوهغه هم دَ نبوت نه وړاندې. په دې کښې هم تصریح ده چه دامشر تره (حضرت عباس رضی الله عنه) دخبرې په منلوسره شوی په خپل فطرت سره نه دی شوی او په دې باندې په دومره سختئې سره غیبی راګیرول موجود دی سرج اوکړنی په کوم دور کښې چه لاد ملائکو نازلیدل هم نه وی شروع شوی اودخپل شریعت څه تصور هم نه وی اولنې شریعت موجود نه وی په داسې دور کښې دَ ستر ښکاره کیدل څه اهمیت لرل پکاردی؟ اوآیا ددې یوې واقعې دَ وجې نه کومه چه دومره په تنبیه سره راغلې وی دَ انبیاء په ژوند کښې وړاندې دَ نبوت نه دَ صغائردپاره په اصولی توګه ګنجائش منل پکاردی که ددې برعکس دهغوی دعصمت سبق اخستل پکاردی.

ابن هشام رحمه الله دَ بحیرا راهب قصه نقل کولو نه پس لیکی:

«فشب رسول الله صلی الله علیه وسلم، والله یکلؤه ویحفظه ویحوطه من أقذار الجاهلیة لما یرید به من کرامته ورسالته حتی بلغ أن کان رجلاً وأفضل قومه مروءة، وأحسنهم خلقاً، وأکرمهم حسباً، وأحسنهم جواراً، وأعظمهم حلماً، وأصدقهم حدیثاً، وأعظمهم أمانة، وأبعدهم من الفحش والأخلاق التی تدنس الرجال، تنزهاً وتکرماً، حتی ما اسمه فی قومه إلا الأمین، لما جمع الله فیه من الأمور الصالحة»[2]

چه رسول الله ﷺ خوان شو نوپه داسې شان چه الله ﷻ به دهغوی خیال ساتلو، دهغوی حفاظت به نې کولو اودَ جاهلیت ټول ناخوښه حرکتونونه نی هغوی لرې ساتلې وو. تردې چه چه هغوی دَ عین شباب

---

[1] الیواقیت والجواهر المبحث الثالث والأربعون فی بیان أن أفضل الأنبیاء المحمد بین: ۷۳/۲بحواله ترجمان السنة: ۳۸۷/۳.

[2] السیرة النبویة لابن هشام رجوع أبی طالب رسول الله:۱۸۳/۱.

په دور کښې په لحاظ د مروت د ټولو نه افضل، په اخلاقو کښې د ټولونه بهتر، د ګاونډي خيال د ټولونه زيات ساتونکي، په علم او بوج برداشت کولو کښې د ټولو نه زيات، په خبرو اترو کښې د ټولو نه زيات رښتوني، په امانت کښې د ټولونه زيات امانتدار، د ټولو فحش او ټولو بداخلاقونه کوم چه د انسان د پاره خراب داغ وي ډير لرې وو. او هم د دغه ښکلي صفتونو د وجې نه د حضورپاك په قوم کښې لقب امين وو. داهر څه د دې د پاره وو چه الله ﷻ هغوی د رسالت په جليل منصب باندې لګول وو د حضرت ميرتهي رحمه الله کلام ختم شو. (۱)

**د حديث مبارک نه مستفاد امور:** ① د حديث شريف نه دامعلوميږي چه الله ﷻ د خپل رسول ﷺ د حفاظت انتظام د ورو کوالې نه کړې وو. چنانچه حضورپاك د ټولو قبيح امورو او د اهل جاهليت د خصلتونونه محفوظ اومامون او ډير لرې وو. هم د دې نه يو د ستر ښکاره کيدل هم دی.

② د دې حديث شريف نه داهم معلوم شو چه حضورپاك د اخلاقو په اوچته درجه باندې فائز وو کامل حيا لرونکي وو. د حضورپاك د حياء په صفت کښې نقل دی چه حضورپاك د پيغلې جينئ نه زيات حياء کونکي وو. (كان أشد حياءً من العذراء في خدرها) (۲)

③ داهم معلومه شوه چه د سرې د پاره د دغه خايونونه علاوه چرته چه ستر ښکاره کول جائز دی چرته بل يوځائې کښې ستر ښکاره کول جائزنه دی. (۳)

**د حديث مبارک ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت آخري جمله (فما رؤي بعد ذلك عرياناً صلى الله عليه وسلم) د عموم سره دی چه حضورپاك د دې نه پس په مانځه کښې يا د مانځه نه بهر کله بربنډ نه دې ليدلې شوې او هم دغه څيز ترجمة الباب (كراهية التعري في الصلوٰة وغيرها) کښ مقصود دې. (۴)

......
......
......

## ۸- باب: الصَّلَاةِ فِي الْقَمِيصِ وَالسَّرَاوِيلِ وَالتُّبَّانِ وَالْقَبَاءِ

دا باب دې په قميص (کرته) پرتوګ لنګ او قبا کښې د مونځ کولو بيان کښې

**د لغات وضاحت: قميص:** قميص د تاريزې کپړې نه جوړ شوې وي دې ته کرته وائي. حضرت کشميری رحمه الله فرمائي چه د قميص ګريوان نه وي. د دې نه معلوميږي چه په موجوده زمانه کښې کوم قميص د ګريوان والا مروج دې دا د روستو وختونو ايجاد دې. (۵)

---

(۱) ترجمان السنة مسئله عصمت: ۳۸۷/۳-۳۸۶.

(۲) صحيح مسلم الفضائل باب كثرة حيائه رقم الحديث: ۶۱۷۶ نوټ: په مسئله عصمت انبياء عليهم السلام باندې د ټولونه تفصيلي او جاندار بحث په اردوژبه کښې ترجمان السنة: ۳۸۷/۳-۳۴۵ کښې موجود دې

(۳) شرح ابن بطال: ۷۴/۲ شرح الكرماني: ۲۴/۴ فتح الباري: ۶۲۶/۲ عمدة القاري: ۱۰۷/۴ إرشاد الساري: ۲۳/۲ تحفة الباري: ۲۸۹/۱ الشرح الميسر لصحيح البخاري: ۴/۱.

(۴) عمدة القاري: ۱۰۶/۴ الكوثر الجاري: ۴۵/۲ الكنز المتواري: ۳۰/۴.

(۵) الصحاح ص: ۸۸۳ القاموس المحيط ص: ۵۶۵ لسان العرب: ۳۰۳/۱-۲۹۲ أنوار الباري: ۱۱۵/۱۱.

**قوله:: السراویل**: داعجمی لفظ دې مذکر اومؤنث دواړه شان استعمالیږی دَدې جمع سراویلات راځی دَ سراویل باره کښې یوقول داهم دې چه داجمع ده دَ سراولة. بل سراویل دَ سین په ځائی شین سره اودلام په ځائی ن سره هم نقل دې یعنی شراویل او سراوین دَدې نه علاوه دوه لغات نور هم دی سروال او سرویل. دَ پرتوګ اغوستل دَ حضورپاك نه ثابت نه دی خوبیا هم رسول الله ﷺ داخوښ کړې دې او دَ ځلورو درهمو خریدار هم دې.(۱)

**قوله:: تُبّان**: دَتاء پیش او دَ باء تشدید اوزبر سره "تُبّان" دې زمونږ په عرف کښې دې ته لنګوټ ونیلی شی. پهلوانان خلق دَ کشتنی په وخت دا استعمالوی. دا دَ پرتوګ نه وړوکې وی. ددې په ذریعه دَ شرمګاه او سرین ستر کیږی. په دې کښې دوه صورتونه مستعمل کیږی یو هغه په کوم کښې چه څه حصه پتون هم پټیږی هغې ته نیکر وائی. دویم هغه په کوم سره چه شرمګاه او سرین پټیږی. دې ته جانګې انډر وئیر او لنګوټې وغیره وائی. (۲)

**قوله:: قَبَآء**: دَ قاف فتح سره داهم غیر عربی لفظ دې کوم چه په عربوکښې استعمال شوې. دادَ کوټ یا شرټ په شان لیکن ددې نه څه قدرې وړوکې وی. دَ کرتې دپاسه استعمالیږی. ددې په مقابل کښې عباء استعمالیږی کوم ته چه چوغه هم وائی. (۳)

**دَترجمة الباب مقصد**: امام بخاری رحمه الله دا ترجمة الباب قائم کولوسره داخودل غواړی چه دَمانځه په وخت مونځ ګذار چاته چه دَ کپړو سهولت حاصل وی او په هغې سره دَ ستر پټول ممکن وی نودَهغې استعمالولو سره مونځ کول صحیح دی. که هغه کپړه صرف قمیص وی یا پرتوګ، جانګې وی یا قباء په دې کښې دَهر یو دَ استعمال سره مونځ کول صحیح کیږی (۴)

**دَ شیخ الحدیث رحمه الله رائې**: حضرت شیخ رحمه الله فرمائی چه شراح فرمائیلی دی په مختلف انواع لباس کښې جدا جدا دَ مونځ جواز ثابتول دی او زما په نیز امام بخاری رحمه الله تنبیه فرمائی چه دوه کپړې اولی دی. دَ شراح استدلال ((أوکلکم یجد ثوبین)) نه او زما استدلال ((إذاوسع الله فأوسعوا)) نه دې ځکه چه دې نه معلومیږی که څوك په دوو کپړو باندې قادر وی نودَهغه دَ پاره دَ دوو اغوستل افضل دی. (۵)

## الحديث الأول

[۳۵۸]- حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَامَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُ عَنِ الصَّلَاةِ فِي الثَّوْبِ الوَاحِدِ، فَقَالَ: «أَوَكُلُّكُمْ يَجِدُ ثَوْبَيْنِ» ثُمَّ سَأَلَ رَجُلٌ عُمَرَ، فَقَالَ: «إِذَا وَسَّعَ اللهُ فَأَوْسِعُوا»، جَمَعَ رَجُلٌ عَلَيْهِ ثِيَابَهُ، صَلَّى رَجُلٌ فِي إِزَارٍ وَرِدَاءٍ، فِي إِزَارٍ وَقَمِيصٍ

---

(۱) المحکم لابن سیده، رس ل: ۴۷۲/۸ صحاح ص: ۴۹۱ مجمع بحار الأنوار: ۶۸/۳ لسان العرب: ۲۴۸/۶-۲۴۷.
(۲) المحکم لابن سیده، ت ب ن: ۵۰۲/۹ صحاح ص: ۱۲۴ القاموس المحیط ص: ۱۰۶۶ لسان العرب: ۱۸/۲ الکوثر الجاری: ۴۶/۲
(۳) المحکم لابن سیده، ق ب و: ۵۸۵/۶ صحاح ص: ۸۳۲ القاموس المحیط ص: ۱۱۹ لسان العرب: ۲۷/۱۱ فتح الباری: ۶۲۶/۲
(۴) عمدة القاری: ۱۰۹/۴.
(۵) الکنز المتواری: ۳۲/۴-۳۱ تقریر بخاری شریف: ۱۲۷/۲.

فِي إِزَارٍ وَقَبَاءٍ، فِي سَرَاوِيلَ وَرِدَاءٍ، فِي سَرَاوِيلَ وَقَمِيصٍ، فِي سَرَاوِيلَ وَقَبَاءٍ، فِي تُبَّانٍ وَقَبَاءٍ، فِي تُبَّانٍ وَقَمِيصٍ، قَالَ: وَأَحْسِبُهُ قَالَ: فِي تُبَّانٍ وَرِدَاءٍ(١)[رقم: ٣٦٥]

**ترجمه:** دحضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روایت دې چه یوسړي نبی کریم صلی الله علیه وسلم طرف متوجه شو اوهغه تپوس اوکړو چه په یوه کپړه کښې مونځ ادا کولوځه حکم دې؟ نوحضورپاك اوفرمائیل چه په تاسوکښې هر سړي د دووکپړو وسعت لري؟ (روستو) هم دغه سوال دحضرت عمر رضی الله عنه نه اوکړې شو نوهغوی رضی الله عنه په جواب کښې اوفرمائیل (یوه کپړه کښې مونځ کول صحیح خو دی مګر اوس چونکه) الله ﷻ تاسو ته آسانی درکړې ده نوهم دهغې مطابق عمل کوئی.لهذاهرسړی له پکاردی چه ډیوې نه په زیاتوکپړوکښې مونځ کوی.مثلاً (څوك) په لنګ او څادرکښې (څوك) په پرتوګ اوڅادر کښې. راوی فرمائی چه زما ګمان دې چه دائی هم فرمائیلی چه (څوك) پرتوګ اوقمیص کښې هم مونځ کوئی.

## تراجم رجال

**سليمان بن حرب:** دا ابوايوب سليمان بن حرب بن بجيل ازدی اشحی بصری رحمه الله دې. دَدوی حالات كتاب الايمان باب من كره أن يعود فى الكفر كما يكره أن يلقى فى النار من الايمان كښې تيرشوی دی.(٢)

**حماد بن زيد:** دا ابواسماعيل حمادبن زيد بن درهم ازدی بصری رحمه الله دې. دَدوی احوال كتاب الايمان باب وإن طائفتان من المؤمنين اقتتلوا فأصلحوا بينهما كښې تيرشوی دی. (٣)

: دا ابوبكر ايوب بن ابي تميمه كيسان سختيانی بصری رحمه الله دې. دَ دوی احوال كتاب الايمان باب حلاوة الايمان كښې تيرشوی دی. (٤)

**محمد:** دا مشهور تابعی امام ابوبكر محمدبن سيرين انصاری بصری رحمه الله دې. دَدوی حالات كتاب الايمان باب اتباع الجنائز من الايمان كښې تيرشوی دی (٥)

**ابي هريرة:** دا مشهور صحابی رسول صلی الله علیه وسلم دې. دَدوی تذكره كتاب الإيمان باب أمور الايمان كښې تيره شوې ده. (٦)

## شرح حديث

**قوله: قام رجل الى النبى صلى الله عليه وسلم:** یوسړې دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو اوپه یوه کپړه کښې د مونځ اداکولو باره کښې سوال اوکړو چه دې کښې مونځ کیږی که نه؟ نودَ دې په جواب کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل آیاپه تاسوکښې هریوکس سره دوه دوه کپړې دی؟

---

(١) رواه البخاری فی الصلاة باب الصلاة فی الثوب الواحد ملتحفاً وفی هذاالباب وأخرجه مسلم فی كتابه، كتاب الصلاة باب الصلاة فی ثوب واحد رقم الحديث: ٥١٥

(٢) كشف الباری: ١٠٥/٢.

(٣) كشف الباری: ٢١٩/٢.

(٤) كشف الباری: ٢٦/٢.

(٥) كشف الباری: ٥٣٤/٢.

(٦) كشف الباری: ٦۶٣/١، ٢٥٩.

مطلب داوو چه كله د غربت د وجې نه تاسو سره وى هم يوه كپړه نويه هغې كښې به د مونځ اداكول صحيح شى.وړاندې باب «الصلاة فى الثوب الواحد ملتحفاً به» په آخره كښې هم دغه روايت «أولكلكم ثوبان؟»پورې تيرشوې دې. خو هلته د امام بخارى رحمه الله استاذ راوى حضرت عبدالله بن يوسف رحمه الله وو او دلته امام بخارى رحمه الله د حضرت سليمان بن حرب رحمه الله نه روايت نقل كړې دې.[1]

**قوله:: ثم سأل رجل عمر:** بيا هم دغه سوال چا د حضرت عمر رضي الله عنه نه هم اوكړو (چه يوه كپړه اغوستلوسره مونځ صحيح كيږى كه نه؟)

**سوال كونكې څوک وو؟:** د حضرت عمر رضي الله عنه نه سوال كونكې څوك وو؟ د هغه نوم څه وو؟ په دې باره كښې ټولو شارحينو حضراتو ليكلى دى چه د هغه سوال كونكى نوم معلوم نه دې.[2]

البته بعض خلقو دا احتمال بيان كړې دې چه كيدې شى دا سوال كونكې حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وى. د دې احتمال بنياد دادې چه يوځل عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او د ابى بن كعب رضي الله عنه په دې مسئله كښې اختلاف پيداشو چه په يوه كپړه كښې مونځ جائز دې كه نه. حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه اوفرمائيل چه په دې كښې هيڅ حرج نشته يعنى مونځ كيږى ليكن د ابن مسعود رضي الله عنه خيال دا وو چه داسې كول جائزنه دى. څكه چه داسې صرف په هغه وخت جائز وو كوم وخت چه خلقو سره كپړې نه وې. بهر حال اوس چه خلق ته د دې وسعت لرى نو مونځ هم په دوو كپړوكښې صحيح دې. بيا حضرت عمر رضي الله عنه په منبر باندې اودريدو ارشاد ئې اوفرمائيلو چه صحيح دى هغه كوم چه ابى بن كعب رضي الله عنه اوفرمائيل نه هغه كوم چه ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل.[3]

علامه عينى رحمه الله فرمائي چه د دې اختلاف سره دا خبره نه متعين كيږى بلكه تخمين او اندازه كيږى د دې دپاره د دغه سائل د مصداق باره كښې خو احتمال ابى بن كعب رضي الله عنه هم جوړيدې شو.[4]

**قوله:: فقال: إذاوسع الله فأوسعوا:** د سائل په جواب كښې حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چه الله تعالى تاسو ته وسعت او آسانى دركړې ده نو د مونځ په وخت هم د دغه وسعت او آسانتيا اظهار كونى ګنى په عام توګه څنګه چه خلق مونځ كوى هغه هم صحيح دې.

**قوله:: جمع رجل عليه ثيابه، صلى رجل.....:** ارشاد ئې اوفرمائيلو چه د وسعت په حالت كښې كه مونځ ګذار په خپل مونځ كښې خپلې كپړې جمع كړى اومونځ اوكړى په دې ځائې جمع او صلى د ماضى صيغې دى ليكن دا دواړه د امر په معنى كښې دى يعنى ليجمع او ليصلى دې.

د ابن المنير رحمه الله په نيز داكلام د شرط په صورت كښې دې يعنې «إن جمع رجل عليه ثيابه فحسن» بيانى مختلف صورتونه بيانولوسره د دې جمع تفصيل بيان كړې شو. د ابن مالك رحمه الله فرمان دې چه د دې حديث مبارك نه دوه فائدې حاصلې شوې يود ماضى استعمال د امر په معنى كښې يعنى جمع

---

[1] صحيح البخارى كتاب الصلاة باب الصلاة فى ثوب الواحد ملتحفاً رقم الحديث: ۳۵۸.
[2] فتح البارى: ۶۲۶/۲ إرشادالسارى: ۲۴/۲.
[3] المصنف لابن عبدالرازق كتاب الصلاة باب مايكفى الرجل من الثياب رقم الحديث: ۱۳۸۵، ۳۵۶/۱.
[4] عمدة القارى: ۱۰۹/۴.

لیجمع په معنی کښې اوصلي دَ لیصلي په معنی کښې او دویمه فائده دَحرف عطف حذف سره دَ کلام راوړلو، خکه چه په اصل کښې «صلی رجل في إزار ورداء، وفي إزار وقمیص» کیدل پکاروو.[۱]

**په مانځه کښې دَکپړو دَاستعمال طریقه**: حضرت عمر رضی الله عنه ارشاد اوفرمائیلو چه کله وسعت وی نو دَ یوې کپړې په ځائې په دوو کپړو کښې مونځ کوئی. دا دوه کپړې جمع کولو چه کوم صورتونه ارشاد کړې شوی دی هغه نهه دی. ټولې هغه کپړې دکوم دَاستعمال چه دې ځائې کښې ذکرکړې شوې دې هغه شپږ دی. په دې کښې درې دَ ستر پټولو دَپاره دی اودریو سره باقي بدن پټول مقصود دی. دې دریو له په دریو کښې ضرب ورکولوسره نهه صورتونه جوړیږی. درې کپړې لاندې تړونکې لنګ پرتوګ او جانګې دې او نورې درې څادر قمیص اوقباده. چنانچه دَټولو نه اول ارشاد اوفرمائیلې شو که چرې غواړئی نو لنګسره څادر قمیص یا قبا جمع کړئی یعنی لنګ اوڅادر یا لنګ اوقمیص یا لنګ او قبا جمع کړئی. دغه شان پرتوګ سره څادر قمیص او قبا جمع کولوسره درې صورتونه پرتوګ اوڅادر، پرتوګ اوقمیص، اوپرتوګ اوقبا جوړشو. او جانګې سره څادر قمیص او قبا جمع کولو سره هم درې صورتونه جانګې اوڅادر، جانګې او قمیص، جانګې او قبا جوړیږی. دا ټول نهه صورتونه شو. دې نه جانګې اوڅادر والاصورت حضرت عمر رضی الله عنه نه دې ذکرکړې.[۲]

**قوله: وأحسبه قال: في تبان ورداء**: احسبه دَراوی قول دې. په اصل کښې حضرت عمر رضی الله عنه مذکوره صورت نه وو ذکرکړې. دحضرت ابوهریره رضی الله عنه په دې باندې جزم نشته دې چه دا صورت حضرت عمر رضی الله عنه بیان کړې وو که نه، بلکه هغوی اوفرمائیل چه زما ګمان دې چه حضرت عمر رضی الله عنه دا صورت (یعنی جانګې او څادر کښې مونځ کونکې) ذکرکړې دې.

ګمان وئیلو سره ئی څکه ذکرکړو چه دَدې خبرې څو احتمال موجود دې چه حضرت عمر رضی الله عنه په قصد سره دا صورت پریخودې وې څکه چه کوم ستر نورو دوو صورتونو (جانګې اوقمیص، جانګې او قبا) کښې حاصلیږی هغه په جانګې اوڅادر کښې نه شی کیدې.

بل طرف ته حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَمذکوره صورتونو دَ بیان ترتیب ته کتلوسره دَاستقراء خیال اوکړو هم په دې وجه نهم صورت ته ګمان وئیلوسره ذکرکړو اودا صورت په هغه صورت کښې ټیک کیدې شی چه څادر لوئی وی څکه چه هغه وخت مقصود یعنی دَستر پټول حاصلیږی.[۳]

**دَحدیث شریف نه مستفاد امور**: دَ دې حدیث نه دا امور مستفاد کیږی چه: ① کله چه دَ یوې خبرې علم نه وی نوهغه چرته دَ پوهه سړی نه پوښتنه کول پکاردی. ② دَ کپړو وسعت سره په کمو کپړو کښې مونځ کول مکروه دی. ③ مونځ په دوو کپړو کښې یا په زیاتو کپړو کښې اداکول افضل اومستحسن عمل دې. ④ دَ مونځ په حالت کښې هم داسې کپړې استعمالول پکاردی کومې کپړې چه اغوستو سرهٔ مونږ په خپلو مجالسو کښې شرکت کوو.[۴]

---

[۱] شرح ابن بطال: ۲۹/۲فتح الباري:۶۲۷/۲عمدة القاري: ۱۰۹/۴إرشادالساري: ۲۴/۲ الکوثر الجاري: ۴۶/۲فضل الباري: ۴۱/۳.

[۲] فتح الباري: ۶۲۷/۲عمدة القاري: ۱۰۹/۴إرشادالساري: ۲۴/۲.

[۳] شرح ابن بطال: ۲۸/۲فتح الباري: ۶۲۷/۲عمدة القاري: ۱۰۹/۴ إرشاد الساري: ۲۴/۲.

[۴] الشرح المیسر لصحیح البخاري: ۲۲۰/۱فیض الباري: ۱۷/۲ شرح الکرماني: ۲۵/۴.

**دَ حديث ترجمة الباب سره مطابقت:** دَمذكوره حديث ترجمة الباب سره مطابق واضح دى چه دَ كومو كپړو ذكر دي دَ هغي ذكر ترجمة الباب كښې هم دي.([1])

يوه خبره قابل غور ده چه ترجمة الباب كښې دَ تبان ذكر دي دَتبان نه مراد جانګي اندړ ونير نيكر كچه وغيره دى اودا لباس داسې دي چه دَدې دَاغوستلو په صورت كښې پتون ښكاره وى حالانكه پتون پټول په مانځه كښې ضروري دى. دغه شان دَمانځه نه علاوه هم دَ ستر كيدو دَ وجې نه پټول ضروري دى. حالانكه دَ ترجمة الباب په مقصد كښې دا خبره راغلې وه كه چرته چا سره صرف هم دغه وي نو هغې كښې هم مونځ صحيح دي.

نوددې باره كښې شيخ الحديث صاحب ﷫ ليكي چه صرف په تبان كښې دَ مانځه دَ جواز قول صرف دَامام مالك ﷫ مذهب دي اودَ امام بخاري ﷫ ميلان په دې مسئله كښې دَ امام مالك ﷫ په طرف دي. زمونږ په نيز به مراد داشى چه كه چرې تبان كښې ستر پټيدې شى نوبيا صرف هم دا اغوستلو سره مونځ اداكول به صحيح دى. ګنى دې سره چرته دَ يو بلې كپړې اغوستل او مونځ اداكول صحيح وى ګنى نه.([2])

**ترجمة الباب سره متعلق دَحضرت مدنى ﷫ رائې:** زمونږ استاذ محترم حضرت مدنى ﷫ فرمانى چه په دې ترجمة الباب كښې دَ څلورو كپړو ذكر دې. په كوم كښې چه ګنډلې شوې او بغير ګنډلې شوې دواړه شان كپړې شامل دى. چنانچه دَامام بخاري ﷫ دې ترجمة الباب نه دا مقصد بيانول دى چه سړى سره دَ ستر پټولو دَپاره څنګه كپړه چه هم وى كه ګنډلې شوې وى اوكه غيرګنډلې شوې دَهغې په اغوستو سره مونځ كول صحيح دى. دا مراد اخستلوسره په مذكوره باب كښې ذكركړې شوې دَ دواړو احاديثو ترجمة الباب سره مطابقت قائميږى. ځكه چه په حديث اول كښې خو نيغ په نيغه په هغه كپړوكښې دَ مونځ كولوذكر موجود دې خو په دويم حديث كښې دَعمرې ذكر دې او په دې كښې ګنډلې شوې كپړې منع ګرځولې شوى دى. لهذا په عمره كښې ناګنډلې څادر تړلې شى دغه شان دَ دويم حديث تعلق هم بې غبار طريقه سره به دَترجمة الباب نه معلوم شى

## الحديث الثاني

[٣٥٩] - حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: سَأَلَ رَجُلٌ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ؟ فَقَالَ: «لَا يَلْبَسُ الْقَمِيصَ وَلَا السَّرَاوِيلَ، وَلَا الْبُرْنُسَ، وَلَا ثَوْبًا مَسَّهُ الزَّعْفَرَانُ، وَلَا وَرْسٌ، فَمَنْ لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ، وَلْيَقْطَعْهُمَا حَتَّى يَكُونَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ»، وَعَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ ([3]) - [ر ٣٢]

**ترجمه:** عبدالله بن عمر ﷠ ارشاد فرمانى چه يوسړى دَ نبى كريم ﷺ نه پوښتنه اوكړه چه كوم سړي احرام اوتړى هغه به څه اغوندى؟ حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه احرام تړونكې به نه قميص اغوندى نه پټكې او نه پانجامه نه برنس (يعنى هغه كپړه كومې سره چه ټوپنى هم ګنډلې شوې وى) اونه هغه

---

[1]) عمدة القاري: ١٠٨/٤.

[2]) الكنزالمتواري: ٣٢/٤.

[3]) ذدې حديث مكمل تخريج كشف البارى كتاب العلم: ٦٦٣/٤ كښې تيرشوې دي

کپړه په کوم کښې چه ورس یا زعفران لګیدلې وی. بیا که محرم ته د اچولودپاره چپل ملاؤ نه شی نو موزې دې د ګیټونه لاندې کټ کولوسره واچوی.

## تراجم رجال

**عاصم بن علی، نوم اونسب:** داعاصم بن علی بن عاصم صهیب الواسطی رحمه الله دې. ددوی کنیت ابو الحسین دې خودَدوی د کنیت باره کښې یوقول ابوالحسن القرشی التیمی هم دې.[۱] دا د قریبة بنت محمد بن ابی بکر الصدیق رضی الله عنهما آزاد کړې شوې غلام وو. [۲]

**شیوخ اوتلامذه:** د کومو شیوخونه چه دې روایت نقل کوی په هغوی کښې محمدبن عبدالرحمن بن ابی ذئب رحمه الله، دهغه رور الحسن بی علی بن عاصم رحمه الله، د دوی والد علی بن عاصم، رحمه الله ابوالاشهب جعفر بن حیان العطار رحمه الله دی، زهیر بن معاویه رحمه الله، ابوالاحوص سلام بن سلیم رحمه الله، شریك بن عبدالله رحمه الله، شعبه بن الحجاج رحمه الله، عاصم بن محمدبن زید العمری رحمه الله، ابو اویس عبدالله بن عبدالله المدنی رحمه الله، عبدالرحمن بن عبدالله المسعودی رحمه الله، عکرمه بن عمار الیمامی رحمه الله، یزیدبن ابراهیم التستری اونورډیرزیات ائمه حدیث شامل دی.اود هغوی نه روایت کونکو کښې امام بخاری، ابراهیم بن اسحاق الحربی، احمدبن حنبل، عبدالله بن عبدالرحمن الدارمی، عبیدالله بن عمر القواریری، علی بن عبدالعزیز البغوی، عمر بن حفص السدوسی، محمدبن احمد بن النضر الازدی، ابوحاتم محمدبن ادریس الرازی، محمدبن سوید الطحان، محمدبن یحی الذهلی او محمدبن یونس الکدیمی وغیره داخل دی[۳] هغوی په بغداد کښې د یوې اوږدې مودې پورې دحدیث شریف درس ورکولو. ددې نه پس د واسط په طرف واپس راغلو او هم په واسط کښې وفات شو [۴]

**اقوال جرح وتعدیل:** دعاصم بن علی رحمه الله باره کښې اکثر ائمة الرجال دتعدیل اقوال ذکرکړی دی سوادابن معین نه دټولو اقوالو خلاصه ذکرکولې شی:صالح بن احمدبن حنبل دخپل پلار ابن حنبل نه نقل کولوسره فرمائی«ماأقل خطأه، قدعرض علی بعض حدیثه»[۵]عبدالله بن احمدبن حنبل د خپل پلار نه نقل کولوسره فرمائی: «لقدعرض علی حدیثه، وهواصح حدیثاً من أبیه» مطلب دادې چه زما په وړاندې د هغوی څه احادیث نقل کړې شو نوما دهغه روایات د هغه د پلار د روایاتونه زیات صحیح اولیدل.[۶] ابوالحسن المیمونی رحمه الله د احمدبن حنبل رحمه الله نه روایت کولوسره فرمائی چه: «صحیح الحدیث، الغلط ماکان أصح حدیثه، وکان إن شاءالله صدوقاً»[۷]

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی چه ما داحمدبن حنبل رحمه الله نه واؤریده چه دهغه نه دعاصم بن علی رحمه الله با ره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوی اوفرمائیل «حدیثه حدیث مقارب حدیث أهل الصدق، ماأقل الخطأ فیه»[۸]

---

[۱] تقریب التهذیب: ۴۵۸/۱ الکاشف ۵۲۰/۱التاریخ الکبیر: ۴۹۱/۳.
[۲] تهذیب التهذیب: ۵۱۱/۱۳الأعلام الزرکلی:۲۴۸/۳.
[۳] تهذیب الکمال: ۵۱۰/۱۳-۵۰۹تهذیب التهذیب: ۵۰/۵.
[۴] تهذیب الکمال: ۵۱۱/۱۳سیرأعلام النبلاء: ۲۶۳/۹.
[۵] الجرح والتعدیل: ۴۵۴/۶تهذیب التهذیب: ۵۰/۵.
[۶] تهذیب الکمال: ۲۶۳/۹تهذیب التهذیب: ۵۰/۵.
[۷] سیرأعلام النبلاء: ۲۶۳/۹ تهذیب التهذیب: ۵۰/۵.
[۸] تهذیب الکمال: ۵۱۱/۱۳تهذیب التهذیب: ۵۰/۵.

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي صدوق (۱) ابن حبان رحمه الله هغه په كتاب الثقات كښې ذكركړې دې (۲) ابوالحسين ابن المنادى رحمه الله فرمائي چه عاصم بن على د بغداد مسجد رصافه كښې به درس وركولو. دهغوى په مجلس كښې به د يولك نه هم زيات خلق وو دهغوى احاديث املا كونكوكښې به هارون الديك او هارون مكحلة هم وو. (۳)
په ده باندې ابن معين رحمه الله جرح كړې ده. دلته اقوال جرح او قول فيصل ذكركولې شي. صالح بن محمد الحافظ د يحيى بن معين قول ذكركولوسره فرمائي ((كان عاصم بن على ضعيفا)) (۴)معاويه بن صالح رحمه الله د ابن معين رحمه الله نه نقل كوى فرمائي ((ليس بشئ)) په يوبل روايت كښې دى ((ليس بثقة)) (۵)

مفضل بن غسان الغلابى رحمه الله فرمائي چه ماد يحيى بن معين رحمه الله د عاصم بن على رحمه الله باره كښې تپوس اوكړو نو هغوى د عاصم بن على رحمه الله مذمت اوكړو اودهغه ئې خرابه تذكره اوكړه. (۶)عبيدالله بن محمد الفقيه رحمه الله وائي چه ماد يحيى بن معين رحمه الله نه د عاصم بن على رحمه الله باره كښې ((كذاب ابن كذاب)) وئيل اوريدلى دى. (۷)
دابن معين رحمه الله د جرح نه پس علامه ذهبى رحمه الله د عاصم بن على رحمه الله تعديل بيانولونه پس فرمائي. حالانكه زما په نيز عاصم بن على رحمه الله هم هغه دې كوم چه ما ذكركړې دې يعنى ((كان عالما، صاحب حديث)) (۸) علامه ذهبى رحمه الله بل خائى كښې فرمائي چه په عاصم بن على رحمه الله باندې يحيى بن معين رحمه الله جرح اوكړه حالانكه صحيح خبره داده چه هغه صدوق دې لكه چه ابوحاتم رحمه الله ذكر كړې دې (۹)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ابن سعد رحمه الله او ابن قانع رحمه الله دهغه توثيق كړې دې او فرمائيلى دى ((كان ثقة في الحديث)) (۱۰)
ابن عدى رحمه الله په الكامل كښې د عاصم بن على څلورمنكر روايت ذكركړل دهغې نه پس ئې اوليكل چه د عاصم بن على د روايت كښې د دې څلورو رواياتونه علاوه بل يو روايت هم كمزورې نه دې ليدلې شوې. دهغه نه روايت كونكو يو لوئي جماعت دې. مونږ ددغه څلورو رواياتونه علاوه بل يوروايت كښې څه حرج نه دې ليدلې.
ابن معين رحمه الله دهغوى تضعيف كړې دې نواحمدبن حنبل رحمه الله دهغه دهغه د پلار اودهغه د رور توثيق هم كړې دې. (۱) محمدبن احمد بن ابراهيم الحكيمى رحمه الله نقل كوى دابوعبدالله الجعفى الكوفى رحمه الله

(۱) الجرح والتعديل: ۴۵۴/۶.
(۲) الثقات لابن حبان: ۲۵۷/۷.
(۳) سيرأعلام النبلاء: ۲۶۳/۶تهذيب الكمال: ۵۱۳/۱۳.
(۴) تهذيب الكمال: ۵۱۳/۱۳تهذيب التهذيب: ۵۰/۵.
(۵) تهذيب الكمال: ۵۱۳/۱۳تهذيب التهذيب: ۵۰/۵.
(۶) تهذيب الكمال: ۵۱۳/۱۳تهذيب التهذيب: ۵۰/۵.
(۷) الكامل لابن عدى: ۲۳۴/۵تهذيب الكمال: ۵۱۳/۱۳.
(۸) ميزان الاعتدال: ۳۵۴/۲تذكرة الحفاظ: ۳۹۷/۱.
(۹) سيرأعلام النبلاء: ۲۶۳/۶الجرح والتعديل: ۴۵۴/۶.
(۱۰) تهذيب التهذيب: ۵۱/۵إكمال تهذيب الكمال: ۱۱۱/۷.

رحمه الله نه، هغه فرمائي چه ماډ يحيى بن معين رحمه الله نه واوريده هغه د عاصم بن على باره كښې فرمائيل چه هغه سيدالمسلمين دى. (۲) عبيدالله بن محمد الفقيه رحمه الله وائي چه ما يحيى بن معين رحمه الله ته اووئيل چه ته د الله تعالى شكر اداكړه دهغه تعريف ئې اوكړه خكه چه دې وخت كښې سيدالناس دې. نوهغه اووئيل چه ستا دې ناس وى چپ شه. سيدالناس خو عاصم بن على دې. دهغه په مجلس كښې ديرش زره خلق وى.(۳)

ابوبكر المروذى رحمه الله وائي چه ماډ احمدبن حنبل رحمه الله نه د عاصم بن على باره كښې تپوس اوكړو اودې سره سې پخپله ورته هم اووئيل چه ديحيى بن معين رحمه الله وينا ده چه په دنياكښې د عاصم د نوم خومره هم كسان دى هغه ټول په ټول ضعيف دى. په دې باندې امام احمد بن حنبل رحمه الله اوفرمائيل چه «ما أعلم منه إلا خيراً، كان حديثه صحيحاً، وحديث شعبة والمسعودي ماكان أصحها» (۴) دهغوى په مجلس كښې به يولك او شل زره اوډ يولك پورې كسان شامل وو.(۵)

**وفات:** دعاصم بن على رحمه الله وفات ۲۲۱هجرى كښې شوې.(۶) په دې باندې زياتوالې كولوسره ابن سعد رحمه الله ليكلي دى چه درجب مياشت وه د پير ورځ وه او نيمه مياشت تيره شوې وه. (۷)

**ابن ابي ذئب:** دامحمدبن عبدالرحمن بن المغيره بن الحارث بن ابى ذئب القرشى العامرى المدنى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب العلم باب حفظ العلم كښې تيرشوى دى.(۸)

**الزهري:** دا امام محمدبن مسلم بن عبيدالله المعروف ابن شهاب الزهرى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الإيمان باب بدء الوحى دريم حديث لاندې تيرشوى دى. (۹)

**سالم:** دا سالم بن عبدالله بن عمر بن الخطاب رضي الله عنهم دې. ددوى حالات كتاب الإيمان باب الحياء من الإيمان لاندې تير شوى دى. (۱۰)

**عبدالله ابن عمر:** دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حالات كتاب الإيمان باب الإيمان وقول النبى صلى الله عليه وسلم: بني الإسلام على خمس لاندې تيرشوى دى. (۱۱)

## شرح حديث

(۱) الكامل لابن عدى: ۲۳۵/۵الكاشف مع حاشية: ۵۲۰/۱.
(۲) تهذيب الكمال :۵۱۳/۱۳ تهذيب التهذيب: ۵۰/۵.
(۳) ميزان الاعتدال: ۳۵۵/۲تهذيب الكمال: ۵۱۳/۱۳.
(۴) تهذيب الكمال :۵۱۱/۱۳ تهذيب التهذيب: ۵۰/۵.
(۵) سير أعلام النبلاء: ۲۶۳/۹ميزان الاعتدال: ۳۵۵/۲.
(۶) الكاشف: ۵۲۰/۱.
(۷) الطبقات الكبرى: ۳۱۶/۷التاريخ الكبير: ۴۹۲/۶الكاشف: ۵۲۰/۱.
(۸) كشف البارى: ۴۴۲/۱.
(۹) كشف البارى: ۳۲۶/۱.
(۱۰) كشف البارى: ۱۲۹/۲-۱۲۸.
(۱۱) كشف البارى: ۶۳۷/۱ .

مذکوره حدیث کتاب العلم په آخرکښې تیرشوې دې. ددې حدیث تشریحي مباحث څه هم هلته تیرشوي دي. داحدیث مبارك چونکه کتاب الحج سره متعلق دې په دې وجه به تفصیلي مباحث هم هلته راځي. خو بیا هم ددې حدیث په دې باب کښې د ذکرکولومقصد صرف په دې امر باندې خبردار کول دي چه مونځ قمیص پرتوګ یا بل ګنډلې شوې کپړې اغوستونه بغیر ادا کول جائز دي لکه چه محرم داسې لباس استعمالوي کوم چه ناګنډلې وي.(۱)

**دَحدیث مبارک مستفاد امور**: دَحدیث شریف مستفاد کیدونکي امورو نه ډیر خو په کتاب العلم کښې بیان شوي دي خو بیا هم دلته موضوع سره متعلق یوه داخبره هم مستفاد کیږي چه په مونځ کښې مقصودي امر دَستر پټول دي که هغه په هر قسم کپړه سره هم اوشي.

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت**: علامه عیني رحمه الله دَمطابقت سره متعلق لیکلي چه ددې حدیث ترجمة الباب سره مطابقت په دې حیثیت سره دې چه مونځ دَ قمیص او پرتوګ نه بغیر هم اداکیږي او په ترجمة الباب کښې هم دغه امر دې چه مونځ په ذکرکړې شوو کپړونه په یوه کپړه کښې جائز دې.(۱)

**قوله: وعن نافع عن ابن عمر عن النبي صلى الله عليه وسلم مثله**: په دې عبارت کښې امام بخاري رحمه الله د روایت یو بل طریق ذکرکوي. ددې په تشریح کښې مختلف شارحینو مختلف اقوال دي کوم چه ذکرکولې شي.

**دَعلامه کرماني رحمه الله رائې**: علامه کرماني رحمه الله فرماني چه داجمله دَامام بخاري رحمه الله تعلیق دې اودا احتمال هم دې چه دَ «عن نافع» عطف دَتیر شوي روایت سند کښې «عن سالم» باندې وي.(۲)

**دَابن حجر رحمه الله په علامه کرماني رحمه الله باندې رد**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرماني چه دلته دَعطف والاخبره ده دَعلامه کرماني رحمه الله دَ ګمان مطابق تعلیق والا خبره نه ده. ځکه چه داعقلي تجاویز دي دکوم استعمال چه په امور نقلیه کښې کول مناسب نه دي.(۳)

**دَعلامه عیني رحمه الله په ابن حجر رحمه الله باندې رد**: علامه عیني رحمه الله دَ حافظ صاحب په رد باندې تبصره کولو سره فرماني چه دَحافظ صاحب دَ علامه کرماني رحمه الله دَ توجیه شناعت بیانول صحیح نه دي. ځکه چه علامه کرماني رحمه الله دې ته تعلیق دَ ظاهري صورت په کتلو سره ونیلې دې په دې باندې جزم نه دې کړخولې. هم دغه وجه ده چه علامه کرماني رحمه الله داهم ذکرکړې دي چه په دې ځائې کښې یواحتمال دَعطف هم دې.(۵)

په کتاب العلم کښې مذکوره روایت په دوو طرق سره ذکرکړې شوې وو. ړومبې طریق دَحضرت نافع رحمه الله سره وو اودویم طریق حضرت سالم رحمه الله سره دلته هم په دوو طرق سره ذکر دې البته ترتیب برعکس دې ړومبې طریق دَ حضرت سالم رحمه الله نه دې او دویم دَحضرت نافع رحمه الله نه

---

۱) فتح الباري: ۶۲۸/۲شرح الکرماني: ۲۵/۴.

۲) شرح الکرماني: ۴/۲۶-۲۵عمدة القاري: ۱۱۰/۴ الکوثرالجاري: ۴۷/۲.

۳) شرح الکرماني: ۲۶/۴.

۴) فتح الباري: ۶۲۸/۲.

۵) عمدة القاري: ۱۱۰/۴.

## ۹- باب: مَا يَسْتُرُ مِنَ الْعَوْرَةِ

دا باب دې دَ سترعورت په بيان کښې.

**دَ باب دَ عنوان مطلب:** په دې عنوان کښې دَ مَا باره کښې دوه احتمالات دی. دابه مصدريه وی يا موصوله. دَ مصدريه کيدو په صورت کښې دَدې تقدير «باب فی بيان ستر العورة» به وی او که چرې دا موصوله اومنلې شی نودَدې تقدير «باب فی بيان الشیء الذي يستر، أي: الذي يجب ستره».

په رومبی صورت کښې ترجمه "دا باب دَ سترعورة په بيان کښې دې" وی او په دويم صورت کښې به ترجمه "دا باب دې دَهغه انداموپه بيان کښې دکومو پټول چه فرض دی" وی. دويمه خبره "من" بيانيه ی يا تبعيضيه، اکثرشراح حديث دا "من" بيانيه گرځولې دې.(۱)

**دَ حضرت کشميری رحمه الله رائې:** په دې موقع باندې کشميری رحمه الله اوفرمائيل چه په تراجم ابواب کښې سل يا پاؤباندې سل ځله "من" راغلې دې. شارحينو چرته مطلب تبعيضيه او کله بيانيه خودلې دې دَدې دوارو فرق په "رضی" کښې دې اوکتلې شی دَ بيانيه په صورت کښې اطراد حکم دَپاره وی. ما په هرځائی کښې تبعيضيه گرځولې او په دې وجه بعض ځايونوکښې تقرير کولوسره بنايم او شارحين په آرام کښې دی. دلته به دَ تبعيض صورت داسې وی چه "عورة" په لغت کښې هر هغه شی ته وائی دکوم نه چه حياء اوکړې شی. لهذا دَدې دَ افراد نه دَ سړی اوبنځې هغه اندامونه هم دی دکومې ستر چه واجب دې.(۲)

**دَ عورة معنی:** عورة دَعور نه دې دې نه مرادهرهغه اندام دې دکومې په ښکاره کيدو باندې چه دَهغې نه حياء کولې شي. دَدې نه علاوه صرف په شرمگاه باندې هم دَ عورة اطلاق کولې شي (۳).

**دَترجمة الباب مقصد اودَ حافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَدې باب غرض دَ مونځ نه بهر دَسترعورت فرضيت اوحد خودل دی. دَدې باب نه دا ښکاره کيږی چه دَ امام بخاری رحمه الله په نيز واجب ستر دَ انسان شرمگاه (وړاندې روستو دواړه) دی. په دې باب کښې دَ مذکوره رواياتونه رومبې حديث په دې باندې شاهد دې چه دنبی کريم ﷺ نهی مقيد ده دَهغه وخت اوصورت سره چه کله په شرمگاه باندې هرڅه هم (کپړه وغيره) نه وی. دَدې مقتضی دادې چه کله شرمگاه پټ وی نوبياهم نهی نشته دې. اوپه مانځه کښې دَستر باره کښې امام بخاری رحمه الله سابقه ابواب کښې تفصيل بيان کړې دی.(۴)

**دَعلامه عينی رحمه الله رائې او په حافظ صاحب رحمه الله باندې نقد:** دَ علامه عينی رحمه الله په نيزمطلقاً دَ ستر عورة واجب مقدار بيانول دی که په مانځه کښې وی اوکه دَ مانځه نه بهر وی. بيا علامه عينی رحمه الله په حافظ ابن حجر رحمه الله باندې نقد کولو سره فرمائی چه بعض کسانو دا امر خارج صلاة سره مقيدکړې دې اودليل دَحديث باب لفظ "احتباء" نيولې دې حالانکه په دې ځائی کښې دَخارج صلاة په صورت

---

(۱) عمدة القاری: ۱۱۱/٤ إرشادالساری: ۲٦/۲ تحفة الباری: ۲۹۱/۱ الكنزالمتواری: ۳٦/٤.

(۲) فيض الباری: ۱۸/۲ أنوارالباری: ۱۱۸/۱۱.

(۳) النهاية فی غريب الحديث والأثر: ۲۷۰/۲ مجمع الصحاح ص: ۷۵۳ مجمع الأنوار: ۷۰۰/۳.

(٤) فتح الباری: ٦۲۸/۲

کښې نهي مقيد نه ده. بلکه دا امر خارج صلاة او داخل صلاة دواړو سره دې.(١)

**دحضرت شيخ الحديث رحمه الله رائې:** حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائي چه دَدې باب غرض دا خبره بيانول دي چه دَ بدن هغه حصه کومه چه په شرمګاه کښې داخل ده اوډکوم پټول چه فرض دى دَهغې مقدار اواندازه څه ده؟(٢)

بل حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائي زما په نيز راجح هغه دى کوم چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلى دى څکه چه دامام بخاري رحمه الله په نيز ستر عورة صرف دواړه شرمګاهونه دى.پټونان په ستر کښې داخل نه دى اودَدې تفصيل وړاندې مستقل تفصيل سره راځى.(٣)

**دَ سترعورت مقدار:** دَ کوموانداموانو پټول چه ضروري دى دَهغه اندامونو په تعين کښې دَ ائمه اربعه اختلاف دې. علامه کرماني رحمه الله دَ ابن بطال رحمه الله په نسبت سره دَدغه اختلاف طرف ته په اجمالي توګه باندې اشاره کړې ده. دلته دَ ابن بطال رحمه الله ذکرکړې شوې تفصيل ذکرکيږي.

علامه ابن بطال رحمه الله فرمائي چه دَ ستر عورت په مقدار کښې دَعلماؤ اختلاف دې. دَ يوې ډلې وينا ده چه بغير دَ وړاندې روستو شرمګاهونونه دَ سرې دَ يواندام ستر واجب نه دې. دا قول دَ ابن ابى ذئب او اهل ظواهر دې. دامام مالك رحمه الله په نيزدَ ستر عورت حد دَ نامه او زنګون په مينځ کښې دې. هم دغه قول دَ امام ابوحنيفه رحمه الله امام شافعي رحمه الله دامام اوزاعي رحمه الله او ابوثور رحمه الله دې. ددې ټولو ائمه په نيز نوم او زنګون په سترکښې داخل نه دې. بلکه ددې مينځ والا حصه سترکښې داخل ده. بغيردَ امام ابوحنيفه رحمه الله نه چه دَهغوى په نيز زنګون هم په ستر کښې داخل دې نوم نه دې اوهم دغه قول دامام احمد رحمه الله او عطاء رحمه الله دې. (يعني دَدې حضراتو په نيز هم نوم په سترکښې داخل نه دې او زنګون په ستر کښې داخل دې). خو دامام شافعي رحمه الله دَ بعض اصحاب په نيز نوم په ستر کښې داخل دې.(٤)

**په مونځ کښې داخل دَ سترعورت باره کښې دَ ائمه مذاهب:** دَ ستر عورت دوه قسمونه جوړيدې شي يو په مانځه کښې ستر عورت او بل دَ مانځه نه بهر ستر عورت. مسئله مبحوث عنها "دَداخل صلاة ستر عورت حد" دې. دلته دې مسئلې سره متعلق دَائمه اربعه اقوال ذکرکولې شي.

**داحنافو مذهب:** داحناف په نيز داخل صلاة سړى دَپاره دَ ستر عورت حد دَنامه نه دَ زنګون پورې دې زنګون په ستر کښې داخل دې اونوم نه اودَ داخل صلاة ښځې دَپاره دَستر عورت حد دَ هغې پوره بدن دې تردې چه دَ هغې زوړند شوى ويښته هم. بغيردَ تلو دَ باطن او دَ خپو ظاهر اودَ مخ يعني دا دريواړه اندامونه دَ ستر نه بهر دى.(٥)

**دَ شوافع مذهب:** دَشوافع په نيز دَ داخل صلاة سړى دَپاره دَستر عورت حددَ نامه نه تر زنګونونو پورې دې. نوم او زنګون په سترکښې داخل نه دې. بلکه دَ دې دواړو اندامونو په مينځ کښې داخل حصه ستر دې. چونکه دا دواړه اندامونه دې حصې سره ملحق دى کوم چه په سترکښې داخل دى. په دې

---

(١) عمدة القاري: ١١١/٨.

(٢) سراج القاري: ٣٧٩/٢.

(٣) الكنزالمتواري: ٣٥/٤.

(٤) شرح الكرماني: ٢٦/٤شرح ابن بطال: ٣٣/٢-٣٢.

(٥) الدرالمختار مع ردالمحتار كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب فى ستر العورة: ٢٩٨-٢٩٧ البحر الرائق كتاب الصلاة باب شروط الصلاة: ٤٧٠-٤٦٨ فتح القدير كتاب الصلاة:٢٦٦/١-٢٦٤.

وجه دَ سترِدَ پوره والي دَپاره دَ دغه دواړو اندامونو پټول هم ضروري دی. اودَ داخل صلاة بنځې دَپاره دَ ستر عورت حد دَهغې پوره بدن دې ترڅو چه دَ سر زوړند ویښته هم بغیرد مخ او دواړو تلو ددې دَ ظاهر اوباطن سره، چه داد ستر حصه نه ده.[1]

**مذاهب حنابله:** دَ داخل صلاة سړي دَپاره دَ ستر عورت حد دَ حنابله په نیز هم هغه دې کوم چه دَ شوافع په نیز دې. اودَ ښځې دَپاره هم حد په شان دَ مذهب شوافع دې. بغیرد مخ چه حنابله دښځې ټول بدن ستر گرځوی او صرف مخ ترې مستثنی گڼړی.[2]

**دَ مالکیه مذهب:** دَمالکیه په نیز دداخل صلاة مونځ گذار دَپاره ستر دوه قسمه دې یومغلظه اوبل مخففه. دَسړي دَپاره سترمغلظه دواړه شرمگاهونه دي اوسترمخففه هغه دې چه دَدې دواړه اندامونو نه زیات یعنی دَنامه زنگون پورې حصه اوکوم چه دَدې محاذي دی دَشا طرف نه ټول ستر دې.اودَ ښځې دَپاره ستر مغلظه بغیردسینې نه اودَدې مقابل اطراف اودَشا حصه ټول بدن ستر دې او ستر مخففه سینه اودَدې اطراف دی. دَدوی په نیز هم مخ اودَلاسونوشاه اومخ دننه طرف دَسترنه بهر دی[3]

**دَمانځه نه بهرسترعورة:** پورته په مانځه کښې دَ ستر عورة دَ حد باره کښې بیان اوشو اوس دَ مانځه نه بهر به کوم کوم ځائي پټولې شي. یا په نورو الفاظوکښې کومو اندامونو طرف ته نظر کول جائز دي؟ اودکوم طرف ته کتل ناجائز دی؟ په دې باره کښې قیاس خوداده چه ښځه ټول په ټول یعنی ټوله دَ سردَ ویښتونه واخله تر خپو پورې چه پټه وی دَهغې طرف ته کتل جائز نه دی. لیکن دَ بعض ضرورتونو اوحاجتونو دَ وجې نه خلقو سره دَنرمئی والا معامله کولوسره استحساناً دَ ښځې بعض اندامونو ته دکتلو اجازت ورکړې شوې دې.[4]

دَ احنافو دَ مذهب مطابق دَدې څه تفصیل ذکرکولې شي.

**دَسړي دَښځې طرف ته دکتلوحکم:** نظر(دکتلو) مسائل په څلورو قسمونوکښې تقسیم کولې شي. ① دَسړي سړي ته کتل ② دَښځې ښځې ته کتل ③ دَښځې سړي ته کتل ④ اودسړي ښځې ته کتل[5]

① **دَ سړي سړي ته کتل** :دَسړي دَپاره دَسړي طرف ته کتل سوادَستر والادَ ځائي نه نور ټولو اندامونو طرف ته کتل جائز دی او ستر دَ نامه نه واخله تر زنگون پورې دې سره دَ زنگون. بیا دَ زنگون حکم په نسبت دَ پټون لږ شان کم دې. دَ دې دَپاره دَ رکبه تفسیر او معانی کښې دَ یونه زیات احتمالات دی

---

[1] العزیز شرح الوجیز کتاب الصلاة الباب الخامس فی شرائط الصلاة الشرط الثالث ستر العورة: ۲/۳۷-۳٤ المجموع شرح المهذب کتاب الصلاة باب سترالعورة:۳/۱۱٦۷ مغنی المحتاج کتاب الصلاة باب شروط الصلاة: ۱/۲۸۵ نهایة المحتاج کتاب الصلاة۲/۱۲-۱۱.

[2] الإنصاف للمروذی کتاب الصلاة باب ستر العورة:۱/٤۵۲-٤٤۹ المغنی لابن قدامة کتاب الصلاة سترالعورة فی الصلاة وحدالعورة:۱/۳۳۷-۳۳٦ المبدع شرح المقنع کتاب الصلاة باب سترالعورة: ۱/۳۲۰-۳۱٦کشف القناع عن متن الإقناع کتاب الصلاة ستر العورة:۱/۲٤۸-۲٤۷.

[3] المواهب الجلیل کتاب الصلاة فصل فی سترالعورة: ۲/۱۷۹ الشرح الصغیرللدردیر کتاب الصلاة شروط الصلاة ستر العورة: ۱/۲۸۵-۲۸۳ حاشیة الدسوقی کتاب الصلاة فصل فی ستر العورة: ۱/۳٤۵-۳٤۱الذخیرة کتاب الصلاة شروط الصلاة ستر العورة: ۳-۱۰۳-۲/۱۰۱.

[4] المبسوط للسرخسی کتاب الاستحسان: ۱۰/۱۵۱.

[5] المبسوط: ۱۰/۱۵۲بدائع الصنائع کتاب الاستحسان: ٦/٤۸۳.

چنانچه کوم سړي د بل سړي ښکاره زنګون طرف ته ګوري نوهغه په نرمئ سره پوهه کول پکاردي او که هغه انکار کوي نوهغه سره جګړه مه کوئ. خو که یو سړي د بل سړي برښنډي پتون طرف ته ګوري نو هغه دې په سختئ سره منع کړي اوکه چرې هغه انکار کونکي وي نوهغه سره باقاعده جګړه یعني د سختئ نه کار اخستل هم جائز دی. لیکن د وهلو ټکولونه به ځان ساتلي شي.

مذکوره حکم د سړي دپاره هغه وخت دې کله چه د فتني ویره نه وي، که چرې د فتني ویره وي نوبیا کتل جائزنه دی. مثلاً بې ږیرې ښائسته هلکانو طرف ته کتل.[۱]

② **دښځې ښځې ته کتل:** دښځې بلې ښځې ته د کتلو حکم داسې دې لکه د سړي سړي طرف ته کتل د بعض فقهاؤ وينا ده چه دښځې ښځې ته کتلو حکم په اعتبار سره داسې دې لکه د سړي خپل محارم ښځوته کتل. چنانچه ددې حضراتو په نیز ښځې دپاره د بلې ښځې شاه اوخیټه کتل جائزنه دی.[۲]

③ **د ښځې سړي ته کتل:** د ښځې دپاره سړي ته د کتلو حکم داسې دې لکه د سړي سړي ته کتل. یعني د ښځې دپاره د یوسړي د پتواندامونو نه علاوه (دنامه نه لاندې تر زنګونو پورې سره د زنګون کتل جائز دی. دلته داهم شرط دې چه داکتل هغه وخت جائز دی کوم وخت چه د عدم شهوت یقین وي او که چرې شهوت وي یا ګمان غالب وي د شهوت د پیداکیدو نوبیا داکتل جائزنه دی.[۳]

④ **اود سړي ښځې ته کتل:** دسړي ښځې ته کتل په څلورقسمه دی(۱)خپلې ښځې ته او مملوکه وینځې ته کتل(۲)خپل محرماتوته کتل(۳) دخپل ځان نه علاوه د بل چا وینځو ته کتل(۴) آزادو پردو ښځو ته کتل.[۴]

① **خپلو بیبیانو ته کتل:** دسړي دپاره خپلې بی بی او خپلې وینځې پوره بدن د سر نه واخله ترخپو پورې کتل جائز دی که شهوت سره وي اوکه بغیرد شهوت نه وي. ځکه چه ددې دواړو اصنافو سره په هراعتبارد فائدې اخستلو د جواز حکم دې نوبیا پرده خو ډیره لرې خبره ده.[۵]

② **خپل محرمات ښځوطرف ته کتل:** د سړي دپاره دخپلو محرماتو ښځو د زينت مواضع طرف ته کتل مباح دی. دغه شان د کوم اندام طرف ته چه کتل جائز دی نو د ضرورت په وخت هغه اندام ته لاس هم لګولې شي. لیکن داحکم هم مشروط دې عدم فتنه اوعدم شهوت سره، ګنې جائزنه دی بل د مواضع زينت نه علاوه شاه یا خیټې طرف ته کتل یا لاس لګول جائزنه دی په مواضع زينت کښې سر، ویښته، سټ، سینه، مټې، مروند،تلې، پتون، خپې اومخ داخل دې سر اوویښته د تاج اغوستلو ځایونه دی. سټ او سینه دهار وغیره اچولوځائی دې. غوږ د والو کانټو اچولو ځائی دې مټ او مروند د بنګړو وغیره اچولوځائی دې. لاس د ګوتمې او خضاب نکریزو لګولو ځائی دې. خپې د پائزیب اچولوځائی دې.او قدم د خضاب او نکریزو لګولو ځآیونه دی اومخ خو ټول زینت دې.[۱]

---

[۱]) المبسوط: ۱۵۲/۱۰بدائع الصنائع: ۴۹۷/۶الموسوعة الفقهية الكويتية: ۵۰/۳۱ردالمحتار: ۲۵۸/۵.

[۲]) المبسوط: ۱۵۴/۱۰-۱۵۳بدائع الصنائع: ۴۹۹/۶الموسوعة الفقهية الكويتية: ۴۷/۳۱ردالمحتار: ۲۶۲/۵.

[۳]) المبسوط: ۱۵۴/۱۰ الموسوعة الفقهية الكويتية: ۵۱/۳۱ردالمحتار: ۲۶۲/۵.

[۴]) المبسوط: ۱۵۴/۱۰ الموسوعة الفقهية الكويتية: ۴۴/۳۱.

[۵]) المبسوط: ۱۵۴/۱۰-۱۵۵بدائع الصنائع: ۴۸۹/۶الموسوعة الفقهية الكويتية: ۴۸/۳۱.

④ دَ نورو وينځوطرف ته كتل: دَغير وينځو مدبرات امهات الاولاد اومكاتبات طرف ته كتلوحكم هم داسې دې لكه دَ سرو دَخپلو محرماتو طرف ته دكتلو حكم چه دې. ځكه چه دَداسې وينځو په كور كښې كار روزګاركول، تګ راتګ، خدمت وغيره كول داسې اموردي چه دې نه خلاصې ممكن نه دې. دَدې ضرورتونو دَ وجې نه دَدومره امورو ګنجائش دې.اودوی سره خلوت او مسافرت هم دَ محارم ښځو په شان دې. (۲)

④ پردوښځوطرف ته كتل: دَ جمهور فقهاؤ په نيز دَ ښځې ټول بدن دَ پردی سړی دَپاره ستر دې سوا دَ مخ دوارو لاسونو او دوارو خپود قدمونو. ځكه چه په ډيرو معاملاتوكښې ښځه دَ سړو محتاج وی. مثلاً په اخستلو وركولوكښې. ليكن دَدې اندامونو ښكاره كول هم فتنه ده، امن كيدو سره مقيد دې. فقهاؤ مخ دَ ستر نه بهر ګرځولې دې ليكن په دور حاضر كښې دَ فتنودعام كيدو وجې نه به دَ مخ پرده هم كولې شی. (۳).

**دَ ښځود ستر باره كښې دَ شاه ولى الله محدث دهلوى رحمه الله موقف**: دَحضرت شاه ولى الله محدث دهلوى رحمه الله رائې دَ ستر عورة دَحد باره كښې داسې ده چه هغوی فرمائی چه دَستر عورة حد دوه قسمه دې. واجب اومندوب. واجب ستر دَ مانځه دَ صحت دَ پاره شرط دې اوهغه په سړوكښې صرف دواړه شرمګاهونه دی په تاكيدی توګه باندې دی دوارو سره پتون هم يوځائی كړې شوې دی اودَ ښځې دَ پاره دَ ستر عورة حد دَهغې پوره بدن دې. اومندوب ستر عورة دادې چه په شرط دَ مونځ ګذار دَ وسعت دې په يوه كپړه كښې مونځ نه كوی بلكه پوره توګه باندې دې خپله ظاهری حليه اوهيئت دَ شان اوشوكت والا جوركړی او دَ الله ﷻ په دربار كښې دې حاضر شی. (۴) په دې ځائې كښې حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله دَحضرت شاه صاحب رحمه الله دَ سيرت متعلق څه ليكلی دی اوهغه دادی:

"زمونږ شاه ولى الله صاحب قدس سره لكه چه څنګه مقلد دې هم هغه شان نيم مجتهد هم دې. هغوی فرمائی چه مانه په دريو څيزونو باندې (په روحانی توګه) زما دَ طبيعت خلاف مجبوركړې شوم، يوخو تقليد مګر دااختيار راكړې شو چه غواړې نودَ چا تقليد اوكړه. هغوی يوځل دَ حضورپاك نه روحانی سوال اوكړو چه په دې مذاهب اربعه كښې كوم يوغوره دې؟ نو ارشاد اوفرمائيلې شو چه ټول برابر دی. شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه په هندوستان كښې دَ حنفی مذهب سره تدلی الهی وينم دَدې په خلاف كښې خطرات دی. او زما رائې داده تدلی الهی تبليغی جماعت سره تړلې دې. دَ تدلی نه مراد خاص رحمت دې چه دَدې مخالفت كول سخت خطرناك دی يوځل حضرت اقدس پيران پير شيخ عبدالقادر جيلانی رحمه الله اوفرمائيل «قدمی على رقبة كل ولی» يوبزرګ اوفرمائيل "إلا أنا" حضرت پيران پير اوفرمائيل دَ چا په اوږه چه زما قدم نه دې دَهغه په اوږه باندې دَسور (خنزير) قدم دې چنانچه هغه دَ خپلو شاګردانو سره حج ته روان وو په لاركښې په يوه نصرانيه باندې نظر پريوتلو او په هغې باندې

---

[1]) المبسوط: ۱۰/۱۵۷-۱۵۵بدائع الصنائع: په دې عنوان باندې پوره تفصيلی بحث كتاب الغسل باب الغسل بالصاع ونحوه كښې تير شوې دې ۶/۴۸۹الموسوعة الفقهية الكويتية: ۳۱/۴۷ من شاء فليراجع.

[2]) المبسوط: ۱۰/۱۵۷بدائع الصنائع: ۶/۴۹۱الموسوعة الفقهية الكويتية: ۳۱/۴۹ردالمحتار: ۲/۲۵۹.

[3])المبسوط: ۱۵۸-۱۰/۱۶۰فتح القدير: ۱/۲۶۶بدائع الصنائع: ۶/۴۹۴-۴۹۲البحرالرائق: ۱/۴۶۶ ردالمحتار: ۵/۲۶۱

[4]) حجة الله البالغه فصل الصلاة ثياب المصلى السترالواجب والمندوب: ۱/۵۴۸-۵۴۷.

منبن شو اوشاګردان ئې رخصت کړل. بيا الله ﷻ څه موده پس هغه ته د مريدانو اوشاګردانو دعاګانو سره هدايت ورکړو شاه ولى الله رحمه الله فرمائي اودويم څيز په کوم چه زه مجبورکړې شوم هغه تفضيل شيخين دې. زما زړه غوارى چه علي رضي الله عنه افضل وي ځکه چه هغه د حضورپاک خوم او د ټولو سلاسل اولياء الله مرجع دې. مګر زه په تفضيل شيخين رضي الله عنهما باندې مجبورکړې شوم او اوفرمانيلې شو چه شيخين حضرات سره خو د ظاهرى دين تحفظ او بقاء ده اودعلى رضي الله عنه سره د باطن شريعت اوعلوم و اسرار اودا ټول د ظاهر شريعت تابع دى. اودريم څيز په کوم چه زه مجبورکړې شوم هغه د اسباب اختيار دې.زما زړه غوارى چه اسباب ترک کړم مګر زه ددې نه منع کړې شوم. هم ددې شاه ولي الله رائې ده چه صرف سوآتين عورت دې د سړو دپاره اود متمدن حضرات دپاره پتون هم عورت دې[1]

## الحديث الأول

[۳٦۰]-حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا لَيْثٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ اشْتِمَالِ الصَّمَّاءِ، وَأَنْ يَحْتَبِيَ الرَّجُلُ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ، لَيْسَ عَلَى فَرْجِهِ مِنْهُ شَيْءٌ» (2)[۵۸۹۰، ۲۰۳۰، ۲۰۳۲، ۵۴۸۲، ۵۴۸۴، ۵۹۲۷]

**ترجمه:** حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه روايت کوى چه رسول الله ﷺ اشتمال صماء (يعنى هم په يوه کپړه کښې بدن پټولو سره په دې کښې د ستر ښکاره کيدو انديښنه وى) بل دا شان کيناستونه ئې هم منع فرمائيلې چه يوه کپړه واچوى اودواړه زنګونونه اودروى، په دې صورت کښې په شرمګاه باندې څه نه وى (يعنى ستر ښکاره پاتې کيږى).

### تراجم رجال

**قتيبة بن سعيد:** دا شيخ الاسلام ابورجاء قتيبه بن سعيد بن جميل بن طريف ثقفى رحمه الله دې. دَدوى تفصيلى حالات كتاب الإيمان باب إفشاء السلام من الإسلام کښې تيرشوى دى.[3]

**الليث بن سعد:** دا امام ابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمى رحمه الله دې. د دوى تفصيلى حالات كتاب بدء الوحى په دريم حديث کښې تير شوى دى.[1]

---

[1]) الكنزالمتوارى: ۳٦/٤-۳۵تقرير بخارى شريف: ۱۲۸/۲-۱۲۷.

[2]) أخرجه البخارى أيضاً فى كتاب الصوم باب صوم النظر رقم الحديث: ۱۹۹۰وفى كتا بالبيوع باب بيع الملابسة رقم الحديث: ۲۱٤۵-۲۱٤٤وفى كتاب اللباس باب إشتمال الصمآء رقم الحديث: ۵۸۲۰وفى باب الاحتباء فى ثوب واحد رقم الحديث: ۵۸۲۲وفى كتاب الاستئذان باب الجلوس كيفما تيسر رقم الحديث: ٦۲۸٤ومسلم فى كتاب اللباس باب النهى عن اشتمال الصماء والاحتباء فى ثوب واحد كاشفاً بعض عورته رقم الحديث: ۲۰۹۹وأبوداؤد فى كتاب الصيام باب فى صوم العيدين رقم الحديث: ۲٤۱۷وفى كتاب البيوع باب فى بيع الغرر رقم الحديث: -۳۳۷۷ ۳۳۷۸والنسائى فى كتاب الزينة باب النهى عن اشتمال الصمآء،رقم الحديث: ۵۳٤۳-۵۳٤۲ وابن ماجة فى كتاب اللباس باب مانهى عنه من اللباس رقم الحديث: ۳۵٦۰-۳۵۵۹ والجامع الأصول حرف الباء كتاب البيوع الباب الثالث الفصل الثالث فى النهى عن بيع الملامسة والمنابذة رقم الحديث: ۳٤۳، ۵۲۳/۱وحرف اللام كتاب اللباس الفصل الأول النوع الخامس فى الاحتباء والإشتمال رقم الحديث ۵۲٦۰، ٦٤۱/۱۰.

[3]) كشف البارى: ۱۸۹/۲.

**ابن شهاب:** دا ابوبكر محمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب بن عبدالله بن لونى الزهرى المدنى رحمه الله دي. دَدوى حالات كتاب بدءالوحى دريم حديث لاندې تير شوى دى. [۱]

**عبيدالله بن عبدالله بن عتبة:** دا عبيدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود رحمه الله دي. دَ دوى حالات كتاب بدءالوحى پنځم حديث او كتاب العلم باب متى يصح سماع الصغار؟ كښې تير شوى دى.

**ابي سعيدالخدري:** دا مشهور صحابى سعد بن مالك بن سنان بن عبيد بن ثعلبه بن عبيدبن الابجر انصارى خدرى رضي الله عنه دي. دَ دوى حالات كتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن كښې تير شوى دى [۲، ۳]

## شرح حديث

**قوله: نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن اشتمال الصماء:** راوى وائى چه جناب رسول الله ﷺ داشتمال الصماء نه منع فرمائيلې.

**دَ اشتمال الصماء تشريح:** دَ اشتمال الصمآء تشريح پخپله په يوبل حديث شريف كښې كړې شوې ده چه اشتمال الصمآء داده چه دَ خپلو دوارو اوږو نه په يوه اوږه باندې داسې كپړه واچولې شي چه دويمه اوږه ښكاره پاتې شي يعنى په هغې باندې كپړه نه وى او دويمه تشريح داكړې شوې ده چه دَ يوسړى په خپل بدن باندې داسې كپړه راتاوول چه دَهغه په شرمگاه باندې څه كپړه نه وى او هغه كولاؤ وى (دا طريقه ممنوع ده). [۴] دَ اشتمال الصمآء معنى په مذكوره حديث كښې راغلې ده خو بيا هم فقهاء كرام او ائمه لغات دَدې څه نوره تشريح هم كوى.

**دَ فقهاء كرامو په نيز:** دَ اشتمال الصمآء معنى داده چه يوسړې يوه كپړه داسې واغوندى چه دَ هغه په بدن باندې بله كپړه نه وې بيا هغه دَ دغه كپړې دَ دوارو پلونو نه يوپلو اوچت كړى او په خپله اوږه باندې كيږدى او دغه شان دَهغه شرمگاه بربنډ كيدو سره ښكاره شى. [۵]

**اودَ ائمه لغت په نيز:** دَ اشتمال الصمآء معنى داده چه په ټول بدن باندې داسې كپړه راتاؤ كړى چه دَدغه كپړې يو طرف هم اوچت شوې نه وى بيا په دغه كپړه كښې څه سوره وى دكومې نه چه اغوستونكې خپل لاسونه راوباسى. نو په دې مقام باندې به مراد داشي چه پوره بدن داسې پټول چه دَ ضرورت په وخت اوحاجت كښې خپل لاس په آسانئ سره استعمال نه كړې شى. [۶]

**قوله: وأن يحتبى الرجل فى ثوب واحد:** او نبى كريم ﷺ دَ دې خبرې نه هم منع فرمائيلې ده

---

[۱] كشف البارى: ۱/ ۳۲٤.

[۲] كشف البارى: ۱/ ۳۲٤.

[۳] كشف البارى: ۱/ ٤٦٦، ۳/ ۳۷۹.

[۴] صحيح البخارى كتاب اللباس باب اشتمال الصمآء رقم الحديث: ۵۸۲۰جامع الأصول كتاب البيوع الباب الثالث الفصل الثالث رقم الحديث: ۳٤۳، ۱/ ۵۲۳.

[۵] البحرالرائق كتاب الصلاةمايكره فى الصلاة: ۱/ ٤۳النهرالفائق كتاب الصلاة مايكره فى الصلاة:۱/ ۲۸۲ الفقه الإسلامى وأدلته كتاب الصلاة: ۲/ ۹۷۵.

[۶] لسان العرب حرف ش م ل: ۷/ ۲۰۲النهاية فى غريب الحديث والأثر المادة ش م ل : ۱/ ۸۹۱معجم الصحيح المادة ش م ل، ص: ۵۶۳

چه څوك سرې په يوه كپړه كښې داسې احتباء اوكړى چه دهغه په شرمګاه باندې څه څيز باقي پاتې نه شي.
**دَ احتباء مطلب:** احتباء دَ ناستې هغه شكل ته وائى په كوم كښې چه ناست خپلې دواړه ګوډې اودرولوسره په كوناټو باندې كينى او په خپله ملا او زنګونونو نه چاپيره څه كپړه يا رسئى اوتړى. په داسې كيناستوكښې ښكاره خبره ده چه داسې معلوميږى لكه چه دې ناست په يوڅيز سره اوډه لګولوسره ناست وى.[1] اوكله دَلاسونوپه ذريعه احتباء كيږى. لكه خپل لاسونه دَ زنګونو نه راتاؤ كړى دَدې صورت ممانعت هغه وخت وى چه كله ناست انسان داسې كينى نوشرمګاه ئې بربنډ شي. اوكه په شرمګاه ئې څه كپړه وى مثلاً پرتوګ ئې اغوستې وى بيا احتباء مذكوره ممنوع ده.
**دَحديث مبارك نه مستفاد امور:** دَ مذكوره حديث نه دوه امور مستنبط كيږى يو دَ اشتمال صماء ممانعت او بل دَ احتباء صورت ممنوعه.[2]
**دَحديث مبارك ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره مطابقت دَ حديث دې جملې «ليس على فرجه منه شيء» سره دې. داسې فرج كولاؤ ساتل منع دى. دا دلالت كوى چه ستر عورت واجب دې اوهم دغه دَ باب عنوان دې. «مايستر من العورة»[3]

## الحديث الثانى

[۳٦۸] - حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ بْنُ عُقْبَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: «نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعَتَيْنِ عَنِ اللِّمَاسِ وَالنِّبَاذِ، وَأَنْ يَشْتَمِلَ الصَّمَّاءَ، وَأَنْ يَحْتَبِيَ الرَّجُلُ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ»[4] [۵۵۹، ۵۲۳، ۱۸۹۱، ۲۰۳۸، ۲۰۳۹، ۵۴۸۱، ۵۴۸۳]

**ترجمه** :دَحضرت ابوهريره ﷛ نه روايت دې چه نبى كريم ﷺ دوه قسمه بيع، بيع اللماس اوبيع النباذ نه منع فرمائيلې ده اودَې خبرې نه ئې هم منع فرمائيلې ده چه يو سړې دې اشتمال الصماء اوكړى او هم په يوه كپړه كښې احتباء اوكړى.

---

[1]) أعلام الحديث للخطابي: ۳۵۲/۱عمدة القاري: ۱۱۳/٤جامع الأصول كتاب البيوع رقم الحديث: ۳٤۳، ۵۲۳/۱ النهاية في غريب الحديث والأثر: ۳۲۹/۱.
[2]) عمدة القاري: ۱۱۳/٤.
[3]) عمدة القاري: ۱۱۱/٤.
[4]) أخرجه البخاري في مواقيت الصلاة باب الصلاة بعدالفجر حتى ترفع الشمس رقم الحديث: ۵۸٤ وفي الصوم باب صوم يوم النحر رقم الحديث: ۱۹۹۳ وفي البيوع باب بيع الملامسة رقم الحديث: ۲۱٤۵وفي اللباس باب اشتمال الصماء رقم الحديث: ۵۸۱۹وباب الاحتباء في ثوب واحد رقم الحديث: ۵۸۲۱ومسلم في كتاب البيوع باب إبطال بيع الملامسة والمنابذة رقم الحديث: ۱۵۱۱والترمذي في كتاب البيوع باب ماجاء في المنابذة والملامسة رقم الحديث: ۱۳۱۰والنسائي في كتاب البيوع باب بيع الملامسة رقم الحديث: ٤۵۱۳باب تفسير ذلك رقم الحديث: ٤۵۱۷وابن ماجة كتاب التجارات باب ماجاء في النهي عن المنابذة والملامسة رقم الحديث ۲۱٦۹وفي جامع الأصول حرف الباء كتاب البيوع الفصل الثالث رقم الحديث: ۳٤٤، ۵۲٦/۱.

## تراجم رجال

**قبيصة بن عقبة:** داقبيصه بن عقبه بن محمدبن سفيان السوائى كوفى رحمه الله دې. دّدوى حالات كتاب الايمان باب علامة المنافق كښې تيرشوى دى.[1]

**سفيان:** دا ابوعبدالله سفيان بن سعيد بن مسروق ثورى كوفى رحمه الله دې. دّدوى حالات هم كتاب الايمان باب علامة المنافق كښې تيرشوى دى.[2]

**ابوالزناد:** دا ابوعبدالرحمن ابوالزناد عبدالله بن ذكوان مدنى قرشى رحمه الله دې. دّ دوى حالات كتاب الايمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان كښې تيرشوى دى.[3]

**اعرج:** دا ابوداؤد عبدالرحمن بن هرمز مدنى قرشى رحمه الله دې. دّدوى حالات هم كتاب الايمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان كښې تيرشوى دى.[4]

**ابوهريرة:** حضرت ابوهريره رضى الله عنه جليل القدر صحابى رضى الله عنه دې. دّدوى حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان كښې تفصيل سره تير شوى دى.[5]

## شرح حديث

**قوله: نهى النبى صلى الله عليه وسلم عن بيعتين: عن اللماس والنباذ:** راوى حضرت ابوهريره رضى الله عنه فرمائى نبى كريم صلى الله عليه وسلم دّ دوو قسم بيوع نه منع فرمائيلې يو بيع اللماس او دويم بيع النباذ.

**دّ بيع اللماس تعريف:** اللماس دّلام كسره سره دّ باب مفاعله مصدردې اوهم دّدې باب مصدر ملامسة هم راځى دّدې معنى ده لاس لګول دى.[6]

**دّ بيوع مختلف اقسام:** دّ بيوع دّمختلف قسمونونه يو بيع بيع اللماس يا بيع الملامسة هم ده. دّ بيع ملاسة تعريف اوتشريح پخپله په احاديثوكښې راغلې ده او فقهاء كرامو هم دا په تفصيل سره بيان كړې ده. چنانچه دّحضرت ابوهريره رضى الله عنه نه روايت دّې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دّ بيع ملامسه نه منع فرمائيلې ده.[7] اودّمسلم شريف په روايت كښې پخپله دّحديث راوى حضرت ابوهريره رضى الله عنه دّ طرف نه بيان كړې شوې دې چه ملامسه دې ته وائى چه بايع او مشترى نه هر يو دّ بل كپړې ته بغيرد سوچ اوفكر نه لاس اولګوى.[8]

---

[1] كشف البارى:۲۷۸/۲.
[2] كشف البارى:۲۷۸/۲.
[3] كشف البارى:۱۰/۲.
[4] كشف البارى:۱۱/۲.
[5] كشف البارى: ۶۵۹/۱.
[6] عمدة القارى: ۱۱٤/٤.
[7] صحيح البخارى كتاب البيوع باب بيع الملامسة رقم الحديث: ۲۱٤۵.
[8] صحيح مسلم كتاب البيوع باب إبطال بيع الملامسة والمنابذة رقم الحديث: ۱۵۱۲.

په يوبل حديث شريف کښې د حضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه نه روايت دې چه کوم يوسړې په شپه يا ورځ کښې د بل کپړې ته لاس اولګوى او بغيرد اړولو راړولو صرف په لاس لګولو سره بيع اوکړى. (۱)
دې نه علاوه فقهاء کرامو مختلف صورتونه ليکلى دى. مثلاً يوسړې اينغښتې کپړې ته لاس اولګوى يا په تياره کښې يوې کپړې ته لاس اولګوى بيا دغه کپړه په دې شرط سره واخلى يانې خرڅه کړى چه کله هغه دا اووينى نو هغه د پاره به خيار باقى پاتې نه شى. دويم صورت دادې چه د اينغښتې کپړې باره کښې بايع مشترى ته اووائى چه کله ته دې کپړې ته لاس اولګوې نو زه به دا په تاباندې خرڅوم يا به ته زما کپړې ته لاس لګوې نوبيع به کيږى. دريم صورت دادې چه يو څيز په دې شرط سره خرڅ کړې شى چه کله مشترى دې ته لاس اولګوى نو د مجلس خيار به ختم شى. (۲).

**د بيع النباذ تعريف:** نباذ هم په مثل د لماس دې. هم د دې مصدر دويم وزن منابذة هم استعماليږى. (۳)
د بيع منابذة تعريف هم احاديث مذکوره دى اوفقهاء کرامو هم د دې تفصيلى صورتونه ذکرکړى دې. چنانچه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى کريم ﷺ د بيع منابذه نه منع فرمائيلې ده. (۴)
حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائى چه منابذه داده چه بايع او مشترى کښې هر يو خپله کپړه د بل مخې ته اوغورزوى. او په دې دواړو که يو هم خپل ملکرى ته اونه وائى چه کپړه مه ګوره. (۵)

دغه شان د حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه نه روايت دې چه منابذه دې ته وائى چه بايع اومشترى کښې يوکس د بل طرف ته خپله کپړه اوغورزوى او بل هم د هغه طرف ته خپله کپړه اوغورزوى بغيرد کتلو اوبغيرد رضامندئى دا غورزول بيع اوګرځوى. (۶) د منابذه چه کوم تفصيل فقهاء کرام سره ملاويږى د دې نه يو خو هم هغه دې کوم چه پورته د ابوسعيد خدرى رضي الله عنه په روايت کښې تير شو. دويم دا چه بايع اومشترى د ايجاب اوقبول د الفاظونه احتراز کولوسره صرف دغه غورزول بيع اوګرځوى. چنانچه په دوى کښې يو اووائى چه زه ئى د لس (درهم) په بدله کښې کپړه ستا طرف ته درغورزوم (او هغه هم داسې کوى) او دويم ئى اوچتوى. دريم صورت دا دې چه بايع وائى د دومره رقم په بدله کښې ئى ستا طرف ته غورزوم اوچه کله ئى دراوغورزوم نو بيع به لازم شى اوخيار به ختم شى. (۷)

---

(۱) صحيح مسلم كتاب البيوع باب إبطال بيع الملامسة والمنابذة رقم الحديث: ۱۵۱۱.
(۲) ردالمحتار مع الدرالمختار كتاب البيوع مطلب استثناء الحمل فى العقود على ثلاث مراتب: ۶۵/۵ حاشية الدسوقى على الشرح الكبير كتاب البيوع فصل علة طعام الربا اقتباس وإدخار: ۵۶/۳دارالكتب عربية المغنى كتاب البيوع فساد بيع الملامسة: ۲۹۷/۴دارالفكر
(۳) عمدة القارى: ۱۱۴/۴.
(۴) صحيح بخارى كتاب البيوع باب بيع المنابذة رقم الحديث: ۲۱۴۶.
(۵) صحيح مسلم كتاب البيوع باب إبطال بيع الملامسة والمنابذة رقم الحديث ۱۵۱۳.
(۶) صحيح مسلم كتاب البيوع باب إبطال بيع الملامسة والمنابذة رقم الحديث ۱۵۱۲.
(۷) ردالمحتار كتاب البيوع مطلب استثناء الحمل فى العقود على ثلاث مراتب: ۶۵/۵ حاشية الدسوقى البيوع فصل علة طعام الربا: ۵۶/۳ المغنى البيوع فساد بيع المنابذة: ۲۹۸/۴.

**دَ دوارو بیعو حکم:** بیع ملامسة او بیع منابذة دواړه قسم بیوع شارع علیه السلام ممنوع ګرځولی دی. او علت دَدې دَممنوع کیدو قمار غرر جهالت اودَخیار مجلس باطل کول دی. (۱)

**قوله:. وأن يشتمل الصماء وأن يحتبي الرجل في ثوب واحد:** او نبی کریم دَ اشمال صماء نه هم منع فرمائیلې ده. اوددې خبرې نه نی هم منع فرمائیلې ده چه څوک سړې هم په یوه کپړه کښې احتباء اوکړی. دَ اولنې جملې او دویمې جملې عطف «عن بيعتين» باندې دې. دَدې دواړو تشریح په سابقه حدیث کښې تیره شوې ده. په مذکوره روایت کښې دَ احتباء ذکر مطلق ذکرکړې شوې دې لیکن دَ نوروا حادیثو دَ وجې نه دا احتباء به هم دې قید سره مقید وی کوم چه په ما قبل والا حدیث کښې موجود وه. یعنی چه دا احتباء داسې وی چه دَهغه په شرمګاه باندې څه کپړه نه وی. (۲)

**دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت:** په مذکوره حدیث کښې هم دَاشتمال صماء او احتباء نه منع کړې شوې ده اودا ممانعت دلالت کوی چه ستر عورة مانځه کښې وی اوکه بهر دَمانځه نه په هرحال کښې ضروری دې. (۳)

## الحديث الثالث

[۳۶۳]- حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ أَخِي ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَمِّهِ، قَالَ: أَخْبَرَنِي حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: بَعَثَنِي أَبُو بَكْرٍ فِي تِلْكَ الحَجَّةِ فِي مُؤَذِّنِينَ [ص:۸۳] يَوْمَ النَّحْرِ، نُؤَذِّنُ بِمِنًى: أَنْ لاَ يَحُجَّ بَعْدَ العَامِ مُشْرِكٌ وَلاَ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ " قَالَ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ: ثُمَّ أَرْدَفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا، فَأَمَرَهُ أَنْ يُؤَذِّنَ بِبَرَاءَةَ، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَأَذَّنَ مَعَنَا عَلِيٌّ فِي أَهْلِ مِنًى يَوْمَ النَّحْرِ: «لاَ يَحُجُّ بَعْدَ العَامِ مُشْرِكٌ وَلاَ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ» (۴)[۱۵۴۳، ۳۰۰۲، ۴۱۰۵، ۴۳۷۸ - ۴۳۸۰]

**ترجمه:** حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت کوی چه حضرت ابوبکر رضی الله عنه ماته په دې کال (په کوم کال چه هغوی امیر حج جوړولوسره لیګلې شوې) اعلان کونکو سره دَ قربانئی په ورځ اولیګلم چه مونږ دا

(۱) ردالمحتار کتاب البیوع مطلب استثناء الحمل فی العقود علی ثلاث مراتب: ۶۶/۵ نیل الأوطار کتاب البیوع باب النهی عن بیوع الغرر رقم الحدیث: ۲۱۶۶، ۱۶۰/۵.

(۲) عمدة القاری: ۱۱۴/۴ إرشادالساری: ۲۷/۲ فتح الباری: ۵۲۹/۱.

(۳) عمدة القاری: ۱۱۴/۴.

(۴) أخرجه البخاری فی کتاب الحج باب لایطوف بالبیت عریان رقم الحدیث: ۱۶۲۲ وفی کتاب الجزیة والموعة باب کیف ینبذ إلی أهل العهد رقم الحدیث: ۳۱۷۷ وفی المغازی باب حج أبی بکر بالناس رقم الحدیث: ۴۳۶۳ وفی تفسیر سورة البراءة باب قوله: ﴿ فَسِيحُوا فِي الْأَرْضِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ ﴾ رقم الحدیث: ۴۶۵۵ وباب قوله: ﴿ وَأَذَانٌ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ ﴾ رقم الحدیث: ۴۶۵۶ باب قوله: ﴿ إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدتُّم مِّنَ الْمُشْرِكِينَ ﴾ رقم الحدیث: ۴۶۵۷ ومسلم فی الحج باب لا یحج البیت مشرک رقم الحدیث: ۳۲۸۷ وأبوداؤد فی الحج باب یوم الحج الاکبر رقم الحدیث: ۱۹۴۶ والنسائی فی الحج باب قوله: ﴿ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ ﴾ رقم الحدیث: ۲۹۶۰ وفی الجامع الأصول الکتاب الأول فی تفسیر القرآن سورة البراءة رقم الحدیث: ۶۴۳ ۱۵۳/۲.

اعلان اوکړو چه راتلونکی کال کښې دې یو مشرک حج کولو ته نه راځی او یو کس دې په بربنډه باندې طواف نه کوی.

حمید بن عبدالرحمن (چه په دې حدیث کښې دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت کونکې دې) فرمائی چه بیا نبی کریم ﷺ حضرت ابوبکر رضی الله عنه (دَ حج امیر جوړیدو سره دَ تللو نه پس هغه پسې) شاته حضرت علی رضی الله عنه اولیګلو چه (منی ته رسیدوسره) دَ سورة براءة اعلان اوکړی (یعنې لوستلو سره دې واؤروی). حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی حضرت علی رضی الله عنه مونږ سره په منی کښې دَ قربانئی په ورځ دا اعلان اوکړو چه دَدې کال نه پس دې یومشرک هم حج له نه راځی اوځوك دې په بربنډه طواف نه کوی

## تراجم رجال

**اسحاق:** دَ مذکوره حدیث په سند کښې دَدې درومبی راوی نه مراد کوم راوی دې؟ په دې باره کښې شراح حدیث متردد دی. دَدې وجه داده چه دَبخاری شریف په نسخوکښې دانوم بغیرد نسبت هم دغه شان ملاویږی. دَ بعض شارحینو وینا ده چه دَدې نه مراد اسحاق بن ابراهیم دې. کوم چه دَ ابن راهویه په نوم سره معروف اومشهور دې اود بعض شارحینو په نیز دا اسحاق بن منصور کوسج دې

دا اختلاف دَدې وجې نه دې چه دا دواړه حضرات دَخپل شیخ یعقوب بن ابراهیم نه روایت کوی خو اول ذکرشوی ته حافظ ابن حجر رحمه الله علامه عینی رحمه الله او علامه قسطلانی رحمه الله ترجیح ورکړې ده. حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی چه دَبخاری شریف کومه نسخه ماسره ده په دې کښې دَ ابوذر دَ روایت نه اسحاق بن ابراهیم بن راهویه ذکر دې.[1] اودویم ذکرکړې شوی ته ترجیح ورکونکو کښې ابن ملقن رحمه الله صاحب التوضیح دې.[2]

بهرصورت دَاسحاق بن ابراهیم بن راهویه رحمه الله ذکر كتاب العلم باب فضل من عَلِمَ وعَلَّمَ کښې تیرشوې دې[3] اوکه چرې دا اسحاق بن منصور کوسج رحمه الله وی نودَ دوی تفصیلی حالات کتاب الإیمان باب حسن اسلام المرء دَدویم حدیث لاندې تیر شوې دې.[4]

**یعقوب بن ابراهیم:** دا ابویوسف یعقوب بن ابراهیم بن سعد قرشی زهری رحمه الله دې. دَدوی حالات كتاب العلم باب ماذكر في ذهاب موسى في البحر إلى الخضر کښې تیرشوی دی.[5]

**ابن اخي ابن شهاب:** دا دَ امام زهری رحمه الله وراره محمدبن عبدالله بن مسلم زهری مدنی رحمه الله دې. دَدوی حالات كتاب الإيمان باب إذا لم يكن الاسلام على الحقيقة وكان على الاستسلام کښې تیرشوی دی.[6]

**عن عمه:** دا ابوبکر محمدبن مسلم بن عبیدالله بن شهاب الزهری المدنی رحمه الله دې. دَدوی حالات كتاب بدء الوحي باب كيف كان بدء الوحي دریم حدیث کښې تیرشوی دی.[7]

---

[1]) فتح الباری: ٦٣٠/١عمدة القاری: ١١٤/٤ارشادالساری: ٢٧/٢.
[2]) التوضیح لابن ملقن: ٣١١/٥تحفة الباری: ٢٩١/١الکوثر الجاری: ٤٩/٢.
[3]) کشف الباری: ٤٢٨/٣.
[4]) کشف الباری: ٤٢٠/٢.
[5]) کشف الباری: ٣٣١/٣.
[6]) کشف الباری: ١٨٣/٢.
[7]) کشف الباری: ٣٢٦/١.

**حميدبن عبدالرحمن بن عوف:** دا دَ مشهور صحابى حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه خوئىٔ دې دَدوى كنيت ابوابراهيم دې. دَدوى حالات كتاب الايمان باب تطوع قيام رمضان من الايمان لاندې تير شوى دى.[1]

**ابوهريره رضي الله عنه:** د ابوهريره رضي الله عنه تفصيلى حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان كښې تيرشوى دى.[2]

## شرح حديث

**قوله:: في تلك الحجة:** راوى حديث حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائى چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه زه په دې كال اعلان كونكوسره..... الخ. دَدې كال نه مراد هغه كال دې په كوم كال كښې چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه دَ حج امير جوړولو سره ليګلې وو. اودا دَ هجرت نهم كال وو.[3]

**قوله:: في مؤذنين:** دې نه مراد «شرط المؤذنين، أي: في رهط يؤذنون في الناس» دې. يعنى مؤذنينوسره نى اوليګلم اودمؤذن نه مراد اعلان كونكى دى نه چه اذان كونكى.[4]

**قوله:: ألا يحج بعد العام:** ألا مركب دې دَأن او لا نه، دَنون په لام كښې ادغام كولوسره ألا كړې شو. اكثرشراح حضراتو په روايت كښې هم دا لفظ ذكركړې دې.خودَ كشميهنى په روايت كښې «ألالايحج» الفاظ دى. يعنى دَ لانافيه نه وړاندې ألا حرف تنبيه دې. دَدې مطلب به شى چه خبردار دَدې كال نه پس يو مشرك دَ حج دَپاره رانه شى.[5]

**قوله:: قال حميد بن عبدالرحمن:** دَمذكوره روايت دَدې الفاظونه معلوميږى چه حميد بن عبدالرحمن رحمه الله په دې موقع باندې موجود وو كوم وخت چه رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت على كرم الله وجهه اوليګلو او ده دغه منظر ليدلو سره دَدې چه دې تابعى دې صحابى نه دې. په دې وجه داجمله به مرسل وى دَمراسيل تابعين نه.

علامه كرماني رحمه الله ليكلى دى چه په دې خائى كښې دا احتمال هم دې چه قول حميد اوقول ابى هريرة دواړه دَتعليق دَقبيل نه وى اودا هم احتمال دې چه دواړه اسناداً ذكركړې شوى وى. ليكن داخبره خو ښكاره ده چه مسئله ارداف په دې خائى مذكوره اسناد نه دى. او صاحب توضيح فرمائى ممكن ده چه حميد داخبره دَ ابوهريره رضي الله عنه دَ تلقين نه پس ذكركړې وى اوداهم احتمال دې چه حضرت زهرى رحمه الله دا قول موصولاً ذكركړې وى. په دې باندې علامه عينى رحمه الله فرمائى چه راجح خبره هم هغه ده كومه چه ما ذكركړه يعنى دا قول د مراسيل تابعين نه دې. بل علامه ابن حجر رحمه الله هم دا په تغليق التعليق كښې دَ تعليق په توګه ذكرنه كړه.[6]

---

[1] كشف البارى: ۳۱۶/۲.

[2] كشف البارى: ۶۵۹/۱.

[3] شرح الكرمانى: ۲۸/٤عمدة القارى: ۱۱٤/٤ارشادالسارى: ۲۸/۲الكوثر الجارى:۹/۲ ٤الكنزالمتوارى: ۳۷/٤.

[4] عمدة القارى: ۱۱۵/٤.

[5] شرح الكرمانى: ۲۸/٤ارشادالسارى: ۲۸/۲عمدة القارى: ۱۱۵/٤.

[6] شرح الكرمانى: ۲۸/٤التوضيح لابن ملقن: ۳۱۱/۵الكنزالمتوارى: ۹/۲ ٤عمدة القارى: ۱۱۵/٤.

**قوله:: ثم أردف رسول الله صلى الله عليه وسلم عليًا:** بيا رسول الله ﷺ حضرت على رضي الله عنه اوليگلو. اول ئې حضرت ابوبكر رضي الله عنه د حج امير جوړولوسره اوليګلو بيا دَهغوی د تلو نه پس حضرت على رضي الله عنه هم مئې ته اوليګلو. خلاصه دا چه دې ځائې کښې أردف په معنى دَ ارسل دې.[1]

**قوله:: أن يؤذن ببرآءة:** دَ براءة استعمال رفع سره دې يعنې ببرآءة داسې اعراب دَحكائې دَ وجې نه دې چه آيت قرآني کښې ﴿ بَرَآءَةٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ اِلَى الَّذِيْنَ عٰهَدْتُّمْ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴾ دې.[2]

**حضرت على رضي الله عنه دَدې اعلان دپاره ليګلو کښې حکمت:** په دغه کال امير حج حضرت ابوبكر رضي الله عنه وو هم هغه دَدې اعلان براءت مكلف جوړنه کړې شوبلکه دَدې لعلان دَ پاره ئې جدا مستقل کس اوليګلو. دَدې دَحکمت باره کښې علماء کرام ليکى چه دَدې براءت نه مراد نقض عهد دې کوم چه دَ مکې دَ قريشو او مسلمانانو په مينځ کښې وو.او په اهل عرب کښې دستور وو چه نقض به صرف په هغه صورت کښې قابل قبول وی کله چه صاحب عقد په خپله اعلان دَ براءت اوکړی یا دَهغه دَ خاندان او قبيلې نه څوك بل سړې اعلان اوکړی. په دې وجه دَدې اعلان دپاره حضرت على رضي الله عنه اوليګلې شو کوم چه هم دَ حضورپاك دَ خاندان نه يوكس وو.[3]

**اعلان دَ براءة چاته اوكړې شو؟** حضرت على رضي الله عنه باندې چه کوم اعلان اوکړې شو هغه څه وو؟ اوڊ چاته براءة مقصود وو؟ نودَدې جواب دادې چه هغه وخت څلور قسم خلق وو: اول قسم هغه خلق وو چاسره چه څه معاهده نه وه. دويم قسم هغه خلق وو چاسره چه معاهده خو وه ليکن دَمعاهدې موده مقررنه وه. دريم هغه خلق وو چاسره چه معاهده وه ليکن هغوی دَ هغه معاهدې خلاف ورزی کولوسره ماته کړې وه. څلورم قسم هغه خلق وو چاسره چه معاهده وه اوهغه معاهده په ځائې وه ماته کړې نه وه.
چنانچه دَ رومبو دواړو قسم خلقودَ پاره خودا اعلان اوکړې شو چه څلور مياشتې هغوی ته مهلت دې دې نه پس هغوی ته دلته دَ اوسيدو اجازت نشته. په دې موده کښې که هغوی غواړی نو اسلام دې قبول کړی په دې صورت کښې هغوی زمونږ رونړه دی اوکه چرې هغوی اسلام نه قبلوی نوبيا به هغوی دَدې ځائې نه اوځي. دريمه ډله دَهغه خلقو وه چا چه معاهده ماته کړې وه لکه دَ قريشو قبيله، هغوی سره په حديبيه کښې معاهده شوی وه دَ لسو کالو دَپاره ليکن هغوی هغه معاهده په ۸هجری کښې ماته کړې وه. بيا حضورپاك دَهغوی خلاف فوج اوليګلو نو الله ﷻ دَ فتح مكه په شكل کښې به هغوی باندې غلبه ورکړه. دَهغوی دَپاره هم دغه حکم وو چه هغوی دې په څلور مياشتوکښې دَتنه خپل بندوبست اوکړی که ايمان راوړل غواړی نو صحيح ده او که ايمان نه راوړل غواړی نوبيا دې دَ دې ځائې نه ځي. څلورم قسم څه قبيلې وې دَ چا دَ معاهدې چه نهه مياشتې باقى وې اودوی په خپل عهدباندې قائم هم وو. نودَهغوی دَپاره اعلان دا و وو چه تاسو خپله موده پوره کړئ. دَدې نه پس که ايمان راوړئي نو ټيك ګنې دا ځائې به پريږدئي.

[1] عمدة القارى: ١١٥/٤ إرشادالسارى: ٢٨/٢.
[2] شرح الكرمانى: ٢٨/٤ إرشادالسارى: ٢٨/٢.
[3] التوضيح لابن ملقن: ٣١٣/٥ عمدة القارى: ١١٥/٤ إرشادالسارى: ٢٨/٢ الكنز المتوارى: ٥٠/٢.

دا هغه څلور قسمه خلق وو دچا باره کښې چه اعلان د براءة او کړې شو اودې سره هغه اعلان هم اوکړې شو کوم چه راوی په مذکوره حديث کښې ذکر کړې دې. يعنی مشرکان دې راتلونکی کال کښې حج له نه راځی او يو کس ته په بربنډه د طواف کولو اجازت نشته دې.(۱)

**باقی قصه**: حضرت علی رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د طرف نه منی طرف ته اوليګلې شو اود سورلنې دپاره هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم اوښه عضباء استعمال کړه چه د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د طرف نه دهغوی د ليګلو علامت وو. چنانچه حضرت علی رضی الله عنه سحر ذی الحليفه يا مقام عرج کښې حضرت صديق اکبر رضی الله عنه ته اورسيدلو. حضرت ابوبکر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اوښې عضباء آواز واؤريدو متوجه شو نو په هغې باندې حضرت علی رضی الله عنه ناست وو. تپوس ئې اوکړو چه آيا تاسو امير حج جوړولوسره راوليګلې شوئې؟ هغوی اوفرمائيل نه زه خو ئې مامور کولو سره د براءة اعلان کولو دپاره ليګلې يم.(۲)

**د روايت ترجمة الباب سره مناسبت**: دمذکوره روايت ترجمة الباب سره مناسبت د روايت آخری جمله «ولا يطوف بالبيت عريان» سره دې، چه په بربنډ بدن د طواف کولو ممانعت دستر عورت په وجوب باندې دلالت کوی.(۳)

## ۱۰- باب: الصَّلاَةِ بِغَيْرِ رِدَاءٍ

دا باب د څادر نه بغير د مونځ کولو دحکم باره کښې دې.

## حديث الأول

[۳۶۳]- حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي الْمَوَالِي، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ: وَهُوَ «يُصَلِّي فِي ثَوْبٍ مُلْتَحِفًا بِهِ، وَرِدَاؤُهُ مَوْضُوعٌ»، فَلَمَّا انْصَرَفَ قُلْنَا: يَا أَبَا عَبْدِ اللَّهِ تُصَلِّي وَرِدَاؤُكَ مَوْضُوعٌ، قَالَ: نَعَمْ، أَحْبَبْتُ أَنْ يَرَانِي الْجُهَّالُ مِثْلُكُمْ «رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي هَكَذَا» (۴)-[ر۳۵۰]

**ترجمه**: دحضرت محمدبن المنکدر رحمه الله نه روايت دې چه زه حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه له لاړم په داسې حال کښې چه هغه يوه کپړه اچولوسره مونځ کولو چه هغه په خپل بدن باندې راتاو کړې وه اوهغوی څادر (يوطرف ته) کيخودې وو. بياچه کله (هغوی مونځ ختم کړو زمونږ طرف ته) راؤګرځيدو نومونږ عرض اوکړو اې ابوعبدالله! تاسو مونځ کوئی په داسې حال کښې چه ستاسو څادر (يوطرف ته) پروت دې؟ نوهغوی رضی الله عنه اوفرمائيل او زه داسې خکه کوم چه ستاسو په شان جټ خلق ما اووينی (چه په يوڅادر کښې هم مونځ کول جائز دی). هغوی اوفرمائيل چه ما نبی کريم صلی الله علیه وسلم هم دغه شان مونځ کولوسره ليدلې دې.

---

(۱) تفسير ابن کثير سورة التوبة آيت: ۵-۱، ۱۰۰/۳جامع البيان عن تاويل آی القرآن تفسير طبری سورة التوبة: ۳۱۲/۱۱-۳۰۱.

(۲) التوضح لابن ملقن: ۳۱۳/۵الکوثر الجاری: ۲۹/۲.

(۳) عمدة القاری: ۱۱۴/۴الکوثر الجاری: ۲۹/۲.

(۴) مرتخريجه تحت باب عقد الإزار علی القفا فی الصلاة رقم الحديث: ۳۵۳ ص ۲۴۹.

## تراجم رجال

**عبدالعزيز بن عبدالله:** دا عبدالعزيز بن عبدالله بن يحيى بن عمرو بن اويس الاويسى رحمه الله دي. دَدوى تفصيلى حالات كتاب العلم باب الحرص على الحديث كښې تيرشوى دى.[1]

**ابن ابي الموالي:** دا عبدالرحمن بن ابى الموال المدنى رحمه الله دي. دَدوى تفصيلى حالات كتاب الصلاة باب عقد الازار على القفا في الصلاة كښې تيرشوى دى.[2]

**محمدبن المنكدر:** دامحمدبن المنكدر بن عبدالله المدنى رحمه الله دي. دَدوى پيژندګلو كتاب الوضوء باب صب النبى صلى الله عليه وسلم وضوءه كښې تيره شوې ده.[3]

**جابر بن عبدالله:** دا جابربن عبدالله بن الحرام الانصارى رضي الله عنه دي. دَدوى تفصيلى حالات كشف البارى كتاب الوضوء باب من لم ير الوضوء إلا من المخرجين من القبل والدبر كښې تيرشوى دى.[4]

## تشريح حديث

دَدې حديث شريف مكمل تشريح باب عقد الازار على القفا في الصلاة رقم الحديث: ۳۲۵ لاندې تيره شوې ده.

**قوله: أحببت أن يراني الجهال.** په مذكوره روايت كښې دَحضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه دا الفاظ ((أحببت أن يراني الجهال مثلكم)) راغلى دى خو په وړاندې حديث نمبر ۳۵۲ كښې دا الفاظ ((ليراني أحمق مثلك)) وو. دَدې جواب دادې چه داسې روايت بالمعنى دَ وجې نه شوى دى چه يوځائى كښې اختصار نو بل ځائى كښې تفصيل دې. يابيا داسې يوځل نه بلكه ډير ځل شوى دى يوځل نى دغه الفاظ ونيلى اوځو ځل نى دا الفاظ اوونيل.[5]

**دَ يواشكال جواب:** په دې مقام باندې په ذهن كښې يو اشكال راځى په يوه كپړه كښې خو مونځ كول سره دَدې چه جائز دې ليكن خلاف اولى دې خاص كر چه كله ډيرې كپړې موجود وى. نودَدې جواب دادې چه صرف په يوه كپړه كښې مونځ اداكول كله دَتعليم دَپاره وى نو په دې كښې هيڅ خرابې نشته دې.[6]

## ۱۱- بَاب: مَا يُذْكَرُ فِي الْفَخِذِ

وَيُرْوَى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَرْهَدٍ، وَمُحَمَّدِ بْنِ جَحْشٍ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ: (الْفَخِذُ عَوْرَةٌ). وَقَالَ أَنَسٌ: حَسَرَ النَّبِيُّ ﷺ عَنْ فَخِذِهِ، وَحَدِيثُ أَنَسٍ أَسْنَدُ، وَحَدِيثُ جَرْهَدٍ أَحْوَطُ حَتَّى يُخْرَجَ مِنِ اخْتِلَافِهِمْ. وَقَالَ

---

[1] كشف البارى: ٤٨/٤.
[2] كشف البارى كتاب الصلاة باب عقد الإزار على القفا فى الصلاة رقم الحديث: ۳۵۳ ص: ۲۵۹.
[3] كشف البارى كتاب الوضوء باب صب النبى صلى الله عليه وسلم وضوءه.
[4] كشف البارى كتاب الوضوء باب من لم ير الوضوء إلا من المخرجين من القبل والدبر.
[5] الكنز المتوارى: ۳۸/٤.
[6] الكنز المتوارى: ۳۸/٤ عمدة القارى: ۱۱۷/٤.

أَبُو مُوسَى: غَطَّى النَّبِيُّ ﷺ رُكْبَتَيْهِ حِينَ دَخَلَ عُثْمَانُ [ر: ٣٤٩٢] وَقَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ: أَنْزَلَ اللهُ عَلَى رَسُولِهِ ﷺ وَفَخِذُهُ عَلَى فَخِذِي، فَثَقُلَتْ عَلَيَّ، حَتَّى خِفْتُ أَنْ تُرَضَّ فَخِذِي. [ر: ٤٣١٦]

دا باب دَهغه رواياتو په بيان کښې دې چه دَ پتون (ستر کيدو يا نه کيدو) باره کښې ذکر دي. فخذ دَ فاء فتحه اوخاء کسره او سکون سره استعماليږي او په يولغت دَ فاء کسره او خاء سکون سره هم دي يعنى فِخذ، فَخذ او فَخِذ دَدې معنى پتون ده.[1]

**دَ ترجمة الباب مقصد:** حضرت شيخ الحديث رحمه الله ليکلى دى چونکه فخذ کښې دننه اختلاف وو په دې وجه امام بخارى رحمه الله دا باب منعقد فرمائيلې دې. او چونکه امام بخارى رحمه الله دَدې ستر کيدو متعلق رائې نه لرى په دې وجه نى دَ ما يذكر په صيغه مجهول سره ذکرکړو. ليکن دَ جرهد رضي الله عنه په روايت کښې غط فخذ حکم راغلې دې په دې وجه نى دَدې طرف ته هم توجو راوګرځوله چه اصل عورة خو سوآتين دي ليکن ستر فخذ هم احتياطًا کول پکار دى لکه چه څنګه دَ حديث جرهد تقاضا ده.[2]

**قوله: ويروى عن ابن عباس وجرهد ومحمد بن جحش عن النبى صلى الله عليه وسلم: الفخذ عورة:** امام بخارى رحمه الله ترجمة الباب قائم کوولو سره وړاندې دَدې عبارت نه درې تعليقات ذکرکړې دى کوم چه دَ پتون په ستر کيدو باندې دلالت کوى. هم دَدې نه پس نى يو تعليق نقل کړې دې چه دَ پتون په ستر نه کيدو باندې دلالت کوى. دې نه پس امام صاحب رحمه الله خپله فيصله نقل کوى. لاندې ټول تعليقات موصولًا او مسندًا ذکر کولې شى.

**رومبې تعليق:** امام بخارى رحمه الله ((ويروى عن ابن عباس رضى الله عنهما)) نه وړاندې تعليق ذکر کړې دې دا حديث امام ترمذى رحمه الله موصولًا ذکرکړې دې او په دې باندې نى دَحسن غريب حکم لګولې دې.

((حدثنا واصل بن عبدالاعلى الكوفى: حدثنا يحيى بن آدم: حدثنا إسرائيل عن أبى يحيى، عن مجاهد، عن ابن عباس رضى الله عنه: أن النبى صلى الله عليه وسلم قال: الْفَخِذُ عَوْرَةٌ، قال أبوعيسى: وهذا حديث حسن غريب))[3] په دې باندې حافظ ابن حجر ليکلى دى چه دَدې حديث راويانو کښې يو راوى ابويحيى القتات دې کوم چه ضعيف دې. دَده دَ نوم باره کښې هم اختلاف دې شپږ يا اووه اقوال دى. دَدې نومونو نه مشهور دينار دې.[4]

**دويم تعليق:** دَجرهد حديث امام ترمذى رحمه الله او امام ابوداؤد رحمه الله اوامام مالک رحمه الله ذکر کړې دې.[5]

(حدثنا ابن عمر: حدثنا سفيان عن أبى النضر موسى عمر ابن عبيدالله، عن زرعة بن مسلم بن جرهد الأسلمى، عن جده جرهد قال: مر النبى صلى الله عليه وسلم بجرهد فى المسجد وقد انكشف فخذه فقال: إن الفخذ عورة، قال أبوعيسى: هذا حديث حسن.

---

[1]) معجم الصحاح ص: ٧٩٩ لسان العرب: ١٩٨/١٠.

[2]) تقرير البخارى: ١٣٧/٢.

[3]) جامع الترمذى كتاب الأدب باب ماجآء أن الفخذ عورة رقم الحديث: ٢٧٩٧.

[4]) فتح البارى: ٦٣١/٢ عمدة القارى: ١١٨/٤.

[5]) جامع الترمذى كتاب الأدب باب ماجآء أن الفخذ عورة رقم الحديث: ٢٧٩٥ مسند أحمد بن حنبل رقم الحديث: ١٥٩٢٦، ٢٧٤/٢٥ المستدرک على الصحيحين رقم الحديث: ٧٣٦٠، ٣٦٧/٦ سنن أبى داؤد كتاب الحمام باب الدخول فى الحمام رقم الحديث ٤٠١٤.

**دريم تعليق:** امام بخارى رحمه الله دَدريم تعليق په توګه دَ محمد بن جحش رضي الله عنه نوم نقل كړې دې دَدوى حديث امام احمدبن حنبل په خپل مسند كښې ذكر كړې دې (حدثنا هُشيم حدثنا حفص بن ميسرة عن العلاء، عن ابى كثير مولى محمدبن جحش عن محمدبن جحش ختَن النبى ﷺ: أن النبى صلى الله عليه وسلم مر على معمر بفناء المسجد محتبيا كاشفاً عن طَرَفِ فخذه، فقال له النبى صلى الله عليه وسلم: خمر فخذك يامعمر، فأن الفخذ عورة)) [۱]

**دَتعليق اول راوى: عبدالله ابن عباس k** دا مشهور صحابى رسول حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې. دَدوى تفصيلى حالات كشف البارى كتاب بدء الوحى څلورم حديث او كتاب الإيمان باب كفران العشير، وكفر بعد كفر كښې تيرشوى دى. [۲]

**دَدويم تعليق راوى: جرهد: نوم اونسب:** دا صحابى رسول ﷺ دې. دَ ده نوم جرهد بن رزاح بن عدي رضي الله عنه دې. [۳] دَدوى دَ كنيت باره كښې يو قول دَ ابوعبدالرحمن هم دې. دې دَاهل صفه نه وو [۴] حافظ ابن عبدالبر رحمه الله دَ دوى دَ نوم باره كښې درې اقوال ذكر كړى دى. يو قول دادې چه دَدوى نوم جرهد بن خويلد وو. امام زهرى رحمه الله هم دغه ذكر كړې دې. دويم قول دادې چه دا جرهد بن رزاح بن عدى بن سهم وو. او دريم قول دادې چه دا جرهد بن خويلد بن بحرة بن عبدياليل بن زرعه بن رزاح بن اسلم بن افضى وو. ليكن ابن ابى حاتم رحمه الله فرمائيلى دى چه جرهد بن خويلد بل وو او جرهد بن رزاح الاسلمى بل وو. [۵]

**شيوخ اوتلامذه:** دې دَنبى كريم ﷺ نه روايت كوى اودَ ده صرف هم يوحديث دې. ((الفخذ عورة)) هم دا روايت امام بخارى رحمه الله تعليقًا ذكر كړې دې. [۶]

دَده نه روايت كونكو كښې دَ ده نمسې زرعة بن عبدالرحمن بن جرهد دې دَده دَ نوم باره كښې يو قول زرعة بن سلم بن جرهد هم دې. دَدې نه علاوه دَ دوى خامن عبدالله بن جرهد او عبدالرحمن بن حصد هم دَده نه روايت كوى. [۷] دَحضرت جرهد الاسلمى باره كښې نقل دى چه يوځل دې دَ نبى كريم ﷺ په مجلس كښې حاضر شو دَحضورپاك مخې ته خوراك پروت وو.دې په خوراك كښې شريك شو، دې وړوكې وو په خپل ګس لاس باندې خوراك شروع كړو دَهغه په ښى لاس كښې څه زخم وغيره وو حضورپاك هغه ته اوفرمائيل چه په ښى لاس باندې خوره هغه جواب وركړو يارسول الله دا په تكليف كښې دې. حضورپاك دَهغه په لاس باندې پوكې اووهلو دكوم په بركت چه ترمرګه پورې دَهغه په لاس كښې بيا تكليف رانغلو. [۸] هغه دَ افريقې طرف ته تلونكې غزوه كښې شركت اوكړو بيا په ۶۱هجرى كښې دَامير معاويه رضي الله عنه دَخلافت دَ زمانې په آخره او دَ يزيد بن معاويه دَ حكومت په شروع كښې

---

[۱] مسندأحمد باقى مسندالأنصار مسندمحمدبن عبدالله بن جحش رقم: ۲۲٤۹٤والمستدرک على الصحيحين رقم الحديث: ۷۳۶۱، ٤/۱۸۰.

[۲] كشف البارى: ۱/٤۳۵، ۲/۲۵.

[۳] تهذيب الكمال: ٤/۵۲۳ إكمال تهذيب الكمال:۳/۱۷۸.

[۴] إكمال تهذيب الكمال:۳/۱۷۸الطبقات لابن سعد: ۳/۲۹۸.

[۵] الإصابة: ۱/۲۳۱الاستيعاب على هامش الإصابة: ۱/۲۵۵-۲۵٤.

[۶] تهذيب التهذيب: ۱/۶۹

[۷] الثقات لابن حبان: ۳/۶۲

[۸] الإصابة: ۱/۲۳۱إكمال تهذيب الكمال: ۳/۱۷۸تهذيب الكمال: ۲/۶۹

دهغوی انتقال اوشو.(۱) امام بخاری دهغوی روایت تعلیقاً ذکر کړي دي اودهغوی حدیث امام ابوداؤد رحمه الله امام ترمذی رحمه الله او امام نسائي رحمه الله د ده روایت نقل کړي دي.(۲)

دَدریم تعلیق راوی محمدبن عبدالله بن جحش: دا محمدبن عبدالله بن جحش بن رماب بن یعمر بن صبرة ابن کبیر بن غنم الاسدی رضی الله عنه دي.(۳) دده په صحابي کیدو کښې اختلاف نقل کړې شوې دي لیکن د راجح قول مطابق دي صحابي دي.(۴) ددوی کنیت ابوعبدالله دي اود مور نوم ئې فاطمه بن ابی حبیش بن المطلب بن اسد بن عبدالعزی دي.(۵)

دي د نبی کریم صلی الله علیه وسلم، خپلې ترور حمنه، زینب او حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت کوی. اود دوی نه روایت کونکوکښې ددوی خوئې ابراهیم دده آزاد کړې شوې غلام ابوکثیر اومعلی بن عرفان رحمهم الله دی(۶) هغوی د خپل پلار خپل تره ابواحمد سره دحبشه طرف ته هجرت کړې وو(۷) د هغوی پلار په هغه کبار صحابه کرامو کښې وو چه د احد په ورځ شهیدان شوی(۸) د امام واقدی د قول مطابق دده پیدائش دمدینې د هجرت نه پنځه کاله وړاندې شوې.(۹)

څلورم تعلیق: وقال أنس: حسر النبي صلى الله عليه وسلم عن فخذه: حضرت انس رضی الله عنه فرمائی نبی کریم صلی الله علیه وسلم دخپل پتون نه کپړه اوچته کړه. امام بخاری رحمه الله دحضرت انس رضی الله عنه جمله تعلیقاً ذکرکړې ده. دا تعلیق امام صاحب پخپله په دې باب کښې راتلونکې رومبی حدیث کښې موصولاً ذکرکړې ده. تفصیلی بحث به هم هغه ځائې کښې راځي. دحسر معنی د کشف ده.(۱۰)

قوله: وحديث أنس أسند، وحديث جرهد أحوط، حتى يخرج من اختلافهم: امام بخاری رحمه الله اوفرمائيل چه دحضرت انس رضی الله عنه حدیث مبارک د سند په اعتبارسره زیات مضبوط دي اودجرهد رضی الله عنه والاحدیث د عمل په اعتبارسره زیات د احتیاط والا دي. یعنی دحضرت جرهد رضی الله عنه والاحدیث باندې عمل کولوسره بنده داختلاف نه وتلې شی. ځکه چه رومبو دوو احادیثو نه دپتون ستر کیدل معلومیږی اوددریم حدیث نه ستر نه کیدل معلومیږی. لهذا د پتون د ستر کیدو اعتبار کول زیات محتاط قول دي.(۱۱)

---

۱) الطبقات لابن سعد: ۲۹۸/۳الثقات لابن حبان: ۶٤/۳.
۲) تهذيب الكمال: ۶۹/۲
۳) الثقات لابن حبان: ۶۲/۳ الجرح والتعديل: ۳۹٤/۷.
٤) تهذيب الكمال: ٤۵۸/۲۵ الجرح والتعديل: ۳۹٤/۷.
۵) الثقات لابن حبان: ۳/۳۶۳.
۶) تهذيب الكمال: ٤۵۹/۲۵ الجرح والتعديل: ۳۹٤/۷.
۷) خلاصه تذهيب تهذيب الكمال ص: ۳٤٤.
۸) تقريب التهذيب ص: ٤۸٤تهذيب الكمال:٤۵۸/۲۵.
۹) تهذيب التهذيب: ۲۵۱/۹.
۱۰) عمدة القاري: ۱۱۹/٤.
۱۱) عمدة القاري: ۱۱۹/٤.

**قوله: حتی یخرج:** مذکوره الفاظ واحد مذکر غائب مجهول صیغی سره هم نقل دی او دَ جمع متکلم معروف صیغې سره هم نقل دی. یعنی نخرج په معنوی توګه باندې دواړه شان لوستل برابر دی. (۱)

**پنځم تعلیق: وقال أبوموسی: غطی النبی صلی الله علیه وسلم رکبتیه حین دخل عثمان:** حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه فرمانی چه کوم وخت حضرت عثمان رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راورسیدو نونبی کریم صلی الله علیه وسلم خپل زنګونونه په کپړه باندې پټ کړل.

**دَتعلیق ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب «ما یذکر من الفخذ» او په مذکوره تعلیق کښې دَ زنګون ذکر دې نه چه دَ پتون نودَمذکوره تعلیق ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره کولودَپاره علامه عینی رحمه الله لیکلی چه دَدې روایت مطابق نبی کریم صلی الله علیه وسلم خپل زنګون پټ کړو اوداسې نی دَدې په سترکښې دَ داخلیدو دَ وجې نه اوکړه. چنانچه کله زنګون په ستر کښې داخل شو نو پتون خو فرج سره زیات نیزدې دې هغه په درجه اولی په سترکښې داخل شو. (۲)

**دَ تعلیق راوی حضرت ابوموسی:** دامشهور صحابی حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه دې. دَدوی تفصیلی حالات کتاب الإیمان باب أي الإسلام أفضل لاندې تیرشوی دی. (۳)

**دَتعلیق تخریج:** مذکوره تعلیق په حقیقت کښې دَ یوبل حدیث مبارك یوه حصه ده. امام بخاری رحمه الله په مناقب حضرت عثمان رضی الله عنه کښې ذکرکړې دې. هغه مکمل موصولاً دلته ذکرکولې شی: «قال حماد: وحدثنا عاصم الأحول وعلي بن الحکم: سمعا أبا عثمان یحدث عن أبي موسی بنحوه، وزاد فیه عاصم: أن النبی صلی الله علیه وسلم کان قاعداً في مکان فیه ماء، قد کشف عن رکبتیه أو رکبته، فلما دخل عثمان غطاها» (۴)

**شپږم تعلیق:** «وقال زید بن ثابت: أنزل الله علی رسوله صلی الله علیه وسلم وفخذه علی فخذي، فثقلت علي حتی خفت أن ترض فخذي» یعنی حضرت زیدبن ثابت رضی الله عنه اوفرمائیل چه (یوځل) دَ الله جل جلاله دَ طرف نه په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې وحی نازل شوه په داسې حال کښې چه (هغه وخت) دَ نبی کریم پتون مبارك زما په پتون باندې پروت وو. (هغه وخت دَهغه وحی دَ وجې نه) دَحضورپاك پتون په ما باندې دومره دروند شو چه داسې محسوس کیدله چه زما پتون (دَحضورپاك دَ پتون دَ وزن دَ وجې نه) مات شی (یا چوره چوره شی).

**دَتعلیق غرض:** دَدې تعلیق نه دَامام بخاری رحمه الله څه غرض دې؟ په دې باره کښې شراح حیران دی چه دې روایت سره دَامام بخاری رحمه الله مدعی خو نه شی ثابتیدې. ځکه چه دَامام صاحب رحمه الله مقصود خودَ پتون ستر نه کیدل ثابتول دی اوهغه په دې روایت سره ممکن نه دی ځکه چه دَ پتون دَ پتون دَ پاسه کیدلو سره دا لازم نه راځی چه په پتون باندې کپړه هم نه وی. لهذا په دې تعلیق سره خو نه په دې باندې دلالت کیږی چه پتون په سترکښې داخل دې اونه په دې خبره باندې دلالت کیږی چه پتون په سترکښې داخل نه دې. اوکه په دې روایت کښې دَدې خبرې تصریح وه چه دَ حضورپاك په پتون مبارك

---

۱) فتح الباری: ۶۳۱/۲عمدة القاری: ۱۱۹/٤.

۲) عمدة القاری: ۱۲۲/٤.

۳) کشف الباری: ۶۹۰/۱

٤) صحیح البخاری کتاب مناقب عثمان رضی الله عنه رقم الحدیث:۳۶۹۵.

باندې کېږه نه وه نو په دې خبره باندې دلالت کيدې شو چه پتون ستر نه دې په دې وجه حضور ن
خپل پتون مبارک ښکاره ساتلې وو.(۱)

**دتعليق تخريج:** داتعليق هم د يو روايت حصه ده کوم چه امام بخاري په کتاب التفسير سورة النساء في نزول قوله تعالى ﴿لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ کښې ذکر کړې دې. لاندې مکمل حديث موصولاً ذکر کولې شي:«حدثنا إسماعيل بن عبدالله قال: حدثني إبراهيم بن سعد عن صالح، عن ابن شهاب قال: حدثني سهل بن سعد الساعدي أنه رأى مروان بن الحكم في المسجد، فأقبلت حتى جلست إلى جنبه، فأخبرنا أن زيد بن ثابت أخبره أن النبي صلى الله عليه وسلم أملى عليه لا يستوي القاعدون من المؤمنين والمجاهدون في سبيل الله فجاءه ابن أم مكتوم وهو يملها علي، قال: يارسول الله! والله! لو أستطيع الجهاد معك لجاهدت، وكان أعمى، فأنزل الله على رسول الله صلى الله عليه وسلم وفخذه على فخذي، فثقلت علي، حتى خفت أن ترض فخذي، ثم سري عنه، فأنزل الله: غير أولي الضرر»
بل دا روايت امام بخاري رحمه الله کتاب الجهاد کښې هم نقل کړې دې.(۳)

**دتعليق راوی زيد بن ثابت:** دامشهور صحابي رسول حضرت زيد بن ثابت بن الضحاك بن زيد بن لوذن بن عمرو بن عبدعوف بن غنم بن مالك بن النجار الانصاري النجاري المدني رضي الله عنه دې.(۴) ددوی کنيت ابوسعيد او ابوخارجه بيانولې شي.(۵) ددوی د مور نوم النوار بنت مالك بن صرمه بن فلان بن عدي بن عامر دې.(۶) واقعه بعاث (دا يوه مشهوره ورځ ده په کوم کښې چه قبيله اوس او خزرج په مينځ کښې جنګ شوې وو) کښې هغه د شپږو کالو وو. پدې جنګ کښې د هغوی پلار ثابت بن الضحاك قتل کړې شو.(۷) بيا چه کله نبی کريم ﷺ هجرت اوکړو مدينې ته نې تشريف راوړو نو هغه وخت ددوی عمر ۱۱ کاله وو.(۸)

دهغوی خوئې حضرت خارجه بن زيد بن ثابت رضي الله عنه فرمائی چه زما پلار اوفرمائيل چه کوم وخت نبی کريم ﷺ مدينې منورې ته تشريف راوړو نو زه ئې په خدمت کښې ورحاضر کړم او حضورپاك ته خبر ورکړې شو چه يارسول الله! دا ماشوم د قبيله بنی نجار نه راغلې دې. هغه په تاسو باندې نازل شوی سورتونو نه اوولس سورته (اود يو بل روايت مطابق شپاړس سورتونه) زبانی ياد کړی دی په دې باندې نبی کريم ﷺ داورولو دپاره اوفرمائيل نوما هغه ټول سورتونه واؤرول بيا حضورپاك ماته اوفرمائيل اې زيد ته زما د آسانتئ دپاره اهل کتاب يهوديانو سره دخط او کتابت علم زده کړه په الله ﷻ باندې قسم زه دخطونو په معامله کښې په يهودو باندې تسلی نه کوم. زيد رضي الله عنه فرمائی چه په ما باندې نيمه مياشت هم نه وه تيره چه زه دکتابت په علم کښې ماهرشوم بيا به مې دحضورپاك د طرف نه ليکونکی خطونه ليکل. او کله چه به حضورپاك له دنورو خطونه راتلل نو هم ما به لوستل او اورولو.(۹)

---

(۱) عمدة القاري: ۱۲۳/٤.
(۲) صحيح البخاري كتاب التفسير سورة النساء رقم الحديث: ٤۵۹۲.
(۳) صحيح البخاري كتاب الجهاد باب قول الله: لايستوى القاعدون...... الخ رقم الحديث: ۲۸۳۱.
(۴) سير أعلام النبلاء: ۴۲۶/۲ تهذيب الكمال: ۲٤/۱۰.
(۵) الثقات لابن حبان: ۱۳۵/۳.
(۶) تهذيب الكمال: ۲۵/۱۰.
(۷) تهذيب التهذيب: ۳۹۹/۳ ثقات لابن حبان: ۱۳۶/۳.
(۸) تهذيب الكمال: ۲۸/۱۰ تهذيب التهذيب: ۳۹۹/۳.
(۹) سير أعلام النبلاء: ٤۲۹/۱۰ تهذيب الكمال: ۲۸/۱۰.

دغه شان په یو بل روایت کښې دي چه رسول اکرم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه بیشکه ماله خطونه راځي زه نه غواړم چه هغه دې هرڅوك اولولي. آیا ته ددې خبرې طاقت لرې چه عبرانی ژبه (او یا ارشاد ئې اوفرمائیلو چه سریانی ژبه) زده کړې. نوما عرض اوکړو چه ولې نه (زه ددې دزده کولو طاقت لرم) چنانچه ما دغه ژبه صرف په اوولس شپو کښې زده کړه. (۱)

دزید رضی الله عنه دَ فضیلت باره کښې چه رسول الله ﷺ کوم الفاظ ارشاد فرمائیلی هغه دَدې حدیث شریف نه اندازه لګولې شی. ((عن النبی صلی الله علیه وسلم أرحم أمتی بأمتی أبوبکر، وأشدهم فی دین الله عمر، وأصدقهم حیاءً عثمان، وأفرضهم زید بن ثابت..... وذکر بقیة الحدیث)) (۲) یعنی زما په امت کښې دَعلم الفرائض دَ ټولونه لوئی ماهر حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه دې.

حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه ارشاد فرمائی چه دَ هجرت نه پنځه کاله وړاندې کله چه واقعه دَ بُعاث پېښه شوه هغه وخت زه دَ یوولسوکالو وم. زه دَحضورپاك په خدمت کښې پیش کولوسره اوخودلې شوم چه دَ الخراج دې ماشوم شپاړس سورتونه زبانی یادکړی دی. فرمائی چه دَ وړوکوالي دَ وجې نه ماته غزوه بدر او احد کښې دَ شرکت اجازت ملاؤ نه شو. دې نه پس په غزوه خندق کښې دَ شریکېدو اجازت ملاؤشو (۳) مسروق رحمه الله فرمائی چه دَ اصحاب رسول ﷺ نه فتویٰ ورکونکی صحابه رضی الله عنهم کښې عمر، علی، ابن مسعود، زیدبن ثابت، ابی بن کعب او ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنهم وو. (۴) الغرض دَ هغوی رضی الله عنه مناقب او فضائل بې حده مقبول دی. په هغې کښې صرف یو څو پورته ذکرکړې شو.

حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه دَ نبی کریم ﷺ، حضرت ابوبکر رضی الله عنه، حضرت عمرفاروق رضی الله عنه حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه اوحضرت عبدالله بن عثمان رضی الله عنه نه احادیث روایت کوی. (۵) اودَ دوی نه روایت کونکوکښې یولوئی شمیر دې. په هغې کښې یو څو مشهور دلته ذکرکولې شی ابان بن عثمان بن عفان، انس بن مالك، بشر بن سعید، ثابت بن الحجاج، حجر المدری، سعد بن مالك، سعید بن المسیب، سلیمان بن یسار، سهل بن حنیف، سهل بن سعدالساعدی، عطاء بن یسار، کثیر بن افلح، مروان بن الحکم، ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف اوحضرت ابوهریره رضی الله عنهم رحمهم الله شامل دی. (۶) یحیی بن بکیر رحمه الله فرمائی حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه ۵۶ کالو په عمرکښې دَ هجرت ۴۵ کال باندې وفات شوې. دَهغوی په وفات کښې یو قول دَ ۴۴ کالو کښې وفات کېدلو هم دې. اوداهم وئیلی شوی دی چه دَهغوی عمر ۵۱ یا ۵۵ کاله وو (۷) لیکن علامه ذهبی رحمه الله دَ هجرت نه ۴۵ کال وړاندې وفات والا قول صحیح ګرځولې دې په دې صورت کښې دَهغوی عمر ۵۶ کاله جوړیدلو (۸) حضرت سعید بن المسیب رحمه الله فرمائی چه دَحضرت زید بن ثابت رضی الله عنه په جنازه کښې حاضر شوم کله چه هغوی په قبر کښې خښ کړې شو نوحضرت ابن عباس رضی الله عنهما اوفرمائیل چه کوم سړې غواړی چه هغه ته دا علم وی چه علم به دَ دنیا نه څنګه اوچتولې شی نو (هغه سړې دې پوهه شی چه) علم دغه شان

(۱) طبقات لابن سعد: ۳۵۸/۲ تهذیب الکمال: ۲۸/۱۰.
(۲) سیرأعلام النبلاء: ۴۳۲/۱۰ تهذیب الکمال: ۲۹/۱۰.
(۳) تهذیب الکمال: ۳۰/۱۰.
(۴) تهذیب الکمال: ۳۹۹/۲ سیرأعلام النبلاء: ۴۳۳/۱.
(۵) سیرأعلام النبلاء: ۴۳۷/۱۰ تهذیب الکمال: ۲۵/۱۰.
(۶) سیرأعلام النبلاء: ۴۲۷/۲ تهذیب الکمال: ۲۶/۱۰.
(۷) تهذیب الکمال: ۳۱/۱۰.
(۸) تهذیب الکمال: ۳۹۹/۳ سیرأعلام النبلاء: ۴۴۱/۲.

(یعني دَدې قسم کسانو وفات کیدو سره) اوچتولې شي. په الله قسم نن دَ علم ډیره لویه حصه خښه کړې شوه.[1] حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَهغوی دَ وفات په ورځ اوفرمائیل چه نن دَدې امت بحرالامة (دَعلم سمندر) اوچت کړې شو. کیدې شي حضرت ابن عباس رضی الله عنهما (په علم کښې) دَهغه خلیفه جوړ کړې شي

**دَ پتون سترکیدو باره کښې دَ مذاهب بیان:** پتون (چه دَ شرمګاه او زنګون مینځمې حصه ده) په سترکښې داخل دې که نه؟ دَدې باره کښې دَائمه اربعه مذهب او هم دَدې باره کښې دَ امام بخاري رحمه الله خیال څه دې؟ دَدې تفصیل لاندې داسې ذکرکولې شي چه په دې صورت اول دَ جمهور علماؤ سره دَ ائمه اربعه مذهب او دلائل ذکرکولې شي. ددې نه پس به دَ امام بخاري رحمه الله خیال اودَ هغوی ذکرکړې شوی دلائل باندې تفصیلی نظر اچولې شي.

**دَائمه اربعه مذهب:** صحیح ترین او اصح في المذهب مطابق دَ ائمه اربعه صاحبین امام زفر او امام اوزاعی رحمهم الله په نیز پتون په ستر کښې داخل دې.[2] اودَدوی مقابل اهل الظواهر امام احمد (دَ یوروایت مطابق) اوشوافع نه ابن حزم رحمهم الله په نیز پتون ستر نه دې بلکه ستر صرف دواړه شرمګاهونه دی.[3]

دې نه پس پتون سره متصل دَ زنګونوباره کښې دَامام ابوحنیفه رحمه الله اوامام احمد رحمه الله قول دَ ستر کیدو دې اودَامام مالک رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله په نیز زنګونونه په سترکښې داخل نه دی. اودَنوم باره کښې دَامام ابوحنیفه رحمه الله اودَ نورو ټولو ائمه حضراتو مذهب دادې چه نوم په سترکښې داخل نه دې.

**دَ جمهور علماؤ دلائل:** په مسئله مذکوره (چه پتون په سترکښې داخل دې) کښې دَجمهور علماؤ دلائل دلته ذکرکولې شي:

**رومبې دلیل:** ((عن عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: إذا زوج أحدکم أمته عبده أو أجیره، فلا ینظر إلی ما دون السرة وفوق الرکبة، فإن ما تحت السرة إلی الرکبة عورة))[4]

**ترجمه:** عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل کله چه په تاسو کښې څوک دَخپلې وینځې نکاح خپل غلام یا نوکر سره اوکړی نودَهغې دَ نوم نه لاندې زنګون پورې حصه اودَزنګون نه پورته حصه مه ګورئی ځکه چه دَ نامه نه لاندې دَ زنګون پورې حصه ستر دې.

**دویم دلیل** ((عن علی رضی الله عنه أن النبی صلی الله علیه وسلم قال: لاتبرز فخذك ولاتنظر إلی فخذ حی ولا میت))[1]

---

[1]) تهذیب الکمال: ۳۹۹/۳ سیر أعلام النبلاء: ۴۳۹/۲.

[2]) البحرالرائق کتاب الصلاة باب فی شروط الصلاة: ۲۸۴/۱ المبسوط للسرخسی کتاب الا ستحسان: ۱۵۲/۱۰ شرح الوقایة کتاب الصلاة من شروط الصلاة: ۲۳۵/۱ حاشیة الدسوقی علی الشرح الکبیر للدر دیر باب فی ستر العورة: ۲۱۱/۱ بدایة المجتهد الشرط الرابع فی ستر العورة: ۷۸، ۹۴/۱ المجموع شرح المهذب باب ستر العورة: ۱۶۵/۲ نهایة المحتاج باب صفة أی کیفیة الصلاة: ۲۳۷/۷ أسنی المطالب الشرط الخامس ستر العورة: ۳/۴۰ الشرح الکبیر لابن قدامة کتاب الصلاة باب ستر العورة: ۲۰۰/۳ المبدع شرح المقنع باب ستر العورة: ۲۳۷/۲ الإنصاف فی معرفة الراجح من الخلاف کتاب الصلاة باب ستر العورة: ۶۳/۲.

[3]) نیل الأوطار کتاب الصلاة ابواب ستر العورة بیان العورة وحدها: ۶۳/۲.

[4]) سنن أبی داؤد کتاب الصلاة باب متی یؤمر الغلام بالصلاة رقم الحدیث: ۴۹۶ وکذا فی کتاب اللباس باب فی قول الله تعالی: ﴿وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ یَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ﴾ رقم الحدیث: ۴۱۱۶ سنن الدارقطنی کتاب الصلاة باب الأمر بتعلیم الصلوات والضرب علیها وحد العورة التی یجب سترها رقم الحدیث: ۲.

**ترجمه.** حضرت علي رضي الله عنه نه روايت دې چه حضورپاك اوفرمائيل خپل پتون (د بل په مخكښې) مه ښكاره كونى اومه د ژوندى يا مړى دپتون طرف ته گورنى.

**دريم دليل:** ((عن محمد بن (عبدالله بن) جحش رضي الله عنه قال: مر النبي صلى الله عليه وسلم وأنا معه على معمر وفخذاه مكشوفتان، فقال: يامعمر! غط عليك فخذيك، فإن الفخذين عورة)) [٢] **ترجمه:** دعبدالله بن جحش رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ معمر رضي الله عنه سره تيريدواوزه حضورپاك سره ووم چه دمعمر پتونونه ښكاره وو. حضورپاك هغه ته ارشاد اوفرمائيلو اې معمر! خپل پتونونه پټ كړه ځكه چه پتونونه ستر دى.

**څلورم دليل:** ((عن زرعة بن عبدالرحمن بن جرهد عن أبيه قال: كان جرهد هذا من أصحاب الصفة، إنه قال جلس رسول الله صلى الله عليه وسلم عندنا وفخذي منكشفة، فقال: خمر عليك، أما علمت أن الفخذ عورة)) [٣]

**ترجمه:** زرعه بن عبدالرحمن دخپل پلار جرهد رضي الله عنه نه روايت كوى چه حضرت جرهد رضي الله عنه چه د اصحاب صفه نه دې اوفرمائيل چه (يوځل) رسول الله ﷺ زمونږ خواته راغلو په داسې حال كښې چه زما پتون ښكاره وو. نوحضور پاك ارشاد اوفرمائيلو خپل ستر پټ كړه ولې تاته معلومه نه ده چه پتون ستر دى.

**پنځم دليل:** ((عن ابن عباس رضي الله عنهما أن النبي صلى الله عليه وسلم قال: الفخذ عورة)) [٤]

**ترجمه:** دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه پتون ستر دى.

**پتون ستر نه منونكو دلائل:** كوم كسان چه پتون ستر نه مني دهغوى په دلائلوكښې دحضرت انس رضي الله عنه اوحضرت زيد رضي الله عنه احاديث دى كوم چه امام بخارى رحمه الله خپل صحيح كښې تعليقًا اوموصولاً نقل كړى دى.دهغوى توجيه او جواب لږ شان روستو په تفصيل سره راځى. [٥]

**د جمهورو د مذهب د ترجيح وجه:** د جمهور فقهاؤ دلائل (كوم چه پورته ذكرشو) كښې صحيح حسن مقبول او ضعيف هرقسم احاديث دى. ليكن چه كله هم يو مضمون د ډيرو زيات صحابه كرامو رضي الله عنهم نه نقل وى نودهغې په صحيح كيدو او مقبول كيدو كښې تردد باقى نه پاتې كيږى. هم په دې وجه جمهور ائمه سلف اوخلف دا مضمون يعنى پتون ستر كيدل تسليم كړى دى.

دويمه خبره داده چه كله په يوځائى كښې حرمت اوحلت راجمع شى نوحرمت ته به ترجيح وركولې شى. مثلاً په دې مسئله كښې د بعض احاديثونه د پتون ښكاره كولو جواز معلوميږى اود بعض احاديثو

---

[١] سنن أبي داؤد كتاب الحمام باب النهى عن التعرى رقم الحديث: ٤٠١٧ سنن الدارقطني كتاب الحيض باب فى بيان العورة والفخذ منها رقم الحديث: ٤ مسندأحمد بن حنبل رقم الحديث: ١٢٤٩، ٤٠٥/٢.

[٢] المستدرك على الصحيحين كتاب معرفة الصحابة، باب ذكر عبدالله بن عباس رضى الله عنهما، رقم الحديث: ٦٦٨٤ مسندأحمدبن حنبل رقم الحديث: ٢٢٤٩٥، ١٦٦/٢٧.

[٣] سنن أبي داؤد كتاب الحمام باب النهى عن التعرى، رقم الحديث: ٤٠١٦ سنن الترمذى كتاب الأدب باب أن الفخذ عورة رقم الحديث: ٢٧٩٧ سنن الدارمى كتاب الاستئذان باب فى أن الفخذ عورة رقم الحديث: ٢٦٥٠ مسندأحمدبن حنبل رقم الحديث: ١٥٩٣١، ٢٧٩/٢٥.

[٤] صحيح البخارى كتاب الصلاة باب ما يذكر فى الفخذ تعليقاً.

[٥] صحيح البخارى كتاب الصلاة باب ما يذكر فى الفخذ تعليقاً.

نه دَ پټون ستر کيدل يعنی دَدې پټول معلوميږی. نوپټول (يعنی ښکاره او کولاؤ نه ساتلو) ته به ترجيح وی او په دغه نه ښکاره کولو باندې به عمل کولې شی.
او هم په دې وجه امام بخاری ﷫ ((حديث أنس أسند وحديث جرهد أحوط)) ونيلی دی ځکه چه دَحضرت جرهد ﷜ دَحديث نه دَ پټون ستر کيدل معلوميږی اودَدې متعلق عمل کولوکښې احتياط دې. سره دَدې چه دَدې په مقابل کښې حديث انس ﷜ دَسند په اعتبارسره زيات مضبوط دې.[1] دَ پورتنی تفصيل نه دَ جمهورو دَمذهب تائيد اوترجيح واضح کيږی.[2]

**دَ احنافو په نيز زنګون هم په ستر کښې داخل دی:** پټون سره متصل اندام رکبه (زنګون) هم دَ احنافو په نيز ستر دې. (په خلاف دَ نورو انمه، چه هغوی دا دَ ستر نه خارج ګرځوی) ځکه چه دَحضرت علی ﷜ په حديث کښې زنګون هم ستر ګرځولې شوې دې. ((عن علی رضی الله عنه قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم الركبة من العورة)).[3]

**ترجمه:** دَحضرت علی ﷜ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمانيلې چه زنګون هم ستر کښې داخل دې. مذکوره حديث سره دَدې چه ضعيف دې ليکن دَ احنافو په نيز په دې باندې عمل کول عين دَ احتياط مطابق دې.

**دَاحنافو محتاط رويه او انتهائی کوشش:** دَائمه احناف خاصه ده چه حتی الوسع دَ سرکار دوعالم ﷺ اقوال او ارشادات خپلولودپاره ډيرکوشش کوی. تردې چه دَاحنافو په مذهب کښې ضعيف حديث له په قياس باندې ترجيح ورکولې شی. چنانچه مذکوره حديث اوحديث دَ عبدالله بن عمرو بن العاص ﷜ آخری ټکړه ((فإن ما تحت السرة إلى الركبة عورة)) نه استدلال کولوسره احنافو زنګون هم پټون سره ستر ګرځولې دې.[4] البته دَ احنافو په مذهب کښې دَ رواياتودَاختلاف په رڼرا دَ ستر درې درجې ګرځولې شوی دی. دَکوم تفصيل اودَهغې حکم صاحب دَ هدايه ﷫ ډير په ښکلی انداز کښې ذکرکړې دې.
((وحكم العورة في الركبة أخف منه في الفخذ، وفي الفخذ أخف منه في السوأة حتى أن كاشف الركبة ينكر عليه بالرفق وكاشف الفخذ يعنف عليه وكاشف السوءة يؤدب إن لجّ)).[5]

**ترجمه:** دَسترحکم په زنګون کښې په نسبت دَ پټون اخف يعنی کم دې او په پټون کښې په نسبت دَ شرمګاه اخف دې چنانچه که چرته يو سړې خپل زنګونونه ښکاره پريخودې وی نوهغه په نرمئی سره اوټوکنی اوکه يو سړې پټون بربنډ کړې وی نوهغه لږ په سختئی سره اوټوکنی اوکه چا خپل شرمګاه هم ښکاره کړې وی نوهغه په ډيره سختئی سره منع کړنی (تردې چه په نه منلو باندې) سزاهم ورکولې شی.

[1] صحيح البخاری كتاب الصلاة باب ما يذكر في الفخذ تعليقاً.
[2] بداية المجتهد: ۱۸٤/۲.
[3] سنن الدارقطني كتاب الصلاة باب الأمر بتعليم الصلوات والضرب عليها وحدالعورة التي يجب سترها رقم الحديث: ٤.
[4] سنن أبي داؤد كتاب الصلاة باب متى يؤمر الغلام بالصلاة رقم الحديث: ٤۹٦.
[5] الهداية كتاب الكرهية فصل في الوط والنظر والمس: ۲۰۲/۷ البشرى.

**دَامام نظام الدين الشاشي رحمه الله قول**: نظام الدين الشاشي رحمه الله په اصول شاشي كښې ليكلي دي چه كلمه إلى بعض صورتونو كښې دَ اسقاط فائده وركوي نو په داسې صورت كښې دَ إلى ما بعد په ماقبل كښې داخليږي لكه دَ حضور پاك قول «عورة الرجل ماتحت السرة إلى الركبة» كښې دى چه په دې كښې كلمه إلى دَ اسقاط دَپاره ده. لهذا ركبه به دَ ستر په حكم كښې داخل وى.

دَ دې تفصيل اجمال دادې چه كله رسول الله ﷺ دَ عورة الرجل حد بيان كړو نو ماتحت السرة ونيلو سره دَ ستر حكم دَ نوم نه لاندې پوره بدن ته شامل شو. بيا دَ إلى الركبة ونيلو وخت حكم دَ قدمونو طرف نه ساقط كيدو سره زنګونونو ته اورسيدو، دَ كوم په صورت كښې چه زنګونونه په ستر كښې شامل شو نه چه خارج.(١)

**دَ امام بخارى رحمه الله رحجان**: دَ پتون ستر كيدل يا نه كيدلو باره كښې امام بخارى رحمه الله څه واضح موقف يا دوټوك انداز نه دې اختيار كړې اونه ئې بالكليه دَپتون ستر كيدل بيان كړى دى اونه ئې دَ ستر نه كيدل، بلكه ترجمة الباب «مايذكر في الفخذ» قائم كولوسره اشاره كړې ده چه په دې باب كښې به دواړه شان روايات ذكر كولې شي.(٢).

چنانچه اول ئې درې روايات تعليقاً ذكر كړى دى دَ حضرت ابن عباس، حضرت جرهد او حضرت محمد بن (عبدالله بن)جحش رضي الله عنه ليكن دا روايات يروئ مجهول صيغې سره ذكر كول دَدې دَ ضعف طرف ته اشاره كړې ده دَدې رواياتو سره پتون دَ ستر كيدو علم كيږى.

دې نه پس درې روايات هم تعليقاً دَحضرت ابوموسى اشعرى، حضرت انس بن مالك اوحضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه نقل كړى دى. دَدې رواياتو نقل كولونه پس امام بخارى رحمه الله ليكلي دى چه «حديث أنس أسند وحديث جرهد أحوط» يعنى سنداً حديث انس رضي الله عنه مضبوط دې په نسبت دَحديث جرهد رضي الله عنه البته دَعمل په اعتبارسره حديث جرهد رضي الله عنه زيات أحوط دې دَامام صاحب رحمه الله دَدې خبرې نه اشاره ملاويږى اودَ امام صاحب رجحان دَهغه دَتحرير دَ انداز نه دا معلوميږى چه هغوى دَ پتون ستر نه كيدو طرف ته مائل دى ليكن احتياطاً پتون پټولو حكم وركوى. امام بخارى رحمه الله چه دَ پتون دَ ستر نه كيدو كوم درې روايتونه ذكر كړى دى په هغې كښې دَ حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه والا حديث دَ زنګون دَ پټولو باره كښې دې نه چه دَ پتون باره كښې. لهذا دَدې نه استدلال خو هډو ممكن نه دې.

دويم روايت دَحضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه دې چه په دې كښې دَهغه په پتون باندې دَ حضورپاك پتون مبارك كيخودو ذكر وو نه چه دَ پتون دَ بربنډيدو اوستر نه كيدو. لهذا دَدې نه هم استدلال تام نه شى كيدې. دريم روايت دَحضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې په كوم كښې چه هغوى فرمانيلى چه نبى كريم ﷺ دَ خپل پتون نه كپړه اخواكړه. دَدې حديث جواب دادې چه اول دَدې حديث سياق اوسباق په مكمل توګه باندې اوكتلې شى دَدې الفاظ دادى:

«فركب النبي صلى الله عليه وسلم وركب أبوطلحة، وأنا رديف أبي طلحة، فأجرى نبي صلى الله عليه وسلم في زقاق خيبر وإن ركبتي لتمس فخذ النبي صلى الله عليه وسلم، ثم حسر الإزار عن فخذه، حتى إني أنظر إلى بياض فخذ النبي صلى الله عليه وسلم» يعنى نبى كريم ﷺ په اس باندې سور شو ابوطلحه رضي الله عنه هم (په يوبل) اس باندې سور شو

---

(١) أصول الشاشي البحث الأول في كتاب الله. فصل في إلى ص: ١٤٨-١٤٧.

(٢) صحيح البخاري كتاب الصلاة باب ما يذكر في الفخذ

زه په دغه اس باندې ابوطلحه رضي الله عنه سره سور شوم. دخيبر په تنګو کوڅو کښې حضورپاک اس اوزغلولو (دې سره سره ابوطلحه رضي الله عنه هم خپل اس زغلولو او دې اس زغلولو په وخت کله زمونږ اس د نبي کريم صلى الله عليه وسلم اس سره تيريدلو نو) زما زنګون به د حضورپاک پتون مبارک سره لګيدلو نو بيا حضورپاک دخپل پتون نه ازار اخوا کړو تردې چه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم د پتون مبارک سپينوالې ليدلو.

دا روايت دې دکوم نه چه امام بخاري رحمه الله د پتون په ستر نه کيدو باندې استدلال کوی ليکن دا استدلال په يو څو وجوهاتو سره ضعيف دې. اول وجه داده چه اسونو منډې وهلې په دې دوران کښې کپړه پخپله اوچتيږی لهذا د "حسر" دامعني اخستل چه حضورپاک پخپله ازار اوچت کړو اوخپل پتون مبارک ئې کولاؤ کړو دامشکوک دی.(١) بلکه په دې ځائې کښې خوبه ونيلې شي چه کتب اللغات، صحاح، قاموس وغيره کښې دَدې خبرې تصريح راغلې ده چه "حسر" لازم هم استعماليږی اومتعدی هم.(٢) لهذا د اس د منډې د وجې نه اود هواد مخالف سمت نه دکيدو په وجه پخپله ازار د پتون نه اخوا شوې وو. دحضورپاک د فعل په دې کښې هيڅ دخل نه وو. لهذا دې نه استدلال کمزورې دې.

دويمه خبره داده چه مذکوره احتمال(حسر د لازم اومتعدی کيدو) دکتب اللغة د وجې نه دې. د صحيح مسلم او مسنداحمدپه روايت کښې د "حسر" په ځائې "انحسر" لفظ دې کوم چه هم لازم دې. په "حسر" کښې خود متعدی کيدو احتمال هم وو ليکن دمسلم د روايت مطابق خودَدې د لازم کيدو والامعنی متعين شوې ده چه ازار ئې اخوا کړې نه دې بلکه پخپله اخوا شوې وو.(٣)

البته په دې موقع باندې يو سوال پيداکيږی بنه ده تيک شوه ازار خو پخپله اوچت شوې وو ليکن دا زر پتول پکار وو دې دپاره چه چاته هډو دليدلو موقع نه ملاويدله ولې دلته خو حضرت انس رضي الله عنه پتون ليدلې دې اوبيائې د دې رنګ هم خودلې دې. نودَدې په جواب کښې به ونيلې شي چه دا سوال کول فضول دې ځکه چه کله ازار اخوا شو نودحضرت انس رضي الله عنه نظر هلته پريوتلو بيا حضورپاک دا هم په هغه وخت پټ هم کړو. حضرت انس رضي الله عنه خو صرف داخودل غواړی چه حضورپاک بنه په تيزئی سره اس زغلولو دومره تيز چه انحسار ازار پورې خبره راؤرسيدله. يعنی د اس تيز زغلولو کيفيت بيانول مقصود دی. دَدې په ضمن کښې داخبره هم راغله چه د پتون نه کپړه اخوا شوه او داهم چه زما نظر پرې پريوتلو. دې نه پس حضورپاک خپل پتون پټ کړو که نه؟ دَدې ذکرکولوضرورت نشته ټول ته معلومه ده چه رسول الله صلى الله عليه وسلم څومره زيات د شرم اوحياء والاانسان وو. يقيناً هغوی به زر خپل پتون پټ کړې وی لهذا دَدې نه استدلال صحيح نه دې.(٤)

دريمه خبره دا چه حضرت انس رضي الله عنه دا بيانول غواړی چه زما زنګون د حضورپاک پتون سره لګيدلو دکوم د وجې چه دا احتمال هم دې چه دَدې زنګون د مرلو د وجې نه دحضورپاک د پتون نه کپړه اخوا شوې وی نه حضورپاک پخپله کولاؤ کړې يا په هواسره ښکاره شوه لهذا دَدې وجې نه هم استدلال نه پاتې کيږی.(٥)

---

(١) الكنزالمتوارى: ٤١/٤-٤٠.

(٢) معجم الصحاح المادة: ح س ر. صفحه: ٢٣٣القاموس الوحيد، ماده ح س ر: ٣٣٦/١.

(٣) صحيح مسلم كتاب النكاح باب فضيلة إعتاقه أمته ثم يتزوجها رقم الحديث: ٣٥٦٣مسنداحمد بن حنبل رقم الحديث: ١١٩٩٢، ١٩/٥٠.

(٤) فتح البارى لابن رجب: ٥٦/٢التوضيح لابن ملقن: ٣٢/٥.

(٥) إرشادالسارى: ٣٢/٢.

خلورمه خبره دا ده چه بعض رواياتو كښې دا هم راغلى دى چه حضرت انس ﷺ اوفرمائيل چه زما خپه دَ رسول الله ﷺ خپې سره اولګيدله يعنى په دې روايت كښې خونه دَ فخذ ذكر دې او نه دَ ركبه، كه چرې دَ دې روايت اعتبار اوكړې شى نو بيا دَ پټون دښكاره كيدو مسئله دې كښې نښته دې (١)
بل دا هم ممكن دى چه دحضرت انس ﷺ زنګون جنګيدلو دكوم دَ وجې نه چه بار بار دَ پټون نه ازار اخوا كيدلو په دې وجه دَهغه دا انديښنه پيدا شوه چه كه چرې دا هم دغه شان لګى نوهسې نه چه ازار كولاؤ شى لهذا أهون البليتين اختيارولوسره حضورپاك داسې اوكړه چه خپل ازار ئى دَ فخذ نه لاندې كړو او فخذ يعنى پټون ښكاره شو. په دې وجه ددې نه هم پټون ستر نه كيدو باندې استدلال كول صحيح نه دى. والله اعلم بالصواب.

## الحديث الأول

[٣٦٤]- حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عُلَيَّةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزَا خَيْبَرَ، فَصَلَّيْنَا عِنْدَهَا صَلَاةَ الْغَدَاةِ بِغَلَسٍ، فَرَكِبَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَكِبَ أَبُو طَلْحَةَ، وَأَنَا رَدِيفُ أَبِي طَلْحَةَ، فَأَجْرَى نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي زُقَاقِ خَيْبَرَ، وَإِنَّ رُكْبَتِي لَتَمَسُّ فَخِذَ نَبِيِّ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ حَسَرَ الْإِزَارَ عَنْ فَخِذِهِ حَتَّى إِنِّي أَنْظُرُ إِلَى بَيَاضِ فَخِذِ نَبِيِّ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا دَخَلَ الْقَرْيَةَ قَالَ: "اللَّهُ أَكْبَرُ خَرِبَتْ خَيْبَرُ إِنَّا إِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ {فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِينَ} [الصافات: ١٧٧]" قَالَهَا ثَلَاثًا، قَالَ: وَخَرَجَ الْقَوْمُ إِلَى أَعْمَالِهِمْ، فَقَالُوا: مُحَمَّدٌ، قَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ: وَقَالَ بَعْضُ أَصْحَابِنَا: وَالْخَمِيسُ - يَعْنِي الْجَيْشَ - قَالَ: فَأَصَبْنَاهَا عَنْوَةً، فَجُمِعَ السَّبْيُ، فَجَاءَ دِحْيَةُ الْكَلْبِيُّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، أَعْطِنِي جَارِيَةً مِنَ السَّبْيِ، قَالَ: «اذْهَبْ فَخُذْ جَارِيَةً»، فَأَخَذَ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ، فَجَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، أَعْطَيْتَ دِحْيَةَ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ، سَيِّدَةَ قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيرِ، لَا تَصْلُحُ إِلَّا لَكَ، قَالَ: «ادْعُوهُ بِهَا» فَجَاءَ بِهَا، فَلَمَّا نَظَرَ إِلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «خُذْ جَارِيَةً مِنَ السَّبْيِ غَيْرَهَا»، قَالَ: فَأَعْتَقَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَزَوَّجَهَا، فَقَالَ لَهُ ثَابِتٌ: يَا أَبَا حَمْزَةَ، مَا أَصْدَقَهَا؟ قَالَ: نَفْسَهَا، أَعْتَقَهَا وَتَزَوَّجَهَا، حَتَّى إِذَا كَانَ بِالطَّرِيقِ، جَهَّزَتْهَا لَهُ أُمُّ [ص: ٨٣] سُلَيْمٍ، فَأَهْدَتْهَا لَهُ مِنَ اللَّيْلِ، فَأَصْبَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرُوسًا، فَقَالَ: «مَنْ كَانَ عِنْدَهُ شَيْءٌ فَلْيَجِئْ بِهِ» وَبَسَطَ نِطَعًا، فَجَعَلَ الرَّجُلُ يَجِيءُ بِالتَّمْرِ، وَجَعَلَ الرَّجُلُ يَجِيءُ بِالسَّمْنِ، قَالَ: وَأَحْسِبُهُ قَدْ ذَكَرَ السَّوِيقَ، قَالَ: فَحَاسُوا حَيْسًا، [٥٨٥، ٩٠٥، ٢١١٥، ٢١٢٠، ٢٢٣٦، ٢٧٨٤، ٢٧٨٥، ٢٨٢٩، ٣٤٤٧، ٣٩٦١، ٣٩٦٢،

(١) صحيح البخارى كتاب الأذان ما يحقن بالأذان من الدماء رقم الحديث: ٦١٠ مسند أحمد رقم الحديث: ١٣٧٩٧، ٢٦٣/٣.

۳۹۶۴، ۳۹۶۵، ۳۹۷۴ـ ۳۹۷۶، ۴۷۹۷، ۴۷۹۸، ۴۸۶۴، ۴۸۷۴، ۵۰۷۲، وانظر: ۲۷۳۲، ۳۹۶۳] فَكَانَتْ وَلِيمَةَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1]

**ترجمه**: دَحضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ دَ غزوه خیبردَپاره روان شو (مقام) خیبر ته په رسیدو سره مونږ دَ سحر مونځ (اول وخت کښې) هم په تیاره کښې اوکړو بیا (په ښاریه کښې دَداخلیدلودَپاره) نبی کریم ﷺ (په اوښه یا اس باندې) سور شو او (دغه شان) ابوطلحه رضی الله عنه هم سور شو اوزه هم دَ ابوطلحه رضی الله عنه سره (هم په هغه سورلئی ابوطلحه رضی الله عنه پسې شاته) سور شوم. حضورپاك دَ خیبر په کوڅوکښې خپله سورلی زغلوله (دَخیبر دَ ښار لارې اوکوڅې تنګې وې دَ سورلو په زغلولوکښې به یو بل سره جنګیدلې دغه شان) زما زنګون به (هم) دَ حضورپاك پتون سره لګیدلو. (چنانچه یوځل) دَ پتون مبارك نه ازار اخوا شو تردې چه زما نظر دَ حضورپاك دَ پتون په سپینوالی باندې اولګیدلو. بیا حضورپاك دَخیبر په علاقه کښې ورداخل شو او حضورپاك (په اوچت آواز کښې الله اکبر نعره اوچته کړه او درې ځل نې دا جمله اوفرمائیله ((خربت خيبر)) خیبر هلاك شو (بیانې اوفرمائیل: إنا إذا نزلنا بساحة قوم فساء صباح المنذرين) چه مونږ کله دَ قوم په صحن کښې (دَ جنګ دَپاره) کوزیږو نودَ ویرې دَ دهشت وهلی خلقو سحر (ډیر) خراب شوې دې. (یعنی په هغوی باندې دَ الله ﷻ دَ طرف نه دَمسلمانانو په صورت کښې عذاب راغلی دې).

راوی وائی چه دغه وخت دَ کلی خلق خپلو خپلو کارونوپسې وتل چه هغوی (خپل مینځ کښې) اووئیل چه محمدراغلو (محمدراغلو). راوی عبدالعزیز رحمه الله وائی چه زما بعض ملګرو بیان کړې دې چه دَ کلی خلقو وئیل محمد اوخمیس یعنی دَهغوی لښکر (دَحملې کولودَپاره) راغلې دې. چنانچه مونږ خیبردَ توری په زور فتح کړو بیامو قیدیان جمع کړل. بیا حضرت دحیه کلبی رضی الله عنه دَنبی کریم ﷺ په

---

[1]) رواه البخاري فی کتاب النکاح باب مایحقن بالأذان من الدماء رقم الحدیث: ۶۱۰وفی صلاة الخوف باب التکبیر والغلس بالصبیح رقم الحدیث ۹٤۷ وفی البیوع باب بیع العبدوالحیوان بالحیوان نسیئة رقم الحدیث:۲۲۲۸وفی البیوع باب هل یسافر بالجاریه قبل أن یستبرنها؟ رقم الحدیث: ۲۲۳۵وفی الجهاد باب فضل الخدمة فی الغزو. رقم الحدیث: ۲۸۸۹وفی الجهاد باب من غزا الصبی للخدمة رقم الحدیث: ۲۸۹۳وفی الجهاد باب دعاء النبی صلی الله علیه وسلم إلی الإسلام والنبوة رقم الحدیث: ۲۹٤۵-۲۹٤۳وفی الجهاد باب التکبیر عندالحرب رقم الحدیث: ۲۹۹۱وفی الجهاد باب مایقول إذا رجع من الغزو رقم الحدیث: ۳۰۸۶-۳۰۸۵وفی المناقب باب سؤال المشرکین أن یریهم النبی صلی الله علیه وسلم آیة رقم الحدیث: ۳۶٤۷ وفی المغازی باب غزوة خیبر رقم الحدیث: ٤۱۹۷ – ٤۲۰۱، ٤۲۱۳-٤۲۱۱ وفی کتاب النکاح باب اتخاذ السراری ، ومن أعتق جاریة ثم تزوجها رقم الحدیث: ۵۰۸۵-۵۰۸۶ وفی کتاب النکاح باب البناء فی السفر رقم الحدیث: ۵۱۵۹وفی کتاب النکاح باب الولیمة ولوبشاة رقم الحدیث: ۵۱۶۹ وباب الخبز المرقق والأ کل علی الخوان والسفرة رقم الحدیث: ۵۳۸۷ وفی کتا بالأطعمة باب الحیس رقم الحدیث: ۵٤۲۵وفی کتاب الذبائح والصید باب لحوم الحمر الإنسیة رقم الحدیث: ۵۵۲۸ وفی کتاب اللباس باب إرداف المرأة خلف الرجل ذا محرم رقم الحدیث: ۵۹۶۸وفی کتاب الأدب باب قول الرجل جعلنی الله فداک رقم الحدیث: ۶۱۸۵ وفی کتاب الدعوات باب التعوذ من غلبة الرجال رقم الحدیث: ۶۳۶۳ وإمام مسلم فی صحیحه فی النکاح باب فضیلة إعتاقه أمة ثم یتزوجها رقم الحدیث: ۳۱۶۵ وفی الجهاد باب غزوة خیبر رقم الحدیث: ۱۸۰۱والنسائی فی سننه فی النکاح باب البناء فی السفر رقم الحدیث: ۳۳۸٤-۳۳۸۲وإمام أبوداؤد فی سننه فی کتاب النکاح باب فی الرجل یعتق أمته ثم یتزوجها رقم الحدیث: ۲۰۵٤وجامع الأصول حرف الغین الکتاب الأول فی الغزوات والرایا غزوة خیبر رقم الحدیث: ۶۱۲۶ ۳٤۰/۸.

خدمت کښې حاضرشو اوعرض ئې اوکړو یا رسول الله ﷺ د قیدیانو نه ماته یوه وینځه راکړئی حضورپاک هغه ته د یوې وینځې داخستلو اجازت اوکړو نوهغه د صفیه بنت حیی انتخاب اوکړو واخستله لاړو.

بیا یوسړې دحضورپاک په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو یارسول الله! تاسو (دخیبر د دوو قبیلو) بنوقریظه او بنونضیر سرداره بنځه صفیه بنت حیی دحیه کلبی رضی الله عنه ته ورکړه حالانکه (د مرتبې په اعتبار) هغه خو صرف ستاسو لائقه ده (د بل چانه ده) په دې باندې حضورپاک حکم اوفرمائیلو چه دحیه او صفیه دواړه راؤغواړئی (کله چه دواړه راؤرسیدل) نوحضورپاک دحضرت صفیه رضی الله عنها طرف ته اوکتل (نوهغه ئې دمخ اوبشرې نه هم هغه شان اولیدله چه څنګه ئې اوریدلی وو) نوحضورپاک حضرت دحیه رضی الله عنه ته آوفرمائیل چه (دا صفیه پریږده اودې بدله کښې) یوه بله وینځه منتخب کړه: راوی وائی چه نبی کریم ﷺ (د اکرام په توګه) حضرت صفیه بنت حیی آزاده کړه او هغې سره ئې واده اوکړو.

د حضرت انس رضی الله عنه یو شاګردثابت دهغه نه تپوس اوکړو چه اې ابوحمزه رسول الله ﷺ حضرت صفیه رضی الله عنها ته دمهر په توګه څه ورکړې وو؟ حضرت انس رضی الله عنه جواب ورکړو دحضرت صفیه رضی الله عنها آزادول دهغې حق مهر اوګرځولې شو. بیا هم د خیبر په لار ام سلیم رضی الله عنها دحضرت صفیه رضی الله عنها (بناؤ سنګار کولو سره) ناوې جوړه کړه او (د واده د شپې دپاره) د نبی کریم ﷺ خواته اولیږله نو حضورپاک دواده زلمی په حالت سحر کړو. بیا (سحر) حضورپاک ارشاد اوفرمائیلو چه کوم سړی سره (دخوارک څښاک څه (سامان) وی هغه دې راوړی. رسول الله ﷺ د څرمن یو دسترخوان خور کړو. نو چا کجورې راوړې چا غوړی راوړل. د راوی عبدالعزیز رحمه الله بیان دې چه زما ګمان دې چه حضرت انس رضی الله عنه ستوان (راوړلو) هم بیان کړې وو. الغرض خلقو (ټول هرڅه یوځائی کړل، حیس (شیره) ئې تیاره کړه (بیاټولو په یو ځائی اوخوړله) اوهم دغه د سردار دوجهان ﷺ ولیمه وه.

## تراجم رجال

دذې ټول راویان کتاب الإیمان باب حب الرسول من الإیمان ددویم حدیث لاندې تیرشوی دی تفصیلی حالات هم هلته اوګورئی. (۱)

## شرح حدیث

**قوله: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم غزا خيبر** راوی بیان کوی چه جناب رسول الله ﷺ د غزوه خیبر دپاره روان شو.

**غزوه خیبر کلې شوې؟** خیبر د یوښارې نوم دې خیبردمدینې منورې نه شمال مشرق طرف ته اتو منازلو په فاصله باندې د شام طرف ته پروت دې. په دې علاقه کښې دکهجورو ونې ډیرې زیاتې دی دیهودو په ژبه کښې خیبر قلعه ته وائی. ونیلی کیږی چه د بنی اسرائیلو نه دلته د ټولو نه اول راتلونکی سړی نوم خیبر وو هم دهغه په نوم باندې دا ښار آبادشو. د اسلام په شروع کښې دلته دوه قبیلې بنوقریظه او بنو نضیر آبادې وې

(۱) کشف الباری: ۱۱/۲.

دَ ابن اسحاق رحمه الله بيان دې دَ صلح حديبيه نه په واپسئ باندې رسول الله ﷺ دَ ذوالحجه پوره مياشت او دَ محرم دَمياشتې دَ شروع يو څو ورځې هم په مدينه کښې حصار شو. بيا دَ خيبر طرف ته روان شو اودَ محرم باقي ورځې هم دې غزوه کښې تيرې شوې دا دَ هجرت نبوی اووم کال وو.[1]

**نوټ**: دَ غزوه خيبر تفصيلي اوجزوي واقعات کتاب المغازي کښې مفصل راروان دي.

**قوله:: فصلينا عندها صلاة الغداة بغلس**: بيا مونږ خيبر (سره نيزدې سرحدي علاقه) کښې دَ سحر مونځ (په اول وخت کښې) هم په تياره کښې اوکړو. دَ عندها نه مراد خارجاً منها دې چه مونږ دَ ښار دَ آبادئ نه بهر مونځ اداکړو.[2] صلاة الغداة دَ سحر دَ مونځ دَپاره صلاة الغداة لفظ استعمال کړو. په دې کښې دَ هغوی خلاف دَليل دې چه دَ سحر دَ مونځ دَپاره دَدې لفظ استعمال مکروه ګڼړي. امام نووي روضة الطالبين کښې ليکي چه سحر ته فجر او يا الصبح وائي. اودَدې وخت دَ غداة دَ شروع وخت دې. دَ سحر مونځ ته الغداة ونيل ناخوښه دې.[3]

**دَسحر دَمونځ وخت**: دَ سحر دَمونځ دَمستحب وخت باره کښې صاحب بداية المجتهد ليکي چه دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دَسحر دَمونځ مستحب وخت دادې چه اسفار يعني کله چه تياره اخوا شي اورڼا خوره شي نو دَسحر مونځ دې ادا کړې شي خو دَ ائمه ثلاثه په نيز دَ سحر دَمونځ مستحب وخت کښې ادا کولو دَپاره ضروري دی چه تغليس يعني په تياره کښې مونځ اداکړې شي.[4]

دَ احنافو دَمذهب باره کښې علامه شامي رحمه الله ليکلي دي چه دَ مونځ ګذار دَ پاره مستحب دی چه دَ سحر دَمونځ شروع او ختمول په اسفار کښې اوکړي اودَ اسفار حد دادې چه په داسې وخت کښې مونځ اداکړي چه دَ فساد په صورت کښې دا سړې دَ نمر دَ راختلو نه وړاندې اودس اوکړي او مسنون قراءت سره مونځ اداکړې شي. اودا حکم دَ يخنئ او ګرمئ په اعتبار سره مطلق دې بغير دَ مزدلفه نه چه هغه وخت به حاجي دَ سحر مونځ په تياره کښې ادا کوي.[5]

علامه انورشاه کشميري رحمه الله فرمائي چه دَراوي تغليس په خاص توګه سره ذکر کول لکه چه دا نوې خبره ګڼړلو مترادف ده دکوم نه چه معلومه شوه چه دَحضورپاك عام عادت مبارك غلس کښې دَ سحر مونځ اداکولو نه وو. بيا دا چه داسې کول دَغزوه دَ وجې نه ووچه دَمانځه نه زر فارغ شي او جهادکښې مشغول شي. نه دَدې دَپاره چه دَمانځه سنت هم دغه وو ځکه چه دَ سفر په حالت کښې وو او تول صحابه يوځائې کښې موجود وو. په داسې وخت کښې احناف هم دغه تعليم ورکوي. په دې موقع باندې حضرت رحمه الله اوفرمائيل که سل ځل هم دَحضورپاك په غلس کښې مونځ کول ثابت شي نوبيا احنافو ته څه مضر نه دي البته مضر هله دې چه هغوی سره دَ اسفار دَپاره څه حديث نه وی مبسوط امام محمد رحمه الله کښې دی چه که دَجمع خلق تول موجود وی نو دَ سحر په مونځ کښې تغليس اوکړئی او امام طحاوي رحمه الله اسفار په دې طريقه افضل اوګڼړلو چه دَمانځه شروع په غلس کښې وی او اختتام په اسفارکښې. حضرت شاه رحمه الله فرمائي چه زه هم مختار دَ طحاوي رحمه الله اختياروم. خاص کر په دې

---

[1]) التوضيح لابن ملقن: ۳۲۰/۵عمدة القاري: ۱۲٤/٤طبقات ابن سعد: ۱۰۶/۲سيرة ابن هشام: ۳۷۸/۳.

[2]) فتح الباري: ۶۳۳/۲إرشادالساري: ۳۲/۲.

[3]) روضة الطالبين كتاب الصلاة باب الأول في المواقيت: ۲۹۳/۱.

[4]) بداية المجتهد كتاب الصلاة الباب الأول في معرفة الأوقات، المسئلة الخامسة: ۹۷/۱.

[5]) الفتاوى الهندية كتاب الصلاة باب المواقيت: ۵۸/۱.

وجه هم چه هغه د امام محمد رحمه الله نه نقل دي او په دې کښې تول احاديث راجمع کيږي خکه چه بعض کښې د اسفارحکم دې او په څه کښې د غلس. هم د دې دپاره د فقه په کتب فتاوی کښې کوم د اسفار فضيلت ليکلې دې چه شروع هم په اسفارکښې وی او ختم هم په دې کښې وی. هم دا اختيارولوسره د غلس والااحاديث معمول بها نه پاتې کيږي بلکه چه کله مذکوره اسفار افضل گرځولې شي نودنبی کريم ﷺ اکثری عمل به مفضول گرځولې کيږي دکوم جرأت چه يو عاقل نه شی کولې. لهذا مختار امام طحاوی رحمه الله اولی بالقبول دې.[1]

**قوله: فركب نبي والله صلى الله عليه وسلم:** بيا نبی کريم ﷺ په سورلنی سور شو.

**حضورپاک په کوم ځناور سور شوې وو؟:** سورلی کومه يوه وه؟ علامه عينی رحمه الله ليکلی دی چه د يوضعيف حديث نه دا خبره معلوميږي چه په خرباندې سور وو. ليکن په ظاهره باندې دامعلوميږي چه حضورپاک په خر نه بلکه په اس باندې سور وو لکه چه د روايت راتلونکی الفاظو «أجري في زقاق خيبر حتى انحسر الإزار عن فخذه» نه معلوميږي. او بيا دواړه خبرې داسې جمع کيدې شی چه د محاصره په وخت په خرباندې سور وی او د حملې په وخت په اس باندې سور وی.[2]

**قوله: وركب أبوطلحة وأنا رديف أبي طلحة:** او ابوطلحه رضي الله عنه په (اس) باندې سور شو په داسې حال کښې چه زه هم هغه سره دهغه شاته سور شوم.

**ابوطلحة:** دا زيد بن سهل الانصاری رضي الله عنه دې. د دوی تذکره کتاب الوضوء باب الماء الذي يغسل به شعر الإنسان کښې تيره شوې ده. دا د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه د مور خاوند وو.[3] حضرت انس رضي الله عنه فرمانی چه زه د ابوطلحه رضي الله عنه رديف ووم. دې نه معلوميږي چه داسې سوريدل جائز دی په دې شرط چه سورلی دغه بوج اوچتولې شی.[4]

**قوله: فأجري نبي الله صلى الله عليه وسلم في زقاق خيبر:** بيا نبی کريم ﷺ خپله سورلی د خيبر په کوڅوکښې اوزغلوله. د أجري فعل مفعول به، مرکوبه دې. زقاق د زاء په ضمه سره دې د دې جمع أزقة اوزقان راځی. دا د مذکر اومؤنث دواړو دپاره استعماليږي.[5]

**قوله: ثم حسر الإزار عن فخذه:** راوی بيان کوی چه بيا حضورپاک د خپل پتون نه کپړه اخواکړه. په دې باره کښې مکمل تفصيل او جوابی احتمالات وراندې صفحاتوکښې تيرشو نور دا چه اشکالات هغه وخت کيږي کله چه حسر د ماضی معروف صيغه وی (سره د دې چه ماقبل کښې دا خبره تيره شوې ده چه حسر متعدی هم استعماليږي بيا هغه وخت هيڅ اشکال باقی نه پاتې کيږي).

---

[1]) أنوار الباري: ۱۲۵/۱۱فيض الباري: ۲۲/۲.

[2]) عمدة القاري: ۱۲٤/٤.

[3]) شرح الكرماني: ۳۱/٤عمدة القاري: ۱۲٤/٤.

[4]) فتح الباري: ۲۳۳/۲.

[5]) معجم الصحاح ص: ٤٥۳النهاية في غريب الحديث والأثر: ۷۲٦/۱.

ليكن دعلامه عينى رحمه الله د قول مطابق اوحافظ ابن حجر رحمه الله دا دماضي مجهول صيغه سره هم نقل دي. كه چرې داسې وى نو بياهم څه اشكال نه پاتې كيږى ځكه چه دغه وخت به ددې معنى وى چه به غير اختياري توګه باندې دحضورپاك د پتون نه ازار اخواشو. ددې معنى تائيد دمسلم رحمه الله او مسنداحمد د روايت نه هم كيږى لكه چه تيرشو بل د يو روايت مطابق لفظ خسر دې نه چه حسر كه چرې داسې وى نو بيا به هم ددې معنى هم هغه وى كومه چه دحَسر؟ او انحسر ده يعنى لرموالې (١)

**قوله::حتى إني أنظر إلى بياض فخذ نبي الله صلى الله عليه وسلم:** تردې چه ما دنبى كريم ﷺ دپتون سپينوالې هم اوليدلو. ددې نسخې مطابق خود أنظر لفظ دې. خود كشميهنى په روايت كښې لام تاكيدسره «حتى أني لأنظر» الفاظ دى. (٢)

**قوله::فلما دخل خيبر:** بياچه كله حضورپاك دخيبر په ښاركښې داخل شو. ددې نه معلوميږى چه لاړې كوڅې د خيبر دښار نه بهر وې نه چه داخل. (٣)

**قوله::قال: الله أكبر، خربت خيبر، إنا إذا نزلنا بساحة قوم، فساء صباح المنذرين** علامه ابن ملقن رحمه الله فرمانى چه ددې ځائى نه د جنګ په وخت د الله ﷻ د ذكر او تكبير اوچتولو مستحب كيدل معلوميږى اوداد آيت قرآنى موافق اوبرابردې. ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ (٤)

**قوله::خربت خيبر:** يعنى د خيبر ښار وران شو تباه شو په دې كښې فساد راغلو. د وخت نه وړاندې درسول الله ﷺ ددې قسم خبر وركول د غيب د خبرو (كومې چه د الله ﷻ دطرف نه معلومې شوې وې) خودلو سره متعلق دى يا دښه فال په خاطر دهغوى خلاف د بد دعاد قبيل نه دى. (٥)

**قوله::إنا إذا نزلنا:** ددې مطلب دادې چه كله مونږ د جنګ د پاره وركوزيږو.

**قوله::بساحة قوم:** د يوقوم په صحن كښې يعنى د كورونو مخې ته چه كوم خالى ځائى يا ميدان وى په هغه ځائى كښې چه كله مونږ داخليږو.

**قوله::ساحة الدار:** وانې چه دكور يوطرف نه ځائى. ددې جمع ساحات،سَاح او سُوح هم راځى. (٦)

علامه عينى رحمه الله ليكلى دساحة اصل معنى ده دمنازل په مينځ كښې خالى فضاء. البته روستو بيا دا د كور طرف يا اړخ او په تعميرباندې استعمال كړې شو؟(٧)

---

(١) فتح الباري: ٦٣٥/٢عمدة القاري: ١٢٥/٤تحفة الباري: ٢٩٣/١التوضيح لابن ملقن: ٣٢٦/٥.

(٢) فتح الباري: ٦٣٣/٢عمدة القاري: ١٢٥/٤.

(٣) شرح الكرماني: ٣١/٤عمدة القاري: ١٢٥/٤تحفة الباري: ٢٩٤/١.

(٤) الأنفال: ٤٥.

(٥) التوضيح لابن ملقن: ٣٢٦/٥عمدة القاري: ١٢٥/٤إرشادالساري: ٢٢/٢.

(٦) معجم الصحاح ص: ٥٢٢ لسان العرب: ٤١٩/٦.

(٧) عمدة القاري: ١٢٥/٤.

**فساء صباح المنذرين:** دَ ويريدونکو سحر خراب وی يعنی چه کله مونږ هم سحر په سحر يوقوم باندې حمله اوکړو نو دهغوی په زړونوکښې زمونږ ويره کينی. دکوم دَ وجې نه چه هغوی دَ مقابله طاقت نه لري او مونږ په هغوی باندې غالب راځو او هغوی له ماتې ورکوو.

**قوله:: قالها ثلاثا:** راوی وائی چه نبی کريم ﷺ دَتکبير نعره او مذکوره جمله درې ځل اوفرمائيله. په دې باندې صاحب التوضيح رحمه الله ليکلی دی په قرآن پاك کښې چه کوم دَ الله ﷻ ارشاد دې چه ﴿وَاذْكُرُوا اللهَ كَثِيرًا﴾ کښې دَ کثيراً دَ لفظ نه درې ځل شمير مراد کيدې شی لکه دَ سرکار دوعالم ﷺ عملی اقدام (يعنی درې ځل دا جمله لوستلو) نه په پوهه کښې راځی.[1]

**قوله:: وخرج القوم إلى أعمالهم:** علامه کرمانی رحمه الله ليکلی دی چه «إلى أعمالهم» کښې أعمالهم نه قبل مضاف محذوف دې. يعنی «إلى مواضع أعمالهم».[2]

په دې باندې علامه عينی رحمه الله فرمائی چه زما په نيز خو به مطلب دا شی چه «خرج القوم لأعمالهم التي كانوا يعملونها» چه خلق دَ خپلو خپلو کارونودَپاره تلل ځه چه هم هغوی کول. کلمه إلى دې ځائی کښې دَ لام په معنی کښې ده.[3]

**قوله:: فقالوا محمد:** اهل خيبر چه ځنګه نبی ﷺ او دَاسلام لښکر اوليدلو نوونی ونيل "محمد" "محمد" راغلو. لفظ محمد مرفوع دې دَخبرکيدو په بناء باندې چه په اصل کښې "هذا محمد" وو يا دَ فاعل کيدو په بنياد باندې "جاء" به دَ فعل محذوف خبر جوړيږی.[4]

**قوله:: قال عبدالعزيز: وقال بعض أصحابنا والخميس، يعني: الجيش** عبدالعزيز رحمه الله (راوی) فرمائی چه زما په ملګرو کښې چا روايت کولوسره (دې ځائی لفظ محمد) سره دَ والخميس لفظ هم ونيلې دې اودخميس مطلب جيش يعنی لښکر دې. يعنی راوی عبدالعزيز رحمه الله لفظ خميس دَ خپل استاذ حضرت انس رضي الله عنه نه نه دې اوريدلې بلکه دَخپل يو ملګری نه ئی اوريدلې دې.[5]

اوس دا ځوك سړې وو ؟ دَ هغه باره کښې امام بخاری رحمه الله دې ځائی کښې هيڅ وضاحت نه دې کړې ليکن کتاب صلاة الخوف کښې دذکرکړې شوی روايت مطابق دَعبدالعزيز رحمه الله ملګرې ثابت البنانی رحمه الله دې. په صحيح مسلم کښې هم دَدې روايت تخريج کړې شوې دې او يواحتمال دَ ابن سيرين رحمه الله هم دې لکه دَ بخاری کتاب المغازی باب غزوة الخيبر دَ روايت نه معلوميږی.[6]

---

[1] التوضيح لابن ملقن: ٣٢٧/٥.

[2] شرح الكرماني: ٣٢/٤.

[3] عمدة القاري: ١٢٥/٤|ارشادالساري: ٣٢/٢.

[4] شرح الكرماني: ٣٢/٤|الكوثر الجاري: ٥٤/٢.

[5] فتح الباري: ٦٣٤/٢.

[6] صحيح البخاري كتاب صلاة الخوف باب التكبير والغلس بالصبح رقم الحديث: ٩٤٧ وفي كتاب المغازي باب غزوة الخيبر رقم الحديث: ٤١٩٨ صحيح مسلم كتاب الجهاد غزوة الخيبر رقم الحديث: ١٣٦٥.

قوله:: يعني: الجيش: دا لفظ عبدالعزيز رحمه الله راوي يا دَ هغه نه پس راويانوكښې دَ چا كلام دې.([1])

جيش ته دخميس وئيلووجه: په اصل كښې دَ لښكر پنځه حصې وې: مقدمه ساقه قلب او جناحان. په دې پنځو حصوكښې دَ تقسيم دَ وجې نه جيش ته خميس وئيلې شی او دَ يو روايت مطابق دا تخميس الغنيمة نه دې.([2])

قوله:: قـال: فأصبناها عنوةً: دَ راوی بيان دې چه مونږ خيبر په طاقت سره فتح كړو نه چه په صلح سره. عنوة دعين فتح سره قهراً جهراً معنی كښې استعماليږی. علامه عينی رحمه الله ليكلی دی چه دَعنوة يوه معنی صلحا سره هم كولې شی. نو دغه وخت به دا لفظ دَ اضداد نه شميرلې شی ليكن ابوعمر ابن عبدالبر رحمه الله دا خبره صحيح گرځولې ده چه دَخيبر ټوله زمكه په غلبه سره فتح شوې نه چه په صلح سره.([3])

حضرت كشميری رحمه الله ليكلی دی چه دَ احنافو په نيز فتح خيبر عنوة او غلبة ده نه چه صلحاً خو دَ شوافعو په نيز په خيبر باندې فتح صلحاً ده. چنانچه داحديث دَ احنافو دليل دې. امام طحاوی رحمه الله په دې موضوع باندې مستقل باب قائمولوسره تفصيلی خبره كړې ده. حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه زه به په دې خبره ډير حيران پاتې كيدم چه په دې غزوه كښې خو ډيرزيات جنگونه شوی دی نوبيا دې ته څنگه صلحاً وئيلې شی. نوبيا روستو په ما داخبره واضح شوه چه په آخره كښې دَ صلح نوبت راغلې وو په دې وجه دا فتح صلحا سره تعبيركړې شوه او اوس ئې دَ شروع دَ حالاتو نه نظر گرځولې دې. والله اعلم.([4])

قوله:: فجمع السبي: بيا قيديان راجمع كړې شو. حضرت كشميری رحمه الله فرمائی چه دَ سبی نه مراد دَ يهوديانو ښځې اوماشومان وو نه چه دهغوی سړی. ددې دپاره چه دَخيبر يهود عرب وو او دَ احنافو په نيز په جنگ كښې دَعربو دپاره صرف دوه لارې وې چه يا خوهغوی اسلام قبول كړی اويا بيا هغوی قتل كړې شی.([5])

قوله:: فجاءدحية،فقال ياني الله! أعطني جـارية من السبي: نوحضرت دحيه رضي الله عنه (نبی كريم ﷺ له) تشريف راوړو اوعرض ئې اوكړو يا رسول الله! دقيديانونه ماته يوه وينځه راكړه.

دحية: دا دحيه بن خليفه بن فروه بن وفضالة بن زيد الكلبی رضي الله عنه دې. دَ دوی تفصيلی تعارف دكتاب بدءالوحی دَ شپږم حديث لاندې تيرشوې دې.([6])

قوله:: قـال: إذهب، فخذ جـارية: دَحضرت دحيه رضي الله عنه په غوښتنه باندې حضورپاك هغوی ته ارشاد اوفرمائيلو لاړشه او (خپل خان دپاره) يوه وينځه واخله.

---

[1]) فتح الباری: ۶۳۴/۲.

[2]) شرح الكرمانی: ۳۲/۴فتح الباری: ۶۳۴/۲ تحفة الباری: ۲۹۴/۱.

[3]) عمدة القاری: ۱۲۸/۴التوضيح لابن ملقن: ۳۲۷/۵.

[4]) فيض الباری: ۲۳/۲أنوارالباری: ۱۲۸/۱۱.

[5]) فيض الباری: ۲۳/۲أنوارالباری: ۱۲۸/۱۱.

[6]) كشف الباری كتاب بدء الوحی حديث:۶. ۵۱۸/۱.

**دَ غنیمت دَتقسیم نه وړاندې چاته دَ څه ورکولوحکم:** دې ځائې کښې یو سوال پیداکیږي چه دَ مال غنیمت دَ تقسیم نه وړاندې نبی کریم ﷺ حضرت دحیه کلبی رضی الله عنه ته دَ وینځې اخستلو حکم څنګه اوفرمائیلو؟

**دَ علامه کرمانی رحمه الله جواب:** دَدې اشکال جواب علامه کرمانی رحمه الله دا ورکړې دې چه حضورپاك په حیثیت دَ قاسم دَهغه حصه هغه ته خان له ورکړه اودَدې حضورپاك ته اختیارهم وو نو په دې کښې هیڅ داشکال خبره نشته دې.[1]

**دَعلامه عینی رحمه الله جواب:** دَ علامه کرمانی رحمه الله په دې جواب باندې علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا تسلی بخش جواب نه دې بلکه دې ځائې کښې نور ډیر ښکلې جوابونه موجوددی. ① ممکن ده چه حضورپاك هغه ته دَ وینځې اخستلو اجازت دَ تنفیل په توګه ورکړې وی نه چه دَ غنیمت په توګه اوداسې کول جائز دی. ② داهم ممکن ده چه دَحضورپاك دا فرمائیل په دې توګه وی چه دَ تقسیم غنائم نه پس به دَ خمس نه دا شمیرلې شی. ③ اوداهم ممکن ده چه هغه وخت اجازت ورکړې شو خکه چه په وخت دَتقسیم به دَهغه حصه متعین وی نودا وینځه به دَهغې نه منها کولې شی.[2]

**قوله: فأخذ صفية بنت حيي:** دَ رسول الله ﷺ دَ اجازت ورکولونه پس حضرت دحیه کلبی رضی الله عنه دَخپل خان دپاره صفیه بنت حي رضی الله عنها خوښه کړه.

**صفیه بنت حیي رضی الله عنها:** دا ام المؤمنین حضرت صفیه بنت حي رضی الله عنها ده. دَ دوی تذکره کتاب الحيض باب المرأة تحيض بعد الأفاضة کښې تیره شوې ده.[3]

**قوله: فجاء رجل إلى النبي صلى الله عليه وسلم فقال: يارسول الله! أعطيت دحية صفية بنت حيي سيدة قريظة والنضير، لا تصلح إلالك:** بیا یوسړې راغلو ونې ونیل یارسول الله! تاسو د قریظه او نضیر قبیلو شهزادګنی دحیه کلبی رضی الله عنه ته ورکړه حالانکه هغه خو صرف ستاسو لائق ده. هغه دَ یوعام بنده لائق نه ده. خکه چه هغه خانوادهٔ نبوت سره تعلق لری. په داسې توګه چه دَهغې نسب حضرت هارون علیه السلام سره ملاویږی اودَ یهودو دَ دوو لویو قبیلو بنوقریظه او بنو نضیر دَ سردار لور ده. او ډیره زیاته ښانسته اوښکلې ده اوبل طرف رسول الله ﷺ مبارك هم دَخپلو ښکلو اخلاقو دَ وجې نه دَ ټولو انسانانونه کامل انسان دې لهذا دغه قیدی ښځه تاسو سره کیدل پکاردی.[4]

**قوله: قال: ادعوه بها:** دَدې راتلونکی سړی خبره اوریدو سره نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو دحیه کلبی رضی الله عنه ته اووایئی چه صفیه بنت حي رضی الله عنها خان سره راوله راشه. نوخلقو هغه ته دنبی کریم ﷺ پیغام وراورسولو.

**قوله: فجاء: فلما نظر إليها النبي صلى الله عليه وسلم قال: خذ جارية من السبي غيرها:** چه کله حضرت دحیه کلبی رضی الله عنه حضرت صفیه رضی الله عنها سره «دَ حضورپاك په خدمت کښې»

---

[1] شرح الکرمانی:: ۳۲/٤.
[2] عمدة القاری: ۱۲۷/٤-۱۲٦.
[3] کشف الباری کتاب الحیض باب المرأة تحیض بعد الأفاضة.
[4] إرشادالساری: ۳۳/۲.

راؤرسیدو نوحضورپاك دَحضرت صفیه ﷛ طرف ته اوکتل (نو مخ او څهره ئې هم هغه شان اولیدله څنګه چه اوریدلې وو) نوحضرت دحیه کلبی ﷛ ته ارشاد اوفرمائیلو چه (دا پریږده) دې نه علاوه بله وینځه واخله.

**دَحضرت صفیه ﷛ دَ حضرت دحیه ﷛ نه واپس اخستلو حکمت:** کله چه حضرت رسول الله ﷺ دحیه کلبی ﷛ ته اوفرمائیل چه صفیه پریږده اودَدې په ځائې بله وینځه واخله نوهغه هم دغه شان اوکړه.

په دې باندې علامه کرمانی ﷫ یو اشکال ذکرکولوسره دَهغې درې جوابونه ذکرکړی دی چه کله حضورپاك حضرت دحیه ﷛ ته دَ هبه په توګه حضرت صفیه ﷛ ورکړه نو په هغې کښې څنګه او ولې رجوع اوکړه؟ رومبې جواب دا ورکړو چه تردغه وخته پورې هبه تامه نه وه شوې (لهذا دَ اشکال هیڅ خبره نشته) دویم جواب دادې چه حضورپاك ابوالمؤمنین دې اودَ پلار دَپاره جائز دی چه دَخپل اولاد په هبه کښې رجوع کول غواړی نو اودې کړې. او دریم جواب دا ورکړې شوې دې چه حضورپاك په هبه کښې رجوع نه ده کړې بلکه باقاعده ئې دَدحیه ﷛ نه حضرت صفیه ﷛ اخستې وه.(۱)

علامه سهیلی ﷫ فرمائی چه حضورپاك دَحضرت دحیه ﷛ نه حضرت صفیه ﷛ دَ تقسیم نه وړاندې واپس اخستې وه او څه ئې چه دَ بدل په توګه ورکړې وو هغه ئې دَعلی سبیل التنفیل ورکړې وو نه چه علی سبیل البیع.(۲)

علامه ابن حجر﷫ فرمائی چه دَحماد بن سلمه ﷫ کوم روایت په مسلم شریف کښې عن ثابت عن انس سره نقل دې په هغې کښې دی چه حضرت صفیه ﷛ دَحضرت دحیه کلبي ﷛ په حصه کښې راغلې وه او هم دَ ده په روایت کښې دی چه نبی کریم ﷺ دَ حضرت صفیه ﷛ په بدله کښې لس غلامان ورکړه او هغه ئې واخستله. په دواړو خبروکښې به تطبیق داسې وی چه په دې ځائې کښې دَهغه دَسهم نه مراد دَهغه هغه حصه ده کومه چه هغه پخپله دَ خان دَپاره خوښه کړې وه اوهغه داسې چه کله هغه دَ حضورپاك نه دَ یوې وینځې مطالبه اوکړه نو حضورپاك هغه ته دَ یوې وینځې دَاخستلو اجازت ورکړو. نوهغه حضرت صفیه ﷛ واخستله. په دې باندې نبی کریم ﷺ ته دا خبر ورکړې شو چه هغه خو یوه شهزادګئی ده اوداسې وینځې دَ مرتبې په لحاظ حضرت دحیه کلبی ﷛ په شان صحابه ته نشی ورکولې. ځکه چه په صحابه کراموکښې دَحضرت دحیه کلبی ﷛ دَ مرتبې نه دَ لوئې مرتبې صحابه موجود وو او په قیدیانوکښې دَ صفیه غوندې وینځې ډیرې کمې وې. دغه شان داسې وینځه حضرت دحیه کلبی ﷛ ته ورکولوسره دَ بعض زړه ماتیدل متوقع وو او نومصلحت عامه هم دغه وو چه دا دَحضرت دحیه ﷛ نه واپس واخستې شی اوبیا چه کوم عمل نبی کریم ﷺ اوکړو چه هغه ئې دَخپل خان دَپاره خاص کړه په دې کښې دَ ټولو رضا شامله شوه. دې ته په هبه کښې رجوع نه شی وئیلې.

او په دې باندې دَ اخستلو خرڅولو اطلاق کول هم مجازاً دی نه چه حقیقتاً. کیدې شی چه اول نبی اکرم ﷺ هغه ته دَحضرت صفیه ﷛ دَتره لور او دویم روایت کښې هغه ته دَ خاوند دَتره لور ورکړه

---

(۱) شرح الکرمانی: ۳۳/۴تحفة الباری: ۲۹٤/۱.

(۲) سبل الهدی والرشاد جماع أبواب سیرته فی المعاملات الباب الثانی فی شرائه وبیعه السادس فی اشترائه الحیوان متفاضلاً وامتاعه من التسعیر: ۲٤/۹.

اوبیاچه کله دهغه زړه خوشحاله نه شو نوهغه ته نی نور ډیر غلامان ورکړه. لکه چه دمسلم شریف په روایت کښې دی چه اووه غلامان ورکولوسره نی د هغه نه واخسته.[1]

**قوله:: قال: فأعتقها النبی صلی الله علیه وسلم وتزوجها** راوی (حضرت انس رضی الله عنه) فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت صفیه رضی الله عنها آزاده کړه او هغې سره نی نکاح اوکړه.

ابن ملقن رحمه الله لیکلی دی چه ددې نه معلومیږی چه د آقا دپاره خپله وینځه آزادولو سره نکاح کول مستحب دی او دداسې سړی دپاره به دده په دې عمل باندې دوچند اجر ملاویږی.[2]

لکه چه کتاب العلم کښې حدیث نبوی علیه السلام تیرشوی دې چه:

«قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: ثلاثة لهم أجران: رجل من أهل الکتاب، آمن بنبیه وآمن بمحمد صلی الله علیه وسلم، والعبد المملوك إذا أدی حق الله وحق موالیه، ورجل کانت عنده أمة یطؤها، فأدبها فأحسن تأدیبها، وعلمها فأحسن تعلیمها، ثم أعتقها فتزوجها، فله أجران».[3]

په مذکوره حدیث کښې د دریو کسانودپاره د دوچند اجر زیرې اوروليي شوې دې. په دې کښې دریم هغه سړې دې چاسره چه یوه وینځه وی هغه ته ده ادب اوخودلو او په ښه شان سره نی ورته اوخودلو هغې ته نی تعلیم ورکړو او ښه تعلیم ئی ورکړو بیائی هغه آزاده کړه اوبیائی هغې سره نکاح اوکړه.

حضرت کشمیری رحمه الله فرمائی چه دبعض اهل علم وینا ده چه څوك په دې شرط سره آزاد کړې شی چه ددغه آزادئی په وجه سره به هغه آزادونکی دې سره واده کوی. نو د نوی سر نه بیا د ایجاب اوقبول ضرورت نه پاتې کیږی بلکه داعتاق په الفاظوسره به ددوی نکاح منعقد شی.حالانکه دمذکوره حدیث الفاظ(فأعتقها النبی صلی الله علیه وسلم وتزوجها)نه معلومیږی چه د عقد نکاح دپاره به خان له ایجاب اوقبول ضروری وی. نفس اعتاق به د تزویج په خانی کیدې نه شی.[4]

**قوله:: فقال له ثابت: یا أبا حمزة، ما أصدقها؟ قال: نفسها، أعتقها وتزوجها** ثابت بنانی رحمه الله دحضرت انس رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه اې ابوحمزه! رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت صفیه رضی الله عنها ته دحق مهر په توګه څه ورکړې وو؟ نوحضرت انس رضی الله عنه اوفرمائیل چه دحضرت صفیه رضی الله عنها آزادول دهغې حق مهرګرځولې شوې وو.

حضرت کشمیری رحمه الله فرمائی حنفیه وائی چه صورت واقعه داسې وو چه حضرت صفیه رضی الله عنها د هارون علیه السلام د اولاد نه وه. په دې وجه حضورپاك په هغې باندې احسان اوکړو آزاده نی کړه. بیائی په معروف طریقه سره نکاح اوکړه اوچونکه حضرت صفیه رضی الله عنها د اعتاق د احسان په بدله کښې خپل حق مهر معاف کړو اوهیڅ نی وانخستل نوراوی دا داسې تعبیر کړل چه هم دغه آزادول ئی مهر شو.[5]

---

[1] فتح الباری غزوة خیبر رقم الحدیث: ۴۲۰۱، ۹/۵۹۶.

[2] التوضیح لابن ملقن: ۵/۳۳۰.

[3] صحیح البخاری کتاب العلم باب تعلیم الرجل أمته وأهله رقم الحدیث: ۹۷. نوټ: ددې مذکوره حدیث مکمل تخریج کشف الباری ۳/۵۹۰ کښې تیرشوی دې.

[4] فیض الباری: ۲/۳۲.

[5] أنوار الباری: ۱۱/۱۲۹-۱۲۸.

**قوله: قال نفسها:** دَ سائل په جواب کښې حضرت انس رضي الله عنه اوفرمائیل چه دَهغې ذات (یعنی آزادي) حق مهر وو. په دې باندې حضرت کشمیری رحمه الله فرمائی چه دا دَمال او انجام بیان دې یعنې چه کله حضور عليه السلام حضرت صفیه رضي الله عنها آزاده کړه اوهغې خپل مهر ساقط کړو نومهر بغیردَ هغې دَ ذات نه خان له څه څیز باقي پاتې نه شو خکه چه دَ سقوط مهر دَ وجې نه په ظاهری توګه دَ یوڅیز نه اخستل اوشو اونه ورکول بلکه هم دَ هغې ذات وو کوم چه ورکړې شو اوواخستې شو لهذا دا عرفی تعبیروو دَ یوفقهی مسئلې بیان نه وو. زما غالب ګمان هم دغه دې چه په دې واقعه کښې حضور عليه السلام اول حضرت صفیه رضي الله عنها آزاده کړه اوبیائی نکاح اوکړه دې دَپاره چه دَحدیث مطابق دَ مذکوره کتاب العلم دوچنده اجر حاصل کړې شي.([1])

علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی داکنایه ده دَ عدم مهر نه (یعنی حضور عليه السلام حضرت صفیه رضي الله عنها ته دَمهر په توګه څه څیز ورنه کړو او) دا په دې وجه باندې وو چه قرآن پاک کښې تصریح ده ﴿وَامْرَاَةً مُّؤْمِنَةً اِنْ وَّهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ﴾([2]) (یعنی الله ﷻ دَحضور عليه السلام دَپاره دغه مؤمنه ښځه هم حلال کړه چه خپل خان بغیردَ څه مهر وغیره نه دَحضورپاک دَپاره هبه کړي)، لیکن دَنکاح بغیردَ مهر جواز دَحضورپاک خصوصیت وو لکه چه وړاندې فرمائی ﴿خَالِصَةً لَّكَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ (چه مذکوره خبرې دَ حضور پاک دَخصوصیات نه دی په کوم کښې چه نور مؤمنان شامل نه دی)([3])

**ازادی (عتق) حق مهر جوړیدې شي که نه؟** دَمذکوره حدیث په دې مقام باندې یوه اختلافي مسئله داده چه یوه وینځه آزادول دَهغې حق مهر جوړیدې شي که نه؟ په دې باره کښې دَحدیث دَ ظاهری الفاظومطابق (چه عتق حق مهر جوړیدې شي) دَامام احمد رحمه الله اواحنافو نه امام ابویوسف رحمه الله مذهب دَ اودَهغو مستدل هم دغه حدیث مبارك دې. ([4])

اوددې په مقابله کښې جمهور ائمه دی([5]) په کوم کښې چه امام ابوحنیفه، امام مالك، امام شافعي، امام محمداو امام زفر رحمهم الله دی. ددوی په نیز عتق حق مهر نه شي جوړیدې. دَ جمهورو په نیز به دَحدیث باب مطلب داشی چه نبی کریم ﷺ اول حضرت صفیه رضي الله عنها آزاده کړه بیائی هغې

[1]) أنوارالباری: ۱۲۹/۱۱.

[2]) الاحزاب: ۵.

[3]) فضل الباری: ۵۰/۳.

[4]) المغنی لابن قدامة کتاب النکاح فصل إن ااتفق السید وأمته علی أن یعتقها وتزوجه نفسها: ۴۵۷/۹ المقنع والشرح الکبیر والإنصاف کتاب النکاح رقم المسألة: ۳۱۲۵ وإذا قال السید لأمته اعتقتک وجعلت عتقک صداقک: ۲۳۴/۲۰ کشف القناع عن متن الإقناع کتاب الصداق: ۱۱۹/۴ شرح الزرکشی علی مختصر الکرخی کتاب النکاح: ۱۲۳/۶.

[5]) فتح القدیر کتاب النکاح فصل فی الوکالة بالنکاح وغیرها: ۳۴۲/۳ بدائع الصنائع کتاب النکاح فصل مایصح تسمیة مهراً: ۴۹۹/۳ البحرالرائق کتاب النکاح باب المهر: ۲۷۵/۳ بذل المجهود کتاب النکاح باب الرجل یعتق أمته ثم یتزوجها: ۵۹۶/۷ حاشیة الدسوقی کتاب النکاح فصل فی أحکام الصداق: ۳۰۳/۲ مواهب الجلیل شرح مختصر الخلیل کتاب النکاح باب فی النکاح فصل: ۱۳۱/۵ بدایة المجتهد کتاب النکاح هل یصح أن یکون العتق صداقاً؟: ۲۴۰/۴ المهذب کتاب الصداق فصل العتق بشرط الزواج: ۱۹۷/۴ المجموع کتاب النکاح کتاب الصداق فصل وان اعتق رجل امته علی وإن یتزوج به: ۱۴/۱۸ الحاوی فی فقه الشافعی کتاب النکاح باب ماعلی الأولیاء: ۸۵/۹

سره دمهر نه بغير نكاح اوكړه او بغير د مهر نه نكاح كول د نبى كريم ﷺ د پاره جائز وه. د حضور ﷺ نه علاوه د بل چا د پاره جائز نه ده. دا د حضور ﷺ په خصوصياتو كښې شمير كړې شوې ده. (١)
ابن العربى رحمه الله ليكلى دى چه حضور پاك د نكاح په معامله كښې يو خصوصى او امتيازى شان لرى. داسې كول خو د حضور ﷺ د پاره جائز وو ليكن دهغوى ﷺ نه علاوه د بل چا د پاره داسې جائز نه وو. (٢) يو بل مطلب دا بيان كړې شوې دې چه حضور ﷺ هغه بغير د عوض نه آزاده كړه بيا هغې خپل خان حضور پاك ته هبه كړو په دې صورت كښې په حضور ﷺ باندې د مهر ادا كول ضرورى نه وو. د دې دليل د سورت احزاب هغه آيت دې په كوم كښې چه د حضور پاك خصوصيات شميرلې شوى دى او د هغه تولونه يو دا دې چه ﴿وَامْرَأَةً مُّؤْمِنَةً إِنْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ﴾ (٣) يعنى كه چرې يوه مؤمنه ښځه خپل ذات نبى اكرم ﷺ ته هبه كړى او حضور پاك هغه قبوله كړى هغه ښځه د حضور ﷺ د پاره حلاله ده يعنى هغې سره هم نكاح كيږى او د دې د پاره په حضور پاك باندې څه حق مهر هم واجب نه دې. (٤)
يو بل جواب وركړې شوې دې د حضرت انس رضي الله عنه دا وينا كول چه د حضرت صفيه رضي الله عنها ذات د هغې حق مهر وو د هغه د خپل خيال مطابق وو هغه دا خبره موصولاً نه ده بيان كړې. (٥) ليكن په دې جواب باندې حافظ ابن حجر رحمه الله رد كولو سره فرمائى: (٦) دا جواب صحيح نه دې ځكه چه دا الفاظ حضرت انس رضي الله عنه فرمائيلى پخپله د حضرت صفيه رضي الله عنها نه هم نقل دى. هغوى اوفرمائيل «أعتقنى النبى صلى الله عليه وسلم وجعل عتقى صداقى» د دې روايت تخريج المصنف كښې كړې شوې دې. (٧)
بل حافظ ابن صلاح رحمه الله فرمائى د دې حديث معنى داده چه عتق د مهر قائمقام شو سره د دې چه دا مهر جوړ نه شو. دا داسې دى لكه چه يو سړې اووائى «الجوع زاد من لا زاد له» يعنى اولږه د هغه سرى د پاره توښه ده چا سره چه څه توښه نه وى. (٨)

---

(١) شرح معانى الآثار كتاب النكاح باب الرجل يعتق أمته على أن أعتقها صداقها: ١٣/٢معالم السنن للخطابى ومن باب الرجل يعتق أمته ثم يتزوجها: ١-١٨٢ ١٨٣/٣المنهاج شرح صحيح مسلم كتاب النكاح أقل الصداق: ٢٢١/٩بذل المجهود كتاب النكاح باب الرجل يعتق أمته ثم يتزوجها: ٥٩٦/٧.

(٢) عارضة الأحوذى باب ماجاء فى الرجل يعتق الأمة ثم يتزوجها: ٣٢/٣.

(٣) الاحزاب: ٥.

(٤) معالم السنن للخطابى كتاب النكاح باب الرجل يعتق أمته ثم يتزوجها: ١٨٣/٣ شرح معانى الآثار كتاب النكاح باب الرجل يعتق أمته على أن أعتقها صداقها: ١٣/٢فتح البارى كتاب النكاح باب من جعل عتق الأمة صداقها رقم الحديث: ٥٠٨٦، ١٦١/١١ بذالمجهود كتاب النكاح باب الرجل يعتق أمته ثم يتزوجها: ٥٩٦/٧.

(٥) بذالمجهود كتاب النكاح باب الرجل يعتق أمته ثم يتزوجها: ٥٩٨/٧ فتح البارى كتاب النكاح باب من جعل عتق الأمة صداقها رقم الحديث: ٥٠٨٦، ١٦١/١١.

(٦) فتح البارى كتاب النكاح باب من جعل عتق الأمة صداقها رقم الحديث: ٥٠٨٦، ١٦١/١١.

(٧) المصنف لابن أبى شيبة كتاب النكاح باب فى رجل يعتق أمته ويجعل عتقها صداقها.

(٨) فتح البارى: ١٦١/١١.

**دامام ترمذی رحمه الله ديو سهو بيان:** په دې مقام باندې امام ترمذی رحمه الله «باب ماجآء في الرجل يعتق الأمة ثم يتزوجها» قائمولوسره دحضرت انس بن مالك رضي الله عنه حديث ذكركړې دې اودهغې نه پس ئې اوليكل «والعمل على هذا عند بعض أهل العلم من أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم وغيرهم، وهو قول الشافعي وأحمد وإسحاق» [1] يعنى د اصحاب رسول صلى الله عليه وسلم نه دبعض عمل هم په دې باندې دې (چه هغوى آزادى هم مهر گنړى) اوهم دا قول د امام شافعي رحمه الله امام احمد رحمه الله او إسحاق هم دې.
مطلب دا چه امام ترمذی رحمه الله په دې مقام باندې د امام شافعي رحمه الله اوامام احمد رحمه الله هم دا مذهب خودلې دې حالانكه دعتق مهر جوړيدو كنبې د جواز مذهب صرف دامام احمد رحمه الله دې د امام شافعي رحمه الله نه دې دهغه مذهب خو جمهورو سره يعنى دعدم جواز دې. ددې تصريح حافظ ابن حجر رحمه الله اوامام نووى رحمه الله كړې ده. [2]

**قوله:: حتى إذا كان بالطريق:** تردې پورې رسول الله صلى الله عليه وسلم هم په لار كنبې وو چه ام سليم رضي الله عنها د حضرت صفيه رضي الله عنها بناؤ سينگاركولوسره د نبى كريم صلى الله عليه وسلم دپاره ناوې جوړه كړه. "بالطريق" دې خانې باء د في په معنى كنبې ده. [3]

**د الطريق نه څه مراد دې؟:** په مذكوره روايت كنبې دى «إذا كان بالطريق» خو هم د بخارى په نورو رواياتوكنبې دې سره متعلق نور وضاحت دې مثلاً كتاب البيوع كنبې يو روايت دې: «فخرج بها حتى بلغنا سد الروحاء، حلت، فبنى بها» [4] يعنى د پړاؤ (ديرې اچولو خانې) نوم "سد الروحاء" وو. او په يوبل روايت كنبې دى «فخرج بها، حتى بلغ بها سد الصهباء حلت، فبنى رسول الله صلى الله عليه وسلم» [5] ددې روايت مطابق د ډيرې اچولو خانې نوم "سد الصهباء" وو نه چه "سد الروحاء".
د روايت دا اختلاف مخې ته كيخودلوسره به ترجيح كوم يوته وى؟ نو په دې باره كنبې تفصيل دادې چه علامه ابن ملقن رحمه الله علامه عينى رحمه الله علامه قسطلانى رحمه الله د كتاب الصلاة دمذكوره روايت په تشريح كنبې ددې مقام په مصداق كنبې "سد الروحاء" اختياركړې دې. [6] ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله او صاحب الكوثر الجارى علامه احمدبن اسماعيل الكورانى رحمهم الله ددې مصداق ترديد كولوسره د دغه مقام مصداق "سد الصهباء" اختياركړې دې. [7]

[1] جامع الترمذى كتاب النكاح باب ماجآء فى الرجل يعتق الأمة ثم يتزوجها رقم: ١١١٥.
[2] فتح البارى كتاب النكاح باب من جعل عتق الأمة صداقها رقم الحديث: ٥٠٨٦، ١٦١/١١ شرح النووى على صحيح مسلم كتاب النكاح، أقل الصداق: ٢٢١/٩..
[3] الكوثر الجارى: ٥٦/٢.
[4] صحيح البخارى كتاب البيوع باب هل يسافر بالجارية قبل أن يستبرئها رقم الحديث: ٢٢٣٥.
[5] صحيح البخارى كتاب المغازى باب غزوة خيبر رقم الحديث: ٤٢١١.
[6] التوضيح لابن ملقن: ٣٣٣/٥ عمدة القارى: ١٢٨/٤ إرشادالسارى: ٣٣/٢.
[7] فتح البارى كتاب المغازى باب غزوة خيبر رقم الحديث ٤٢١٢، ٦١١/٩-٦١٠ الكوثر الجارى: ٥٦/٢.

الروحاء، دَمديني نه مكې ته تلوسره دَ يو مقام نوم دې چه تقريبًا دَ ۳۰ نه ۳۹ ميل په فاصله باندې دې.
الصهباء، دَخيبر نه مدينې طرف ته تلوسره ۶ ميله فاصله باندې دَ يومقام نوم دې.[1]

**قوله:: سدالصهباء كښې دقيام موده:** دَ خيبر نه په واپسئ باندې مقام صهباء كښې نبى كريم ﷺ درې ورځې او درې شپې قيام اوكړو لكه چه كتاب المغازى كښې راتلونكى رواياتوكښې ددې تصريح موجود ده.[2]

**قوله:: جهزتها له أم سليم:** ام سليم رضي الله عنها دَحضرت صفيه رضي الله عنها بناؤ سينګار كولوسره دَ حضورپاك دپاره ناوې جوړه كړه. په مذكوره حديث كښې خودَ ام سليم رضي الله عنها دَدې پخپله دَ تيارولوحكم دې خودَ صحيح مسلم روايت كښې دى: «ثم دفعها إلى أم سليم، تصنعها له وتهيئها، قال: وأحسبه قال: وتعتد في بيتها».[3]

يعني نبى كريم ﷺ حضرت صفيه رضي الله عنها پخپله ام سليم رضي الله عنها طرف ته اوليګله چه هغه دې دَ دې بناؤ سينګار كولوسره تياره كړى. دَ راوى بيان دې چه زما ګمان دې حضرت صفيه دَ استبراء موده ام سليم رضي الله عنها سره مكمل كړه. تفصيل دَدې اجمال دادې چه حضرت صفيه رضي الله عنها قيدى وه. دَ آزادئ نه پس دَ نوى واده دَپاره استبراء رحم ضرورى وو اودا ورځې دَهغې دَ حيض دَ ورځو وو. دَ استبراء موده ام سليم رضي الله عنها سره تيره شوه. پس دَهغې نه هغې حضرت صفيه رضي الله عنها دَ شرعى حدود سره تياره كړه اودَ شب زفاف دَپاره نى دَ رسول الله ﷺ په خدمت كښې پيش كړه. دَ مذكوره حديث نه دَ شپې په وخت بى بى سره مجامعت معلوميږى اودَدې نه اخوا دَ نورو رواياتونه په ورځ كښې هم دَ مجامعت جواز ثابت دې.[4]

**قوله:: أم سليم:** دا ام سليم بنت ملحان رضي الله عنها ده دَحضرت انس رضي الله عنه مور ده. دَدې دَنوم باره كښې ډيرزيات اقوال دى په كوم كښې چه صحيح أنيسه ده. دَدې تفصيلى حالات كتاب العلم باب الحياء في العلم كښې تيرشوى دى.[5]

**قوله:: فأهدتها له من الليل:** بيا ام سليم رضي الله عنها هغه (تياره كړه) دَ شپې تيرولودَپاره نى رسول الله ﷺ ته اوليګله. أهدتها معنى زفتها ده. يعنى دَ شپې تيرولو دَپاره دَ شب زفاف دَپاره اوليګله.[6]

---

[1]) معجم البلدان باب الصاد والهاء: ۴۳۵/۳مجمع بحار الأنوار: ۳۷۳/۳النهاية لابن اثير: ۶۱/۲فتح الباري كتاب المغازي باب غزوة خيبر رقم الحديث: ۴۲۱۲، ۶۱۱/۹عمدة القاري: كتاب المغازي باب غزوة خيبر رقم الحديث: ۴۲۱۲، ۳۲۶/۱۷.

[2]) صحيح البخاري كتاب المغازي باب غزوة خيبر رقم الحديث: ۴۲۱۳-۴۲۱۲.

[3]) صحيح مسلم كتاب النكاح باب فضيلة إعتاقة أمته ثم يتزوجها رقم الحديث: ۳۴۸۵.

[4]) التوضيح لابن ملقن: ۳۳۳/۵شرح النووي على صحيح مسلم كتاب النكاح باب فضيلة إعتاقه أمته ثم يتزوجها رقم الحديث: ۳۴۸۵، ۲۲۶/۹.

[5]) كشف الباري: ۶۱۱/۴.

[6]) عمدة القاري: ۱۲۸/۴.

**قوله: فأصبح النبي صلى الله عليه وسلم عروسا:** پس نبی کریم ﷺ دَ وادہ دَ زلمی پہ حالت کښې سحر کړو. عروس دَ فعول پہ وزن باندې دَ وادہ دَزلمی او ناوې دواړہ دَ پارہ استعمالیږی. دَ فرق دَپارہ رجل عروس او امرأة عروس ونیلی شی اودَ نور التباس نہ دَ بچ کیدلودپارہ پہ ښځہ باندې دَ عروسة اطلاق کیږی. او عروس دَ سړی جمع عرس او عروس دَښځې جمع عرائس استعمالیږی.([1])

**قوله: فقال: من كان عنده شيء فليجيء به** بیاحضورپاك اعلان اوکړو چاسرہ چہ د خوراك څہ څیز وی هغہ راوړنی.دَمذکورہ روایت دَدې جملې آخری الفاظ "فليجيء به" دی. امام نووی رحمہ اللہ لیکلی دی بعض نسخوکښې دا صیغہ نون وقایہ سرہ "فليجئني به" هم مذکور دی.([2])

دَدې ځائې نہ دَنبی کریم ﷺ دَ ولیمې بیان دې دَ کومې صورت چہ دا شو چہ پخپلہ دَ نبی کریم ﷺ دَ طرف نہ دَدې ولیمې دَخوراك وغیرہ انتظام اونہ کړې شو بلکہ حضورپاك اعلان اوکړو کوم سړی سرہ چہ دَ خوراك څښاك څہ څیز وی هغہ دې راوړی او مونږ سرہ دې هم پہ یو دسترخوان باندې کینی اودې خوړی.

**ایا دَ نورو پہ مال باندې ولیمہ کولې شی؟** لامع الدراری کښې پہ دې موقع باندې یواشکال اودَهغې احتمالی جواب ذکرکړې شوې دې. یوہ نکتہ اوعلمی اړخ مخې نہ دَ راوستلو پہ غرض سرہ هغہ ذکرکولې شی. حضرت گنگوهی رحمہ اللہ فرمائی دَحضورپاك ﷺ دا اعلان کول پہ ظاهری اعتبارسرہ دَ خلق نہ کوزیدونکې نہ دې ځکہ چہ ولیمہ خو دَ خاوند دَ مال نہ کیږی او دَدې بی بی نہ علاوہ باقی ازواج المطهرات نہ دَ چا پہ ولیمہ کښې هم جضورپاك دَ چانہ څہ نہ دی اخستې. نودَدې بی بی د ولیمې دَپارہ ئې ولې داسې اوکړل؟ حالانکہ حضورپاك سرہ هم دَخوراك څښاك سامان موجود وو چنانچہ دا هم نہ شی ونیلې چہ حضورپاك سرہ بہ څہ نہ وو پہ دې وجہ ئې اعلان کولوسرہ راجمع کړل.

نو دَدې سوال جواب دادې چہ رسول اللہ ﷺ خالصة دَهغوی دَخپلو مالونونہ څہ نہ دی اخستې بلکہ دَ تقسیم غنائم نہ وړاندې چہ کوم مال دَ احتیاج دَپارہ ورکولې شی یا جدا کولې شی دَهغہ مال نہ ئې طلب کړې وو. اوداسې مال (کوم چہ دَ تقسیم نہ وړاندې ورکولې شی) حکم دادې چہ امام المسلمین داسې مال چہ کلہ دَ ضرورت نہ زیات وی واپس اخستې شی. چنانچہ رسول اللہ ﷺ هم دَدغہ مال دَپارہ اعلان اوکړو دَ کومې واپس کول چہ پخپلہ دَهغوی دَپارہ ضروری وو. اودا جملہ دَ احنافو پہ دې مسئلہ کښې دلیل دې چہ دَ غانمین دَپارہ دَتقسیم غنائم نہ وړاندې ملاویدونکې مال کښې ملکیت نہ ثابتیږی. ځکہ چہ کہ دَ هغوی ملکیت ثابتیدلو نوحضور بہ هغوی تہ دَمال ورکولونہ پس دَ واپس کولو مطالبہ نہ کولہ. پہ داسې حال کښې چہ پخپلہ حضورپاك غنی وو. اوکلہ چہ دا خبرہ ثابتہ شوہ چہ نبی کریم ﷺ اعلان کولوسرہ مال جمع کولوکښې حق بجانب وو نوداخبرہ هم معلومہ شوہ چہ دا ولیمہ خالصة دَ حضورپاك دَحق خمس نہ وہ چہ پہ مال غنیمت کښې دَ رسول اللہ ﷺ دَپارہ دَ اللہ ﷻ دَ طرف نہ مختص وو.([3])

---

[1] معجم الصحاح ص: ۶۸۹النهاية فی غریب الحدیث والأثر: ۱۸۱/۲عمدة القاری ۱۸۲/۴إرشادالساری: ۳۳/۲ شرح الکرمانی: ۳۳/۴.

[2] شرح النووی علی صحیح مسلم کتاب النکاح أقل الصداق: ۲۲۱/۹التوضیح لابن ملقن: ۳۳۴/۵عمدة القاری: ۱۲۸/۴.

[3] لامع الدراری مع الکنزالمتواری: ۴۵/۴-۴۴.

دحضرت گنگوهي رحمه الله كلام ختم شو په دې باندې شيخ الحديث رحمه الله ليكي چه حضرت گنگوهي رحمه الله د يو ډيرې باريك او اهم نكتې طرف ته اشاره كړې ده اوددې طرف ته هغه روايات هم دلالت كوى كوم چه په مسلم شريف او بيهقي وغيره كښې موجود دى چه حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه «من كان عنده فضل زاد فليأتنا به، فجعل الرجل يجئ بفضل التمر وفضل السويق وفضل السمن» الحديث (١) رسول الله ﷺ اعلان فرمائيلې وو چه كوم سړى سره (دهغه دحاجت نه) زياتى توښه وى هغه دې ماله راوړى، چنانچه چا (دخپل حاجت نه) زياتى كهجورې راوړې ياچا زياتى اوړه راوړل او چا زياتى غورى راوړل راغلو.

شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چه دا خبره دحضرت گنگوهي رحمه الله ذكركړې خوده مگر ټول شراح بخارى په كلامونوكښې معروف خبره هم هغه ده كومه چه د ظاهر الفاظو نه معلوميږى چه د حضورپاك په اعلان باندې دصحابه كرامو رضي الله عنهم څيزونه راوړل هم دخپل مال نه اوپه توګه د تبرع وو. (٢)

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى په دې حديث شريف كښې په دې خبره باندې دلالت دې چه يولونى سړى له په خپلو ملګرو باندې يقين كول پكاردى او د ضرورت په وخت په خپل احوال كښې دخپلو ملګرونه د ضرورت څيز غوښتل پكاردى. او په دې خبره باندې هم دلالت دې چه د يو سړى دملګرو دپاره مستحب دى چه د خپل ملګرى په وليمه وغيره كښې دهغه امداد اوكړى. (٣)

تقرير بخارى شريف كښې شيخ الحديث رحمه الله يوه بله خبره فرمائى "فليجئ به" دا ددې وجې نه وو چه حضورپاك وليمه اوكړى څكه چه كور خوئى وونه چه كورته ئى اوړلې وې اووليمه ئى كړې وې. (٤)

**قوله: وبسط نِطَعاً:** اوحضورپاك دسترخوان خوركړو.په نطع كښې څلورقسمه لغات دى نِطَع دنون كسره اوطاء فتحه سره.نِطْع دنون كسره اوطاء سكون سره، نَطْع دنون اوطاء فتحه سره اونَطَع د نون فتحه اوطاء سكون سره.په دې ټولو كښې افصح رومبې لغت دې يعنى نِطَع ددې جمع نُطُوع او أنطاع راځى د نطع استعمال دهغه څرمن دپاره كيږى كومه چه د پهانسئى په وخت دمقتول لاندې خورولې شى اودغه شان د څرمن د سترخوان دپاره هم كولې شى دلته هم په دغه دويمه معنى كښې لستعمال شوې دې. (٥)

**قوله: فجعل الرجل يجئ بالتمر وجعل الرجل يجئ بالسمن:** نو چا (زياتى) كهجورې راوړې اوچا (زياتى) غورى راوړل راغلل. ماقبل كښې د صحيح مسلم د روايت په حواله سره داخبره مخې ته راغلې ده چه د حضورپاك د طرف نه دهغوى دزياتى توښې راوړلو اعلان اوكړې شو او اصحاب رسول ﷺ خپل خان نه كوم زياتى د ضرورت سامان وو هم هغه راوړل (٦)

---

(١) صحيح مسلم كتاب النكاح باب فضيلة اعتاقه أمته رقم الحديث: ٣٥٧٤السنن الكبرى للبيهقى كتاب النكاح باب تادى حق الوليمة بأى طعام رقم الحديث: ١٤٨٩٧، ٢٥٩/٧جامع الأصول رقم الحديث: ٨٩٥٠، ٤١٣/١١.

(٢) الكنزالمتوارى: ٤٥/٤-٤٤.

(٣) شرح الكرمانى: ٣٤/٤.

(٤) تقرير بخارى شريف: ١٢٩/٢.

(٥) معجم الصحاح ص: ١٠٤٩مجمع بحار الأنوار: ٧٢٤/٤المعجم الوسيط ص: ٩٣٠عمدة القارى: ١٢٨/٤شرح الكرمانى: ٢٤/٤.

(٦) صحيح مسلم كتاب النكاح باب فضيلة إعتاقه أمته رقم الحديث: ٣٥٧٤.

**قوله:: قَال: وأحسِبُه قد ذکر السویق**: راوی اووئیل زما ګمان دې چه حضرت انس رضی الله عنه ستوان (راوړلو) هم بیان فرمائیلې وو. په دې جمله کښې دَ قَال فاعل عبدالعزیز بن صهیب رحمه الله دَ حدیث راوی دې. اوأحسِبُه دَ "ه" ضمیر او "ذکر" ضمیر مرجع حضرت انس رضی الله عنه دې.
علامه کرمانی رحمه الله دَدې جملې تشریح کولوسره فرمائی چه دَ راوی دَ دغه ګمان په صورت کښې دَ سابقه دواړو جملو نه پس دا جمله وی. «وجعل الرجل یجیء بالسویق». یو بل احتمال دَ ضمائر په مراجع کښې داهم کیدې شی چه دَ قال فاعل امام بخاری رحمه الله وی او دا جمله دَفربری رحمه الله وی او أحسبه ضمیر "ه" مفعول مرجع یعقوب وی. لیکن احتمال اول راجح دې او دویم کښې تکلفات بعید اختیارول دی.([1])

**قوله:: فحاسواحیساً**: (کله چه صحابه کرامو رضی الله عنهم دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په اعلان باندې دَ خپل ضرورت نه زیاتی دخوراك څیزونه راوړل، نوهغوی کهجوري غوړي او ستوان خپل مینځ کښې یوځائی کړل حیس نی تیارکړو (او په یوځائی اوخوړلو). دَ حاسوا مطلب دې چه هغوی جمع کیدونکی څیزونه یوبل سره ګډوډ کړل ملاؤ نی کړل اودهغې نه ملید شان تیار شو کوم ته چه په عربی کښې حیس وائی. ([2])
حضرت کشمیری رحمه الله فرمائی چه په اردو ژبه کښې دَدې لفظ ترجمه حلوه یا ملیده ده. ([3])

**قوله:: فکانت ولیمة رسول الله صلی الله علیه وسلم**: نوبس دا دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارکه ولیمه وه. کَانَت دَ فعل ناقص ضمیر کوم چه دکانت اسم دې دَحیس طرف ته راګرځی او ولیمة دَخبرکیدو دَ وجې نه منصوب دی. مطلب دَدې جملې دادې چه کهجوري ستوان او غوړي یوځائی کولوسره تیاره شوې هم حلوه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ولیمه وه. دَدې نه علاوه دَ بل هیڅ څیز اهتمام نه ووکړې شوې. ([4])

**قوله:: ولیمة**: ولیمه الولم نه مشتق دې دَدې معنی دَ جمع کیدلو ده. چونکه ولیمه دَ ښځې خاوند جمع کیدو، یوځائې کیدو نه پس وی په دې وجه دې ته ولیمه وائی. دَ ولیمې دَ افضل وخت باره کښې مختلف اقوال دی. دَ راجح قول مطابق شب زفاف نه پس افضل ده.([5])
دَولیمې سره متعلق دَاحکامو تفصیلی بحث به په خپل مقام باندې راځی. خو بیاهم په دې مقام باندې دَ لطیفې په توګه دَمختلف دعوتونودپاره په عربی ژبه کښې استعمالیدونکی مختلف الفاظ ذکرکولې شی:

**ولیمة**: دَ واده خوراك، **وکیرة** دَمکان دَتعمیر نه په فراغت باندې دَ خوشحالئی خوراك. **خُرْس**: دَ ولادت دَ خوشحالئی خوراك. **أعذار**: دَ سنت دَخوشحالئی خوراك. **نقیعة**: دَ سفر نه واپس راتلو دَوخت خوراك. **نزل**: دَ میمله دَ رومبنی میلمستیا خوراك. **وضیعة**: دَ مصیبت دَ اخوا کیدو دَ وخت خوارك

[1] فتح الباری:۱/۶۲٤دارالمعرفة. عمدة القاری: ۱۲۸/٤شرح الکرمانی: ۲٤/٤إرشادالساری: ۳٤/۲.
[2] المحکم لابن سیده الماده: الحاء والسین والیاء: ۳۲۵/۳معجم الصحاح ص: ۲۷۷النهایة فی غریب الحدیث والأثر لابن الاثیر: ٤۵۸/۱التوضیح لابن ملقن: ۳۳٤/٤فتح الباری: ۶۲٤/۱عمدة القاری: ۱۲۹/٤ إرشادالساری: ۳٤/۲.
[3] فیض الباری: ۲٤/۲أنوار الباری:۱۳۰/۱.
[4] التوضیح لابن ملقن: ۳۳۵/٤فتح الباری: ۶۲٤/۱عمدة القاری: ۱۲۹/٤ إرشادالساری: ۳٤/۲.
[5] فتح الباری: ۲۸۷/۹ إعلاء السنن کتاب النکاح باب استحباب الولیمة: ۹/۱۹ عمدة القاری: ۱۳۱/٤.

**مأدُبة**: دَ هريو دعوت په وخت تیاریدونکې خوراك. **قِرِي**: دَميلمه دَ هر يو خوراك نوم. **جَفَلي**: عمومي دعوت. **نَقَرِي**: خصوصي دعوت. **خُرسه**: دَ ښځې دَ بچي راوړو دَ وخت خوراك[1]

**دَ حديث مبارک نه مستفاد امور**: دَمذکوره طويل حديث مبارك نه ډيرزيات احکام اوفوائد معلوميږي. په کوم کښې چه ډير زيات خو ذکرشوي هم دي او دَډيرو وضاحت به په متعلق مقاماتوکښې راځي. دلته خلاصةً مستنبط کيدونکي فوائد ذکرکولې شي.

① دَسحر مونځ ته صلاة غداة په نوم سره ذکر کول هم جائز دي.

② دَ سحر دَ مونځ اصل وخت مستحب خو په يوه اندازه رڼا کيدو وخت دې. ليکن دَ ضرورت په وخت کله چه ټول مونځ گذار موجود وي نوهغه وخت په تياره کښې مونځ کول هم صحيح دي.

③ په يوځناور باندې دَ دوو نه زيات کسان سوريدل هم صحيح دي. په دې شرط چه ځناور طاقت لري.

④ دَ جنگ په وخت دَ تکبير نعره اوچتول او دَ الله ﷻ ذکر کول مستحب دي.

⑤ تکبير هم درې ځل ونيل مستحب دي.

⑥ دَ ضرورت په وخت يعنى په جنگ کښې دَ اس دَ تربيت په وخت، دَ قتال وغيره دَ تربيت په وخت، اس زغلولوسره په مرتبه کښې لوئي سړو او شخصيات نه وړاندې کيدل بې ادبى نه ده.

⑦ دَ راجح مذهب مطابق پټون په ستر کښې داخل دې لکه چه دَ دلائلو نه واضح شوي.

⑧ دَ آقا خپله وينځه آزادولوسره هم هغې سره نکاح کول مستحب دي او په دې عمل کښې دَ دغه آقا دپاره دوچند اجر دې.

⑨ دَ يومصلحت عظيمه په وخت چاته ورکړې شوې څيز واپس اخستل هم جائز دي.

⑩ دَ شپې په وخت شبِ زفاف يعنى بي بي سره مجامعت کول جائز دي اودغه شان دَ ورځې هم جائز دي.

⑪ په واده کښې وليمه کول مطلوب اوممدو دي.

⑫ دَ وليمې دپاره څه چه حاضر وي کافي اوخوښ کړې شوي دي. دَ څه لوئي پروگرام انتظام او غوښتې کيدل ضروري اولازمي نه دي اودَدې دَ پاره قرض اخستل ډيرزيات ناخوښه او مکروه عمل دې.

⑬ دَدې حديث مبارك نه دا هم معلوميږي چه لوئي سړې دَ خپلو ملگرو په محبت باندې اعتماد کولوسره بې تکلف دَهغوی نه خوراك وغيره غوښتلې شي.

⑭ دَ يوسړي دَ ملگرو گاونډيانو او تعلق لرونکو دپاره دَ خپل ملگرى امداد کول مستحب دي.[2]

**دَ روايت ترجمة الباب سره مناسبت**: ترجمة الباب وو «باب مايذكر في الفخذ» او په روايت کښې دَ حضرت انس رضي الله عنه جمله «وإن ركبتي لتمس فخذ النبي صلى الله عليه وسلم، ثم حسر الإزار عن فخذه النبي صلى الله عليه وسلم، حتى أنظر إلى بياض فخذ النبي صلى الله عليه وسلم» تيرشو او په دواړوکښې مطابقت بالکليه ښکاره دې.

---

[1] اوجزالمسالک کتاب النکاح باب ماجاء في الوليمة: ٢١/١٠ عمدة القاري: ١٣١/٤ انوارالباري: ١/١٣١.

[2] عمدة القاري: ٢٣١/٤-١٢٩ التوضيح لابن ملقن: ٣٣٥/٤-٣١٦ شرح الکرماني: ٣٥/٤.

# ۱۲- باب: فِي كَمْ تُصَلِّي ٱلْمَرْأَةُ مِنَ الثِّيَابِ

## وَقَالَ عِكْرِمَةُ: لَوْوَارَتْ جَسَدَهَا فِي ثَوْبٍ لَأَجَزْتُهُ.

## دا باب دې په هغه باره کښې چه ښځه په څومره کپړو کښې مونځ کولې شي.

## په مذکوره عنوان کښې

**بابٌ** تنوین سره دَ مبتدا محذوف خبر دې. یعنی (هذاباب). دویمه خبره داده چه "کم" استفهامیه وی یا خبریه دا دَ کلام صدارت غواړی خودلته "کم" نه اول فی دې. دَدې جواب دادې چه دې ځانی کښې دَ "کم" صدارت باطل نه شو ځکه چه جار مجرور دَ یوې کلمې په حکم کښې وی. (۱)

**دَترجمة الباب مقصد:** حضرت حسین احمدمدنی رحمه الله فرمانی چه دَدې ترجمة الباب نه مقصد دادې چه ترديې وخته پورې په مانځه کښې دَ سرو دَ لباس اوستر بیان وو. دَدې ځائی نه دَ ښځو دَ ستر اولباس بیان دې. دغه شان دَدې خبرې بیانول هم مقصود دې که چرې ښځه یو لونی څادر ځان نه راتاو کړی اومونځ اوکړی چه په هغه څادرکښې دَهغې پوره بدن پټ شوې وی نوداسې کول جائز دی دَهغې مونځ به اوشی لکه چه دَتعلیق او حدیث الباب نه معلومیږی. (۲)

**تعليق: وقال عكرمة: لووارت جسدها في ثوب لأجزته:** حضرت عکرمه رحمه الله اوفرمائیل چه که چرې څوك ښځه هم په یو (لونی) څادر کښې خپل بدن پټ کړی نو زه به په هغه (کپړه کښې مونځ کول) جائز ګرځوم.

**دَ تعليق تخريج:** دَحضرت عکرمه رحمه الله دا قول امام بخاری رحمه الله تعلیقًا بیان کړې دې اودا قول موصولاً المصنف لابن عبدالرزاق او لابن ابی شیبه کښې موجوددې. (۳)

مکمل روایت دادې: ((عبدالرزاق عن يحيى بن أبي كثير عن عكرمة قال: لو أخذت المرأة ثوبًا، فتقنعت به، حتى لا يرى من شعرها شيء، أجزأ عنها مكان الخمار)) (۴) مراد دادې چه که څوك ښځه یو (لونی) کپړه واخلی په هغې کښې خپل بدن اونغاړی، ترديې چه دَهغې دَویښتونه هم څه نه ښکاری نوهم دا کپړه به دَ پرونی یا لوپټې په ځائی باندې شي.

هم المصنف لابن عبدالرزاق کښې یوبل روایت دې: ((عبدالرزاق عن معمر عن يحيى بن أبي كثير قال: سئل عكرمة أتصلي المرأة في درع وخمار؟ قال: نعم، إذا لم يكن شفافًا)) (۵) یعنی مراد دادې چه دَحضرت عکرمه رحمه الله نه تپوس اوکړې شو چه آیا ښځه صرف په قمیص یا پرونی کښې مونځ کولې شي؟ نوهغوی جواب ورکړو چه او، اداکولې شی په دې شرط چه دا کپړې باریکې (دکومې نه چه دَ بدن څرمن یا ویښته

---

(۱) شرح الکرمانی: ۳٤/٤ عمدة القاری: ۱۳۱/٤ إرشادالساری: ۳٤/۲ الکوثر الجاری: ۵۷/۲.

(۲) تقریر حسین احمدمدنی رحمه الله غیر مطبوع.

(۳) تعلیق التغلیق باب فی کم تصلی المرأة من الثیاب: ۲۱۵/۲-۲۱٤ عمدة القاری: ۱۳۱/٤ التوضیح لابن ملقن: ۳۳۷/۵.

(۴) المصنف لعبدالرزاق کتاب الصلاة باب فی کم تصلی المرأة من الثیاب رقم الحدیث: ۵۰٤۷، ۳/ ٤٤.

(۵) أيضاً رقم الحدیث: ۵۰٤۸، ۳/ ٤٤.

ښکاري) نه وي. او په المصنف لابن ابى شيبه کښې دي: «حدثنا أبوأسامة، عن الجريري، عن عكرمة قال: تصلى المرأة فى درع وخمار حصيف»[1] يعني حضرت عكرمه رحمه الله او فرمائيل چه ښځه په داسې قميص او پړونې کښې مونځ کولې شي چه مضبوط پېړ وي (دکوم نه چه رنګ نه ښکاري). په يوبل روايت کښې دي: «حدثنا وكيع قال: حدثنا أبان بن صمعة، عن عكرمة، عن ابن عباس قال: لابأس بالصلاة فى القميص الواحد إذا كان صفيقاً»[2] دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه هغوى فرمائي چه صرف په يوقميص کښې مونځ کولوکښې څه حرج نشته که دغه قميص دَ پيړې کپړې وي. په يوبل روايت کښې دي: «أبوأسامة، عن الجريري، عن عكرمة، أنه لايرى بأساً بالصلاة فى القميص الواحد خصيصاً»[3] يعني حضرت عکرمه رحمه الله هم په يو قميص کښې چه دَ پيړې کپړې وي مونځ کولوکښې هيڅ حرج نه ګڼړلو.

**قوله:: لو وارت جسدها**: دَ وارت معنى ده سترت او غطّت يعني که ښځه خپل بدن پټ کړى ([4]).

**قوله:: لأجزته**: دکشميهنى په روايت کښې داسې دى. اصيلى او ابن عساکر په روايت کښې دَدې کلمې په ځائې دَجاز لفظ دې.([5])

**عكرمة**: دامشهورامام حديث اوتفسير ابوعبدالله عكرمه مولى عبدالله بن عباس مدنى رحمه الله دي. دَدوى تفصيلى تعارف كتاب العلم باب قول النبى ﷺ: اللهم علمه الكتاب کښې تيرشوې دې. ([6])

**دَ تعليق ترجمة الباب سره مناسبت**: په ترجمة الباب کښې وو چه ښځه په څومره کپړوکښې مونځ کولې شي. نو په مذکوره تعليق سره ئې دې طرف ته اشاره اوکړه که چرې هم په يوه کپړه کښې پوره بدن پټولو سره مونځ اوکړې نومونځ به ئې اوشي.

## حديث الأول

[٣٦٥] - حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، قَالَ: أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ، أَنَّ عَائِشَةَ، قَالَتْ: لَقَدْ «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْفَجْرَ، فَيَشْهَدُ مَعَهُ نِسَاءٌ مِنَ الْمُؤْمِنَاتِ مُتَلَفِّعَاتٍ فِي مُرُوطِهِنَّ ثُمَّ يَرْجِعْنَ إِلَى بُيُوتِهِنَّ مَا يَعْرِفُهُنَّ أَحَدٌ»[7] [٨٣٢،٨٢٣،٥٥٣]

---

[1]) المصنف لابن أبى شيبة كتاب الصلاة باب المرأة فى كم ثوب تصلى، رقم الحديث: ٦٢٣٧، ٣٣٢/٤.

[2]) المصنف لابن أبى شيبة كتاب الصلاة باب الصلاة فى الثوب الواحد، رقم الحديث: ٦٢٤٦، ٣٣٤/٤.

[3]) المصنف لابن أبى شيبة كتاب الصلاة باب الصلاة فى الثوب الواحد، رقم الحديث: ٦٢٥٥، ٣٣٥/٤.

[4]) التوضيح لابن ملقن: ٣٣٩/٥ عمدة القارى:: ١٣١/٤.

[5]) إرشادالسارى: ٣٤/٢ فتح البارى: ٦٢٥/١.

[6]) كشف البارى: ٣٦٣/٣.

[7]) رواه البخارى فى مواقيت الصلاة باب وقت الفجر رقم الحديث: ٥٧٨ وفى صفة الصلاة باب انتظار الناس قيام الإمام العالم، رقم الحديث: ٨٦٧ وباب سرعة إنصراف النساء من الصبح وقلة مقامهن فى المسجد رقم الحديث: ٨٧٢ ومسلم فى المساجد باب استحباب التكبير بالصبح فى أول وقتها رقم الحديث: ١٤٥٧- ١٤٥٩ وأبوداؤد فى الصلاة باب وقت الصبح رقم الحديث: ٤٢٣ والترمذى فى الصلاة باب فى التغليس فى الفجر رقم الحديث:

**ترجمه:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه حضورپاك به دَ سحر مونځ كولو نوځه مسلمانانې ښځې به هغوی سره دَ سحرمانځه (جمع كيښې) شريكيدلې اوهغوی به په خپلو څادرونوكښې رانغښتې شوې وې. بيا (دَمونځ نه پس) هغوی به دَ خپلو كورونوطرف ته واپس كيدلې نوچابه هغوی نه شوې پيژندلې.

## تراجم رجال

**ابواليمان:** دا ابواليمان حكم بن نافع بهراني حمصي رحمه الله دې. دَدوی تفصيلی حالات كتاب بدء الوحی دَ شپږم حديث لاندې تيرشوی دی.(1)

**شعيب:** دا ابوبشر شعيب بن ابی حمزه القرشي الاموی رحمه الله دې. دَدوی تفصيلی حالات كتاب بدء الوحی دَ شپږم حديث لاندې تيرشوی دی.(2)

**زهري:** دا ابوبكر محمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب بن عبدالله لوئی الزهری المدنی رحمه الله دې. دَ دوی حالات كتاب بدء الوحی باب كيف كان بدء الوحی دَ دريم حديث لاندې تيرشوی دی (3)

**عروة:** دا عروه بن الزبير بن العوام رحمه الله دې. دَ دوی حالات كتاب بدء الوحی دَ دويم حديث لاندې تيرشوی دی.(4)

**عائشة:** دا ام المؤمنين حضرت عائشه بنت ابی بكر صديق رضي الله عنها ده. دَ دوی حالات كتاب بدء الوحی دَ دويم حديث لاندې تيرشوی دی.(5)

## شرح حديث

**قوله:: فيشهد معه نساء من المؤمنات:** يشهد دَ يحضر په معنی كښې دې اونساء دَ امرأة جمع ده من غير لفظه.(6) مطلب دادې چه مؤمنې ښځې به دَ سحردَ مانځه په جمع كښې حاضريدلې.

**قوله:: متلفعات في مُروطهن:** هغه ښځې به په خپلو څادرونوكښې رانغښتې وې. دا جمله دَ نساء نه حال جوړيدو سره واقع شوې ده. اكثر شارحين داتركيب بيان كړې دې.(7) ليكن صاحب الكوثر الجاری رحمه الله په دې باره كښې ليكلی دی: ((ويروي منصوباً على الحال من النساء، وليس بقوي، لأن ذا الحال إذاكان نكرة يجب تقديم الحال عليه)) او متلفعاتٍ دَ نساء نه حال واقع كيدو په وجه منصوب دې حالانكه داخبره

---

153والنسائی فی المواقيت باب التغليس فی الحضر رقم الحديث: 547-546وابن ماجة فی كتاب الصلاة باب وقت صلاة الفجر رقم الحديث: 669والمؤطا فی وقت الصلاة باب وقوت الصلاة: 5/1جامع الأصول كتاب الصلاة الفرع الثانی فی تقديم أوقات الصلوت رقم الحديث: 3283،223/5.

(1) كشف الباری:479/1.

(2) كشف الباری:479/1.

(3) كشف الباری:326/1.

(4) كشف الباری:291/1.

(5) كشف الباری:291/1.

(6) التوضيح لابن ملقن: 340/5عمدة القاری: 132/4إرشادالساری: 35/2.

(7) شرح الكرمانی: 34/4إرشادالساری: 35/2عمدة القاری: 132/4.

مضبوطه نه ده ځکه چه کله ذوالحال نکره وی نو په هغې باندې حال مقدم کول ضروری وی.[1]
دعلامه کرمانى رحمه الله ددې خبرې جواب داورکولې شی چه دا قاعده مُسلم ده ليکن په دې باندې عمل هغه وخت ضروری وی کله چه ذوالحال نکره محضه وی. اوکله چه په دې حديث کښې نساء نکره محضه نه ده بلکه نکره مخصوصه ده يعنى ددې صفت من المؤمنات مذکوره دې. دکوم په وجه چه په دلته مذکوره قاعده نه شی جاری کولې. والله اعلم بالصواب.
متلفعات کښې دويم احتمال دصفت دې يعنى دا جمله به نساء ته صفت واقع کيږى او مرفوع به وی يعنى متلفعات.[2]
دمذکوره جملې رومبى لفظ داصيلى په روايت کښې متلففات دې دفاء تکرار سره ليکن دواړه الفاظ په يوه معنى کښې دی، مقصود کښې دې تغيرسره څه فرق نه پريوځى.[3]

**قوله:: مُروطهن:** دا جمع دمِرط ده ددې معنى ده وړنى يا دريښم هغه څادر چه دقميص په ځائى باندې اغوستلې شى. البته ددې څادرخصوصيت دادې چه دادشين رنګ وی اوهم دښځو داستعمال وی.[4]

**قوله:: ثم يرجعن إلى بيوتهن:** بيا به هغه ښځې دجمات نه کورته واپس کيدلې.

**قوله:: مايعرفهن أحد:** هيچابه نه پيژندلې. مطلب دا چه کله به هغوی دمونځ نه فارغ شوې اوکورونوته به واپس کيدلې نو دهغوی په کتلو به چا پيژندلې نه شوې چه دا ښځې دی که سړی؟ کتونکوته به صرف شك معلوميدلو. هم دصحيح بخارى په دويم روايت کښې تصريح ده «لايعرفن من الغلس» يعنى دهغوی پيژندګلو به دتيارې دوجې نه نه کيدله.[5] په اصل کښې په دې مقام باندې دغه ښځې نه پيژندل ددوو وجوهاتو احتمال لرى چه ددې سبب به تياره وه که پردې کولو کښې به ښه مبالغه کول.[6]

**دحديث مبارک ترجمة الباب سره مناسبت:** دمذکوره حديث ترجمة الباب سره مناسبت «متلفعات فی مروطهن» کښې دې هغه داسې چه په ترجمة الباب کښې وو چه ښځه په څومره کپړوکښې مونځ اداکړی نوهغه به صحيح شی، او په دې جمله کښې دی که په يولونى څادرکښې اونغښتلې شى اومونځ اوکړی نو مونځ به ئې اوشى. ځکه چه مرط ديو څادردپاره استعماليږى.[7]
دامام بخارى ددې روايت نه اوددې نه دوراندې دحضرت عکرمه رحمه الله ذکرکړې شوې روايت نه په دې خبره باندې استدلال کول دی چه دښځې مونځ په يوه کپړه کښې کيږى په دې شرط چه په هغې کښې د

---

[1] الکوثرالجارى: ۵۷/٤.
[2] شرح الکرمانى: ۳٤/٤ارشادالسارى: ۳۵/۲.
[3] عمدة القارى: ۱۳۲/٤الکوثرالجارى: ۵۷/۲ أوجزالمسالک رقم الحديث: ٤، ۲۷۲/۱.
[4] معجم الصحاح ص: ۹۵۱النهاية لابن الأثير: ۶۰۷/۲شرح الکرمانى: ۳٤/٤التوضيح: ۳٤۰/۵فتح البارى: ۶۲۵/۱
[5] صحيح البخارى کتاب مواقيت الصلاة باب وقت الفجر رقم الحديث: ۵۷۸.
[6] التوضيح: ۳٤۱/۵فتح البارى: ۶۲۵/۱الکوثرالجارى: ۵۸/۲ نوټ: ددې مسئلې تفصيل وړاندې دسحر دمونځ افضل وخت کوم يودې دعنوان لاندې راځى.
[7] عمدة القارى: ۱۳۲/٤تقريربخارى شريف: ۱۲۹/۲.

دي ټول بدن پټ وى. دا اعتراض کونکو په نيز قابل اعتراض دي چه دادي روايت نه استدلال تام نه دي ځکه چه عين ممکن دى چه دغه ښځو د دي څادرونولاندي نوري کپړي هم اغوستي وى لکه زمونږ په زمانه کښي چه د برقي لاندي نور لباس استعمالولو رواج دي.(١)

نوددي جواب دا ورکړي شو چه دا څه وزنداره اعتراض نه دي ځکه چه دحديث د ظاهر نه هم دغه معلوميږى چه دهغوى په بدنونو به هم هغه يويوڅادر وو اوددي تفتيش نه دحضورپاك خاموشى اختيارول هم ددي خبري دليل دي چه هم په يوه لويه کپړه کښي د پټيدو په حالت کښي د ښځو مونځ صحيح کيږى.(٢)

**دښځودپاره دمانځه په حالت کښي څومره کپړي ضروري دي؟** دښځود مانځه دصحت د پاره څومره کپړي ضروري دى؟ په دي باره کښي اختلاف دي. امام بخاري رحمه الله د صنيع تعليق او روايت نه معلوميږى چه دهغوى په نيز په يولوئى څادر کښي انغښتلو سره دمونځ کولو په صورت کښي د جواز والاصورت دي. د بل فريق په نيز د سرى او ښځي د مونځ د صحت دپاره د دوو کپړوکيدل ضروري دى. ددريم فريق په نيز ددريو کپړو کيدل ضروري دى اود څلورم فريق په نيز د څلورو کپړو کيدل ضروري دى. د دويم فريق قائلين امام ابوحنيفه رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله دي. او ددريم فريق قائل حضرت عطاء رحمه الله دي. اود څلورم فريق ابن سيرين رحمه الله دي. ابن المنذر رحمه الله وائي چه په ښځه باندي خپل ټول بدن پټول واجب دى بغيرد مخ او لاسونونه. اوس که دا پټول په يوه کپړه سره اوشى اوکه په زياتوسره برابر دى. دمتقدمين د طرف نه په دي باره کښي هيڅ امر قطعي د دريو يا څلورو باره کښي نه دي نقل او دا اختلاف استحبابى دي يعنى څومره کپړي مستحب دى.(٣)

حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى په دي سلسله کښي د جمهورو مذهب دادي چه څومره کپړه دهغي د ستر د پاره کافي وى هغه دي استعمال کړي اود بعض رائي ده چه دوه کپړي دي واخلى اود بعض رائي ده چه دري دي واخلى. دغه شان يو قول د څلورو کپړو داخستو هم دي. د ښځي ټول بدن ستر دي ((الا الوجه والکفين واختلف فى القدمين)).(٤)

**په مونځ کښي په ښځه باندي څومره بدن پټول ضروري دى؟** د احنافو په نيز دښځي ټول بدن بغيرد مخ لاسونو او قدمونود ظاهر نه ستر دي. امام مالك رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله صرف دوه اجزاء مخ او لاسونه مستثنى ګرځوى. ددي دوارو حضراتو په نيز د ښځي قدم (خپي) واجب الستر دى که په مانځه کښي د ښځي قدمونه ښکاره وى نوداامام مالك رحمه الله په نيز د مونځ په وخت کښي دننه د دغه مونځ واپس راګرځول واجب دى اود امام شافعي رحمه الله په نيز که وخت باقى وى اوکه نه وى څه راګرځول ضروري دى.(٥)

**دسحر دمونځ افضل وخت کوم يودي؟** په مذکوره حديث کښي چه به ښځود سحر مونځ کولونه

---

(١) الكوثرالجاري: ٥٨/٢.

(٢) فتح البارى: ٦٢٥/١عمدة القارى: ١٣٣/٤إرشادالسارى: ٣٥/٢.

(٣) شرح ابن بطال: ٣٧/٢عمدة القارى: ١٣٣/٤.

(٤) تقرير بخارى شريف: ١٢٩/٢.

(٥) الدرمع الرد كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب فى ستر العورة: ٢٩٨/١-٢٩٧المجموع شرح المهذب كتاب الصلاة باب ستر العورة: ١٦٧/٣المغنى لابن قدامة كتاب الصلاة باب سترالعورة فى الصلاة وحدها: ٣٣٧/١-٣٣٦ المواهب الجليل كتاب الصلاة فصل فى ستر العورة: ٩/٢.

واپسې کوله نوهغوی به چا نه شوې پيژندلې.دَ دې جملې دَ وجې نه دَسحر مونځ مستحب اوافضل وخت کښې دَ ائمه کرامو اختلاف دې. په دې باره کښې رومبې خبره خوداده چه دَ سحر دَمونځ دَ وخت په جوازکښې اختلاف نه دې هغه خودَ ټولوائمه حضراتو په نيز دَسحردَراختونه ترنمرراختو پورې دې(١)
البته اختلاف دَ هغه نه په افضل وخت کښې دې چه دَ سحر دَ مونځ اول وخت يعنې په تياره کښې کول افضل دی يا په آخر وخت يعنی په رڼاکښې کول افضل دی. په دې باره کښې دَ مذاهب تفصيل څه دا شان دې. که چرې آسمان صفا وی يعنی اوريځې نه وی نودَاحنافو په نيز دَ سحر مونځ په رڼاکښې کول دَ تيارې نه په کولوکښې افضل دې که په سفر کښې وی اوکه په حضر کښې، که دَ ګرمئی موسم وی اوکه دَ يخنئی، اودا حکم دَ ټولو خلقو په حق کښې دې. سوا دَ حاجې نه چه دَهغه دَپاره په مزدلفه کښې په تياره کښې مونځ کول په رڼاکښې دَ مونځ کولو نه افضل دې.(٢)
امام طحاوی فرمائی که دَ سحرپه مونځ کښې دَ اوږد قراءت اراده وی نو بياغوره خبره داده چه مونځ په تياره کښې شروع کړې شی اوپه رڼاکښې دې پوره کړی اوکه چرې دَ اوږد قراءت کولو اراده نی نه وی نوبيا دَداسې سړی په حق کښې هم اسفار يعنی په رڼاکښې افضل دې دَ تغليس په ځائې.(٣)
علامه انورشاه کشميری رحمه الله فرمائی دَاحنافو نه امام ابوحنيفه رحمه الله او امام ابويوسف رحمه الله مذهب دا دې چه دَ سحردَمونځ شروع او ختمول هم په اسفارکښې کول افضل دی اودَ امام محمد رحمه الله مذهب دې چه شروع په تياره کښې اوختمول په رڼاکښې افضل دی.همدا امام طحاوی رحمه الله اختيارکړی دی(٤)
ائمه ثلاثه (امام مالک رحمه الله امام شافعی رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله) په نيز دَ سحر دَمونځ شروع او ختمول دواړه هم په تغليس کښې کول افضل دی.(٥)
**دَ احنافو دلائل:** په دې مسئله کښې دَ احنافو مذهب دَ صحيح احاديثو نبويه ﷺ او آثار صحابه رضی الله عنهم نه ثابت دې.
**رومبې دليل:** دَاحنافو دَ ټولو نه رومبې دليل دَ حضرت رافع بن خديج رضی الله عنه روايت دې کوم چه اصحاب سنن الاربعه اودَهغوی نه علاوه په خپل کتب کښې په صحيح سند سره نقل کړې دې.(٦) زمونږ مستدل

(١) بدائع الصنائع كتاب الصلاة فصل فى شروط الصلاة: ١/٥٥٩-٥٥٨.
(٢) بدائع الصنائع كتاب الصلاة وأما شرائط الأركان: ١/٥٧١فتح القدير كتاب الصلاة فصل فى استحباب التعجيل: ١/٢٢٧حاشية ابن عابدين كتاب الصلاة مطلب فى طلوع من مغربها: ٢/٢٤دارعالم الكتب تبيين الحقائق كتاب الصلاة الأوقات التى يستحب فيها الصلاة: ١/٢٢١.
(٣) شرح معانى الأثار كتاب الصلاة باب الوقت الذى يصلى فيه الفجر. أى وقت هو؟: ١/١٣٤.
(٤) العرف الشذى كتاب الصلاة باب ماجاء فى التغليس بالفجر رقم الحديث: ١٥٣، ١/٢٠٠.
(٥) الذخيرة كتاب الصلاة الفصل السادس فى وقت الصبح: ٢/٢٩ مواهب الجليل لشرح مختصر الخليل كتاب الصلاة مواقيت الصلاة: ٢/٣٤المدونة الكبرى كتاب الصلاة فى الأوقات: ١/٥٧-٥٦المجموع شرح المذهب كتاب الصلاة باب مواقيت الصلاة: ٢/٥٣روضة الطالبين كتاب الصلاة الباب الأول فى المواقيت: ١/٢٩٣ الحاوى فى فقه الشافعى كتاب الصلاة باب صفة الأذان وما يقام له من الصلاة ولايؤذن: ٢/٦٤ المغنى لابن قدامة كتاب الصلاة فصل مايستحب من تعجيل الصلاة: ٢/٢٤الإنصاف للمرداوى كتاب الصلاة باب شروط الصلاة: ٣/١٦٦ المبدع شرح المقنع كتاب الصلاة شروط الصلاة: ١/٣٠٧.
(٦) سنن الترمذى كتاب الصلاة باب ماجاء فى التغليس بالفجر رقم الحديث: ١٥٤ سنن أبوداؤد كتاب الصلاة باب فى وقت الصبح رقم الحديث: ٤٢٤سنن النسائى فى المواقيت باب الأسفار رقم الحديث: ٥٤٩ سنن ابن ماجة كتاب

داحديث محمدبن اسحاق او محمدبن عجلان په طرق سره نقل دي. امام ترمذى رحمه الله د محمدبن اسحاق رحمه الله په طرق سره اوباقى ائمه د محمدبن عجلان رحمه الله په طريق سره روايت كړى دي. ابن القطان رحمه الله په خپل كتاب كښې د محمدبن عجلان رحمه الله د طريق باره كښې ليكلى دى ((طريقه طريق صحيح))[۱]، لهذا د احنافو مستدل مذكوره حديث د محمدبن عجلان رحمه الله په طريق سره به مراد وى: ((عن محمدبن عجلان عن عاصم بن عمر عن محمود ابن لبيد عن رافع بن خديج، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: أسفروا بالفجر، فإنه أعظم للأجر)) يعنى رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلي د سحر مونځ په رڼا كښې كوئى، پس تحقيق دا د اجر په اعتبار سره ډير زيات دي.

هم دا روايت ابن حبان رحمه الله دي الفاظو سره تخريج كړى دي: ((أسفروا بصلاة الصبح فإنه أعظم للأجر))[۲] او امام طحاوى رحمه الله په دي الفاظو سره تخريج كړى دي: ((أسفروا بالفجر فكلما أسفرتم، فهو أعظم للأجر أوقال لأجوركم))[۳]. اوبزار رحمه الله د حضرت انس رضى الله عنه روايت په دي الفاظو سره نقل كړى دي: ((أسفروا بصلاة الفجر، فإنه أعظم للأجر))[۴].

اوامام طحاوى رحمه الله د حضرت جابر رضى الله عنه حديث نقل كړى دي: ((قال: كان عليه السلام يؤخر كاسمها)) شرح معاني الأثار كتاب الصلاة باب الوقت الذي يصلى فيه الفجر: ۱۳۳/۱. هم د شرح معانى الأثار يو روايت كښې دى: ((قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: أصبحوا الصبح، فكلما أصبحتم، فهو أعظم للأجر)) شرح معاني الأثار كتاب الصلاة باب الوقت الذي يصلى فيه الفجر: ۱۳۲/۱. مطلب د دي دا دي چه د سحر مونځ څومره رڼا كولوسره اوكړي شى هم دومره به اجر زيات ملاويږى. حالانكه د تيارې ختميدونه پس چه كله سحر واقع كيږى نوددې نه پس په هغه رڼا كښې نور زياتوالي نه كيږى. نومقصود په دې خانى كښې د دې مسئلې مبالغة په ښه شان سره واضح كوى.

د رافع بن خديج رضى الله عنه د مذكوره روايت باره كښې امام ترمذى رحمه الله فرمانى ((حديث حسن صحيح))[۵]، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمانى ((صححه غيرواحد))[۶].

علامه زيلعى رحمه الله ليكى امام نسائى رحمه الله داروايت په صحيح سند سره نقل كړى دي[۷]، علامه هيثمى رحمه الله ليكلى دى چه بزار رحمه الله دا روايت كړى دي اود دې ټول رجال ثقه دى[۸]. علامه هيثمى رحمه الله د رافع بن خديج رضى الله عنه د اسفار باره كښې نور دوه روايتونه نقل كړى دى اود هغې نه پس ئې فرمائيلي

---

الصلاة أبواب مواقيت الصلاة باب وقت صلاة الفجر رقم الحديث: ۶۷۲جامع الأصول كتاب الصلاة القسم الأول فى الفرائض وأحكامها، الفصل الثانى فى المواقيت الفرع الرابع فى أول الوقت بالصلاة رقم الحديث: ۳۳۲۹، ۲۵۲/۵.

[۱]) نصب الراية للزيلعى كتاب الصلاة فصل الحديث الثانى عشر: ۲۳۵/۱العرف الشذى كتاب الصلاة باب ماجاء فى التغليس بالفجر رقم الحديث: ۱۵٤، ۲۰۱/۱.

[۲]) صحيح ابن حبان كتاب الصلاة باب مواقيت الصلاة رقم: ۱٤۹۱.

[۳]) شرح معانى الأثار كتاب الصلاة باب الوقت الذى يصلى فيه الفجر: ۱۳۲/۱.

[۴]) مسند البزار مسند أبى حمزة أنس بن مالك رضى الله عنه رقم الحديث: ٦٢٤٤، ۳/ ۳۵۰.

[۵]) سنن الترمذى كتاب الصلاة باب ماجاء فى التغليس بالفجر رقم الحديث: ۱۵۳.

[۶]) فتح البارى لابن حجر كتاب مواقيت الصلاة باب وقت الفجر رقم الحديث: ۵۷۸، ۲/ ۷۳.

[۷]) نصب الرايه كتاب الصلاة فصل الحديث الثانى عشر: ۱/ ۲۳۵.

[۸]) مجمع الزوائد ومنبع الفوائد، كتاب الصلاة باب وقت الصلاة الصبح: ۳۱۵/۱.

دى: ((وهما من رواية هرير بن عبدالرحمن بن رافع بن خديج وقد ذكرها ابن أبي حاتم ولم يذكر في أحد منهما جرحًا ولا تعديلاً، قلت: وهرير ذكره ابن حبان في الثقات، وقال يروي عن أبيه)) [۱]

**دويم دليل:** داحنافو دويم دليل دَحضرت ابوبرزه رضي الله عنه حديث دي كوم چه امام بخاري رحمه الله او امام مسلم رحمه الله نقل كړي دي: په هغې كښې دي (أن النبي صلى الله عليه وسلم كان ينصرف من صلاة الغداة حين يعرف الرجل جليسه)) [۲] ددې حديث مطلب دادې چه نبي كريم صلى الله عليه وسلم به كوم وخت دَ سحر مونځ مكمل كولو نو هغه وخت به سړي خپل ځان سره ناست بل مونځ گذار پيژندلو چه هغه څوك دې.

اوس دلته دَ غور كولوخبره داده چه په هغه زمانه كښې بجلي وغيره خو وه نه مسجدنبوى كچه او وړوكې وو نو په وجه دَ ټيټو ديوالونو او بنكته چتونو به تياره تر ډيره وخته پورې وه په داسې حالاتوكښې دَ مانځه نه فارغيدو وخت كښې دَ يوبل دَ شكل اوصورت پيژندلو مطلب دادې چه بنه ډيره رڼا به شوې وه. تردې چه دننه ماحول كښې به هم دَ يوبل پيژندگلو كول په آسانتى سره ممكن كيدل.

**دريم دليل:** دَ احنافو دريم دليل دَحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث دې كوم چه شيخينو حضراتو روايت كړې دې:-

(عن ابن مسعود قال: مارأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم صلى لغير وقتها إلا بجمع، فإنه جمع بين المغرب والعشاء بجمع، وصلى صلاة الصبح من الغد قبل وقتها)) [۳]

دا الفاظ دَ سنن ابى داؤد دى. مطلب دَحديث دادې چه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمانى چه مانبى كريم صلى الله عليه وسلم چرې نه دې ليدلى چه هغوى مونځ دَ خپل وخت نه بغير اداكړې وى سوا دَ مزدلفه دَ سحر چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دَ مزدلفه مابنام او ماسخوتن جمع كړل او وړاندې راتلونكې سحر نى دَ سحر مونځ دوخت نه وړاندې اداكړو. دَ وخت نه وړاندې مطلب دادې چه روزانه دَ مونځ كولوكوم وخت وو دهغې نه وړاندې اوهغه وخت په عام توگه باندې دَاسفار وخت كښې اداكول وو. او خاص په هغه ورځ نى په تياره كښې مونځ كړې وو په دې وجه نى اووئيل چه دَ وخت نه وړاندې اداكړو. دا مطلب نى نه دې چه دَ سحر دَ وخت داخليدلونه وړاندې نى كړې [۴] ددې نور وضاحت هم دَ صحيح بخارى يو روايت سره كيږى په كوم كښې چه دى: ((فلما طلع الفجر قال: إن النبي صلى الله عليه وسلم كان لا يصلي هذه الساعة إلا هذه الصلاة في هذا المكان من هذا اليوم)) [۵] ارشاد نى اوفرمانيلو چه كله سحر راوختلو ... الخ راوى اوفرمانيل بيشكه نبى كريم صلى الله عليه وسلم هغه وخت (يعنى دَ سحر راختو نه پس زر په تياره كښې) مونځ نه كولو مگر دا مونځ صرف په هغه ورځ او هغه ځائى (يعنى مزدلفه) كښې اوكړو. دَ ابن مسعود رضي الله عنه دَ مذكوره روايت نه معلوميږى چه دَ حضورپاك صلى الله عليه وسلم معمول په رڼاكښې دَ مونځ كولو او مونځ وركولو

---

[۱] مجمع الزوائد ومنبع الفوائد، كتاب الصلاة باب وقت الصلاة الصبح: ۳۱۶/۱.

[۲] صحيح البخارى كتاب الأذان باب القراءة فى الفجر رقم الحديث: ۷۷۱صحيح مسلم كتاب الصلاة باب معرفة الركعتين رقم الحديث: ۶۴۷

[۳] صحيح البخارى كتاب المناسك باب من يصلى الفجر بجمع رقم الحديث: ۱۶۸۲.

[۴] العرف الشذى أبواب الصلاة ماجاء فى الإسفار بالفجر رقم: ۱۵۴. ۲۰۲/۱أوجزالمسالك كتاب وقوت الصلاة رقم الحديث: ٤. ۲۷٤/۱تبيين الحقائق كتاب الصلاة: ۲۲۲/۱.

[۵] صحيح البخارى كتاب الحج باب من أذن وأقام لكل واحدة منهما رقم الحديث: ۱۶۷۵.

وو. په دغه خاص ورځ دَ معمول خلاف عمل مخې ته راغلو نو صحابی رسول ﷺ هغه بیان کړو.
**څلورم دلیل:** دَ احنافو څلورم دلیل هغه حدیث شریف دې په کوم کښې چه حضرت جبرائیل علیه السلام رسول الله ﷺ ته دَمانځه دَ وختونو تعلیم ورکړو. دَدې په آخره کښې دَ سحردَوخت باره کښې دَ راوی بیان دې چه «ثم صلی الصبح حین اسفرت الأرض» (۱) او هم دغه روایت په ابوداؤد شریف کښې دې دکوم الفاظ چه دادی: «صلی بی الفجر فأسفر» (۲) اوپه مستدرک للحاکم کښې ذکرشوی روایت کښې دی: «ثم جآءه الصبح حین أسفر جدا» دَدې حدیث شریف په آخره کښې امام حاکم رحمه الله فرمانی: «هذا حدیث صحیح مشهور من حدیث عبدالله بن المبارك» (۳) حافظ ابن حجر رحمه الله تلخیص الحبیر کښې دَ امام ترمذی رحمه الله کلام نقل کړې دې چه «قال محمد: حدیث جابر أصحُّ شیء فی المواقیت» (۴)
**پنځم دلیل:** دَاحنافو پنځم دلیل دَ ابراهیم نخعی رحمه الله قول دې کوم چه په صحیح سندسره امام طحاوی رحمه الله اوابن ابی شیبه رحمه الله نقل کړې دې. «ما اجتمع أصحاب محمد صلی الله علیه وسلم علی شیء ما اجتمعوا علی التنویر» (۵) یعنی اصحاب رسول ﷺ په یوامرباندې داسې نه دی جمع شوی لکه چه دَ سحر په رڼاکښې په مونځ کولوچه راجمع شوی دی. امام طحاوی رحمه الله لیکلی دی دا خبره څنګه صحیح کیدې شی چه صحابه کرام رضی الله عنهم دَحبیب پاك ﷺ خلاف په یوامرباندې راجمع شی. (۶)
**دَ ائمه ثلاثه دلیل:** دَ ائمه ثلاثه رحمهم الله مذهب په دې مسئله کښې دادې چه دَ سحرمونځ په تیاره کښې کول غوره دی. دَدې حضراتو دلیل هغه روایت دې کوم کښې چه حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائیلی چه کله به ښځو مونځ اوکړو او واپس به دَ کورونوطرف ته تللې نوچا به هغوی نه پیژندلې اوداسې به دَ تیارې دَ وجې نه کیدل.
**دَ ائمه ثلاثه دَ دلیل دَ احنافو دَ طرف نه دوىمبې جواب:** دَ احنافو دَ طرف نه دَ دې حدیث نه دَ دلیل نیولو په نه صحیح کیدو باندې مختلف جوابونه ورکړی دی. دَ ټولو نه اول خو په دې خبره ځان پوهه کول پکار دی چه دَصحیح بخاری په موجوده مقام کښې دَمذکوره حدیث شریف آخری جمله (دکوم نه چه دلیل نیولې شی) الفاظ دادی: «ما یعرفهن أحد» (۷) چه چا به هغوی پیژندلې نه خو هم دغه حدیث په نورو مقاماتوکښې دې نوهلته آخری الفاظ دادی: «لا یعرفهن أحد من الغلس» (۸) یوبل ځائی کښې دی «لا یُعرَفن من الغلس» (۹)

(۱) سنن الترمذی کتاب الصلاة باب ماجآء فی مواقیت الصلاة رقم الحدیث: ۱٤۹.
(۲) سنن أبی داؤد کتاب الصلاة فی المواقیت رقم الحدیث: ۳۹۳.
(۳) المستدرک علی الصحیحین کتاب الصلاة باب فی مواقیت الصلاة رقم الحدیث: ۷۰٤.
(٤) تلخیص الحبیر کتاب الصلاة باب أوقات الصلاة رقم الحدیث: ۲٤۲، ۱/٤٤۷.
(۵) شرح معانی الآثار کتاب الصلاة الوقت الذی یصلی فیه الفجر: ۱/۱۳۶ المصنف لابن أبی شیبة کتاب الصلاة أوقات الصلاة باب من کان ینوربها ویسفر ولا یری به بأساً رقم الحدیث: ۳۲۷۵، ۳/۱۳۰.
(۶) شرح معانی الآثار کتاب الصلاة الوقت الذی یصلی فیه الفجر: ۱/۱۳۶.
(۷) صحیح البخاری کتاب الصلاة باب فی کم تصلی المرأة من الثیاب رقم الحدیث: ۳۷۲.
(۸) صحیح البخاری کتاب الصلاة مواقیت الصلاة باب وقت الفجر رقم الحدیث: ۵۷۸.
(۹) صحیح البخاری کتاب الصلاة صفة الصلاة باب انتظارالناس قیام الإمام العالم رقم الحدیث: ۷۶۷.

دائمه ثلاثه رحمهم الله استدلال دهغه طرق نه دي په كوم كښې چه «من الغلس» الفاظ ذكر دى. يعنى د ښځو پيژندګلو نه كيدل به د تيارې د وجې نه نه كيدلو. ددې نه معلوميږى چه مونځ به په تياره كښې اداكيدلو نه چه په رڼاكښې. دكوم د وجې نه چه به هغوى د مانځه نه فارغيدوسره زر كورونوطرف ته تللې.

نوددې جواب دا وركړې شوې دې چه دحضرت عائشه رضي الله عنها ددې روايت په آخره كښې «من الغلس» الفاظ دهغې خپل نه دى بلكه د راوى د طرف نه دا الفاظ درج دى. دحضرت عائشه رضي الله عنها جمله ددې لفظ نه وړاندې مكمل شوې وه . دهغې ددې جملې نه راوى دا اوګڼړل چه د ښځود نه پيژندلو علت غلس هم تياره وى نوځكه هغه دا الفاظ زيات كړل. په دې جواب باندې دلالت په دوه شان سره كيږى.

اول خو د حديث باب نه چه هلته په ذكرشوى روايت كښې «من الغلس» الفاظ نشته دې.([1]) دويم د ابن ماجه رحمه الله روايت دې چه هلته په صحيح سندسره روايت موجود دې اود هغې په آخرى جمله كښې «فلا يعرفهن احدّ» نه پس «تعني من الغلس»([2]) يعنى راوى وائى چه دحضرت عائشه رضي الله عنها مراد چه چا هغوى د تيارې د وجې نه نه پيژندلې دې. يعنى د لفظ تعني د وجې نه دا خبره ثابته شوه چه دا جمله «من الغلس» د راوى ذكركړې شوې ده نه چه دحضرت عائشه رضي الله عنها.([3])

اوكه چرې په منلوسره دا الفاظ ثابت هم وى نو جواب به دا وى چه هغه وخت د جمات ديوالونه او چت ښكته وو د كوم په وجه چه د اسفار په وخت كښې هم هلته تياره وه دكوم د وجې نه چه پيژندګلو نه كيدل ممكن دى.([4])

**دويم جواب**: دويم جواب دا وركړې شوې دې چه كه چرې په رواياتوكښې موجود غلس اومنلې شى نو داسې به د سفر وغيره د وتلو د وجې نه شوې وى يابه بيا داسې د اسلام په شروع كښې كيدل كوم وخت چه به ښځې په جمع كښې شريكيدلې. روستو چه د ښځو دپاره هم په كور كښې د مونځ كولوحكم راغلو نوبيا هغه د تغليس حكم هم منسوخ شو.([5])

**دريم جواب**: اوداهم وئيلې شوى دى چه داسې كول دحضورپاك خصوصيت وو د امت دپاره چه هغوى كوم حكم وركړې دې هغه په اسفاركښې دمونځ كولودې.([6])

**داحنافو د مذهب د ترجيح وجه**. دا خبره وړاندې تيره شوې ده چه تغليس وى كه اسفار جائز په دواړو وختونوكښې دې. اختلاف د دواړو وختونونه د افضل وخت باره كښې دې. د رواياتو او آثارو كثرت نه په كتو سره ښه شان سره اندازه كيدې شى چه په دې باره كښې د احنافو مذهب واجح دې. اوهغه داسې چه كله په ظاهرى توګه باندې د رسول الله صلى الله عليه وسلم قولى احاديثو او فعلى احاديثوكښې تعارض

---

[1]) صحيح البخاري كتاب الصلاة باب فى كم تصلى المرأة من الثياب رقم الحديث: ٣٧٢.

[2]) سنن ابن ماجه كتاب الصلاة باب وقت صلاة الفجر رقم الحديث: ٦٧٢.

[3]) العرف الشذى كتاب الصلاة باب ماجاء فى الإسفار بالفجر رقم الحديث: ١٥٤، ٢٠٠/١ الكوكب الدرى كتاب الصلاة باب ماجاء فى التغليس بالفجر رقم الحديث: ١٥٣، ٢٠٠/١.

[4]) تبيين الحقائق كتاب الصلاة شرائط الصلاة: ٢٢٢/١ الكوكب الدرى كتاب الصلاة باب ماجاء فى التغليس بالفجر رقم الحديث: ١٥٣، ٢٠٠/١.

[5]) بدائع الصنائع: ٥٧٥/١أوجز المسالك: ٢٧٦/١بذل المجهود: ٩٣/٣.

[6]) أوجز المسالك: ٢٧٦/١.

معلوم شي نو دامت دپاره په قولي حديث باندې دعمل كولو حكم دې. ځكه چه درسول الله ﷺ په افعالوكښې خو ډير داسې افعال دي كوم چه هم حضورپاك سره مخصوص وو دامت دپاره دهغې حكم نه وو په خلاف داقوال چه هغه خو هم امت دپاره ارشاد فرمانيلې شوي دي. اومسئله مبحوث بها كښې درسول الله ﷺ په قولي احاديثو كښې دامت دپاره د اسفار بالفجر حكم دې.[1]

بل د ابراهيم نخعي رحمه الله د قول نه پس د بل څه جواب يا د ترجيح دوجې هډو ضرورت باقي نه پاتې كيږي ددې دپاره چه اصحاب رضي الله عنهم په يوداسې امر باندې راجمع شي كوم چه نبي كريم ﷺ نه وي ارشاد كړې دا ناممكن خبره ده.[2]

**دحضرت كشميري رحمه الله تحقيق:** محمدانور شاه كشميري رحمه الله فرماني په ظاهره د عهدنبوي په شروع كښې به د سحر مونځ په تياره كښې كيدې شو سره ددې چه په دومره غلس اوتياره كښې نه كوم چه دامام شافعي رحمه الله مسلك دې. وجه داده چه هغه زمانه د شدت عمل وه. جليل القدر صحابه كرامو رضي الله عنهم اسلام راوړې وو چه د نبوت داعلى كمالاتو مظهر جوړيدل. بيا به هغه حضراتو د تهجد د مونځ هم پابندي كوله. لهذا د سحر مونځ به ئې په جمع سره په آسانئ كولو. بيا چه كله اسلام خور شو او زيات خلق په اسلام كښې داخل شو اوپه مجموعي توګه په هغوى كښې (په نسبت د سابقين اولين) ضعف ښكاره شو نو د سحر په مونځ كښې په اسفار باندې عمل شروع شو دې دپاره چه په جمع كښې كمې نه وي.

نوكه چرته اوس هم داسې موقع وي چه ټول خلق په يوځاني كښې موجود وي اود جمع دپاره آساني اوشي نو په غلس كښې به مونځ كولې شي لكه د مبسوط سرخسي رحمه الله باب التيمم كښې دي او بخاري شريف باب وقت الفجر كښې د سهل بن سعد رضي الله عنه حديث راځي چه ما به په كوركښې پيشمنې خوړلو بيا به زر جمات ته رسيدلم دې دپاره چه حضورپاك سره په جمع كښې شريك شم.[3]

دې نه هم معلومه شوه چه تغليس به په رمضان كښې كيدلو اوددې دستور زمونږ دارالعلوم ديوبندكښې هم د اكابرو دزمانې نه دې. بل د حضرت ابوبكر او عمر رضي الله عنهما د زمانې نه معلوميږي چه د سحر دمونځ جمع په شروع كښې غلس او انتهاء اسفاركښې كيدله اودا امام طحاوي رحمه الله اختياركړې دي. بيا به دحضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه كښې پوره مونځ په اسفاركښې كيدلو كوم چه متاخرين حنفيه اختياركړې دې.[4]

**نوټ:** دائمه ثلاثه رحمهم الله نور مستدلات به په خپل مقام باندې راځي نود احنافو دطرف نه به دهغې جوابات هم ذكرولې شي. فقط.

---

[1] تبيين الحقائق كتاب الصلاة شرائط الصلاة: ۲۲۲/۱العرف الشذى كتاب الصلاة باب ماجاء فى الإسفار بالفجر رقم الحديث: ۱۵٤، ۲۰۰/۱نيل الأوطار كتاب الصلاة باب وقت صلاة الفجر ماجاء فى التغليس بها والإسفار رقم الحديث : ٤٧۰، ۲۱/۲.

[2] شرح معانى الآثار كتاب الصلاة الوقت الذى يصلى فيه الفجر: ۱۳٦/۱.

[3] صحيح البخارى كتاب الصلاة باب وقت الصلاة الفجر رقم الحديث: ۵۷۷.

[4] أنوار البارى: ۱۳۳/۱۱-۱۳۲شرح معانى الآثار: ۱۳٦/۱.

## ۱۳- باب: إِذَا صَلَّى فِي ثَوْبٍ لَهُ أَعْلَامٌ، وَنَظَرَ إِلَى عَلَمِهَا.

دا باب دې دهغه سړي په باره کښې چه په داسې کپړوکښې مونځ کوي په کوم چه نقش اونګار جوړشوي وي او په مانځه کښې په دغه نقش اونګارباندې نظر هم پريوځي.

علامه کرماني رحمه الله ذکرکړی دی چه دترجمة الباب په آخري جمله کښې يو روايت «ونظر إلى عَلَمِه» هم دې يعنی دَ عَلَمٌ اضافت دَ ضمير مذکرطرف ته دې په دې کښې دا ضمير ثوب طرف ته راګرځي اوضمير مؤنث خميصة په اعتبارسره دې دکوم ذکرچه په حديث کښې راغی.(۱)

أعلام جمع دَ عَلَمٌ ده. په دې خاني کښې دَدې نه مراد نقوش او کرښې دی کومې چه په کپړو باندې وی دهغه کپړو دَ ښائست او ښکلا دپاره.

**دترجمة الباب مقصد:** حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرماني دَامام بخاري رحمه الله غرض دَ ترجمة الباب نه دادې که چرته په مانځه کښې اخوا ديخوا خيال راشي نو مونځ به کيږي. سره دَدې چه دَ ګلونو والا کپړې اغوستو سره دَدې خيال په زړه کښې راشي.(۲)

### حديث الأول

[۳۶۶] - حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، قَالَ: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى فِي خَمِيصَةٍ لَهَا أَعْلَامٌ، فَنَظَرَ إِلَى أَعْلَامِهَا نَظْرَةً، فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ: «اذْهَبُوا بِخَمِيصَتِي هَذِهِ إِلَى أَبِي جَهْمٍ وَأْتُونِي بِأَنْبِجَانِيَّةِ أَبِي جَهْمٍ، فَإِنَّهَا أَلْهَتْنِي آنِفًا عَنْ صَلَاتِي» وَقَالَ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كُنْتُ أَنْظُرُ إِلَى عَلَمِهَا، وَأَنَا فِي الصَّلَاةِ فَأَخَافُ أَنْ تَفْتِنَنِي» (۳) [۵۸۱۷، ۷۵۲]

**ترجمه:** دَحضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه نبی کريم صلی الله عليه وسلم په خپل يوڅادر کښې مونځ اداکړو په کوم کښې چه نقش اونګار (بوټی اوکرښې وغيره) جوړې شوې وې (په مانځه) کښې دَ حضورپاك نظر په دغه نقوشوباندې پريوتلو. بيا چه حضورپاك دَ مانځه نه فارغ شو نوحضورپاك اوفرمائيل چه زما دا څادر ابوجهم له يوسئي او هغه دَدې نه (ساده دَ يورنګ والا) څادر راوړنی دې (نقش والا) څادردزه زما

---

(۱) شرح الكرماني: ۲۵/۴.

(۲) تقرير بخاري: ۱۲۹/۲أوجزالمسالک كتاب الصلاة باب النظر فى الصلاة إلى ما يشغلک عنها. رقم الحديث: ۲۱۲، ۳۳۷/۲.

(۳) رواه البخاري فى صفة الصلاة باب الالتفات فى الصلاة رقم الحديث: ۷۵۲وفى اللباس فى باب الأكسية والخمائص رقم الحديث: ۵۸۱۷ومسلم فى المساجد باب كراهية الصلاة فى ثوب له أعلام رقم الحديث:۵۵۶ وأبوداؤد فى الصلاة باب النظر فى الصلاة رقم الحديث: ۹۱۴وفى اللباس باب من كره لبس الحرير رقم الحديث: ۴۰۵۲والنسائي فى القبلة باب الرخصة فى الصلاة فى خميصة لها أعلام رقم الحديث: ۷۷۲والإمام مالک فى المؤطا كتاب الصلاة باب النظر فى الصلاة إلى مايشغلک عنها رقم الحديث: ۲۱۲ وجامع الأصول كتاب الصلاة الفصل السادس فى شرائط الصلاة ولوازمها الفرع الثالث فى ستر العورة النوح الرابع فى ماكره من اللباس رقم الحديث: ۳۶۵، ۴۶۲/۵.

په مونځ کښې په غفلت کښې واچولم.

## تراجم رجال

**احمدبن یونس:** دا احمدبن عبدالله بن یونس بن عبدالله بن قیس تمیمی یربوعی کوفی رحمه الله دې. دَدوی تفصیلی حالات کتاب الإیمان باب من قال إن الإیمان هوالعمل لاندې تیرشوی دی.[١]

**ابر اهیم بن سعد:** دا ابواسحاق ابراهیم بن سعد بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف زهری مدنی رحمه الله دې. دَدوی تفصیلی حالات کتاب الإیمان باب تفاضل أهل الإیمان فی الأعمال کښې تیرشوی دی.[٢]

**ابن شهاب:** دَدوی پوره نوم ابوبکر محمدبن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب بن عبدالله لونی الزهری المدنی رحمه الله دې. دَدوی تفصیلی حالات کشف الباري رومبې جلد کتاب بدء الوحی دریم حدیث لاندې تیرشوی دی.[٣]

**عروة:** داعروه بن الزبیر بن العوام رحمه الله دې. دَ دوی حالات کتاب بدء الوحی دَ دویم حدیث لاندې تیرشوی دی.[٤]

**عائشة:** دا ام المؤمنین حضرت عائشه بنت ابی بکر صدیق رضی الله عنهما ده. دَ دوی حالات کتاب بدء الوحی دَ دویم حدیث لاندې تیرشوی دی.[٥]

## شرح حدیث

**قوله:: صلی فی خمیصة لها أعلام:** نبی کریم ﷺ یوخمیصة (څادر) کښې مونځ اداکړو په دغه څادرباندې کرښې او نقشونه وو.

**قوله:: خمیصة:** دا لفظ دَ خاء فتحه دَ میم کسره اوصاد فتحه سره مستعمل دې. هغه څادر چه دَ وړنی نه جوړوی د تور یا سُور رنګ په دې باندې بوټی یا کرښې جوړې شوې وی په مربع شکل کښې وی هغې ته خمیصة وائی. عام ساده څادر ته خمیصه نه وائی. خمیصه ونیلی شی هم هغه څادر ته چه دَتور رنګ والادَ کړښو وی.[٦]

**قوله:: لها أعلام:** په عبارت کښې دَدې لفظ استعمال په توګه دَ بیان دَتاکید دَپاره دې. په دې وجه ددې الفاظو معنی پخپله په لفظ خمیصه کښې موجود ده.[٧]

---

[١] کشف الباری: ١٥٩/٢.

[٢] کشف الباری: ١٢٠/٢.

[٣] کشف الباری: ٣٢٦/١.

[٤] کشف الباری: ٢٩١/١.

[٥] کشف الباری: ٢٩١/١.

[٦] معجم الصحاح ص: ٣١٨ النهایة فی غریب الحدیث والأثر: ٥٣٤/١ مجمع بحار الأنوار: ١١٤/٢ التوضیح لابن ملقن: ٣٤٥/٥ الاستذکار کتاب الصلوة باب النظر فی الصلاة إلی مایشغلک عنها رقم الحدیث: ٩٥. ٥٧٢/١ فتح الباری: ٦٢٦/١.

[٧] فتح الملهم کتاب المساجد باب کراهیة الصلاة فی ثوب له أعلام رقم: ٥٥٦، ٤٠١/٣.

**قوله: فنظر إلى أعلامها نظرة**: دَدې جملې مطلب دادې چه په مانځه کښې دَ نبى کريم ﷺ نظر اتفاقاً په دغه نقوش او کربنو باندې پريوتلو او په دې کښې دحضورپاك خيال دَ مانځه نه اخوا كيدو ته نيزدې شو.(١)

**قوله: فلما انصرف**: رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه زما دا رنګدار څادر ابوجهم له يوسئ او هغه له ئې ورکړئ.

**قوله: أبوجهم**: دا ابوجهم بن حذيفه بن غانم بن عامر بن عبدالله بن عبيدبن عويج بن عدى بن كعب القرشى العدوى رَضِیَ الله عَنْهُ دې.(٢) دَ دوى دَ مور نوم بشيره بنت عبدالله وو او دا دَ عدى بن كعب دَ نسل نه ده.(٣) دا صحابى رسول دې دَ فتح مكه په موقع باندې په اسلام كښې داخل شوې دې.(٤) دَدوى دَ نوم باره كښې اختلاف دې بعض عامر ليكلې او بعض عبيدبن حذيفه القرشى العدوى ليكلې دې.(٥) دا صحابى دَ جاهليت په زمانه كښې هم دَ بيت الله په آبادئ كښې شريك شوې وو.(٦) ابونعيم الاصبهانى ليكلى دى دې په فتح مصركښې هم شريك شوې.(٧) نبى كريم ﷺ دې دَ زكوة اوصدقات دَ وصول كولو دَپاره عامل جوړكړې ليكلې وو دَدوى نه يوروايت نقل نه دې.(٨)

ابن سعد رَحِمَهُ الله ليكلى دى چه دَدوى انتقال دَ حضرت عمر بن خطاب رَضِیَ الله عَنْهُ دَ شهيد كيدونه پس شوې.(٩) دې نه علاوه په نورو كتابونوكښې دَامير معاويه رَضِیَ الله عَنْهُ په زمانه كښې دَ هغوى دَ وفات كيدو ذكر ليكلې شوې دې.(١٠) دَحديث په كتابونوكښې دا صحابى صاحب الانبجانيه په نوم سره مشهور دې(١١)

حضرت شيخ الحديث رَحِمَهُ الله فرمائى چه ما په ابواب التيمم كښې دابيان كړى دى چه دَ ابوجهم او ابوجُهيم روايات دَحديث په كتابونوكښې په دريو ځايونوكښې راغلى دى. يو ابواب التيمم دويم ابواب اللباس اودريم مرورفى الصلاة كښې اوما هلته خودلى دى په أبواب اللباس كښې ابوجهم خو صحيح دې او څوك چه ابوجُهيم وائى هغه غلط دې. او باقى دواړو ځايونوكښې يعنى ابواب التيمم او ابواب السترة كښې ابوجهيم دې.(١٢)

---

١) بذل المجهود كتاب اللباس من كره لبس الحرير رقم الحديث: ٤٠٥٢،١٢/٨١.

٢) الإصابة فى تمييز الصحابة رقم الترجمة: ٢٠٧، ٣٥/٤.

٣) الطبقات الكبرى لابن سعد: ٤٥١/٥.

٤) الثقات لابن حبان: ٢٩١/٣معرفة الصحابة لأبى نعيم: ٤٤٦/٤سيرأعلام النبلاء: ٥٥٦/٢.

٥) الثقات لابن حبان: ٢٩١/٣التوضيح لابن ملقن: ٣٤٤/٥شرح النووى على صحيح مسلم رقم الحديث: ١٢٣٨، ٤٧/٥فتح البارى: ٦٢٦/١عمدة القارى: ١٣٨/٤.

٦) سيرأعلام النبلاء: ٥٥٦/٢الإصابة فى تمييز الصحابة: ٣٥/٤.

٧) معرفة الصحابة لأبى نعيم: ٤٤٦/٤.

٨) سيرأعلام النبلاء: ٥٥٦/٢.

٩) الطبقات الكبرى لابن سعد: ٤٥١/٥.

١٠) الإصابة فى تمييز الصحابة: ٣٥/٤التوضيح لابن ملقن: ٤٢٥/٥إرشادالسارى: ٣٥/٢.

١١) معرفة الصحابة لأبى نعيم: ٤٤٦/٤.

١٢) تقرير بخارى شريف: ١٣٠/٢ أوجزالمسالك: رقم الحديث: ٢١٢،٣٣٤-٣٣٥/٢.

او هم دَ دي ذكر حافظ ابن حجر رحمه الله علامه نووي رحمه الله اوعلامه عيني رحمه الله هم كړي دي.[1]

**قوله:: وأتوني بأنبجانية أبي جهم**: اوماله دَ ابوجهم انبجانيه (بغيردَ نقوش څادر) راوړئ.

**قوله:: أنبجانية**: دَ همزه فتحه اوكسره سره اودَباء فتحه اوكسره سره اودَ ياء تشديد اوتخفيف سره مستعمل دي. اوداهم وئيلې شوي دي چه داكپړه دَيوځائي طرف ته منسوب ده كوم ته چه أنبجان وائي. اودي نه علاوه نور اقوال هم دَلغت په كتابونوكښې ذكر دي. أنبجانيه هغه پيړ څادرته وائي په كوم چه څه قسم نقش بوټي او كربښې وغيره نه وي. دَ دې په مقابله كښې دَ دغه ذكرشوي نه چه څه ځيز په كپړه باندې وي نو هغې ته خميصه وائي.[2]

**نبي اكرم ﷺ نقش دار څادر هم ابوجهم ته ولې اوليګلو؟**: په دغه ذكرشوې جمله كښې داخبره مخې ته راغله چه نبي اكرم ﷺ اوفرمائيل دا خميصه ابوجهم ته وركړئ. په دې مقام باندې په ذهن كښې يو سوال پيداكيږي چه دا څادر ورليګلو دَپاره ابوجهم ولې خاص كړې شو؟ نودَدې جواب دادې چه داڅادر هم ابوجهم حضورپاك ته هديه ليګلې وو[3] لكه چه مؤطا امام مالك رحمه الله كښې دي: «أهدى أبوجهم ابن حذيفة لرسول الله صلى الله عليه وسلم خميصة شامية لها علم»[4]

انبجانيه دلته دَمؤنث صيغه استعمال شوې ده دَ أبي جهم طرف ته دَاضافت سره خو په يوبل روايت كښې دَمذكر صيغه استعمال شوې ده «كساءله أنبجانيا».[5]

**قوله:: فإنها ألهتني آنفا عن صلاتي**: پس تحقيق دې خميصه خو زه اوس دَ خپل مانځه نه غافل كړم. دَ ألهتني مطلب دې شغلتني يعني دَدې څادر نقش اوكربښو خو زه په مانځه كښې دَ خپل رب دَ حضورنه او په مانځه كښې دَ غور اوفكر نه مشغول كړم يعني غافل نې كړم.[6]

په دې خاني كښې ألهتني دَ ماضي صيغه ده دَ كوم مطلب چه دې حضورپاك په غفلت كښې پريوتلې وو. خو دَدې حديث نه پس راتلونكې تعليق كښې دي.[7] «فأخاف أن تفتنني» دَدې نه معلوميږي چه غفلت شروع شوې نه وو بلكه په غفلت كښې دَ پريوتلو ويره پيداشوې وه. لكه څنګه چه دَ مؤطا په روايت كښې دي.[8] «فكاد يفتنني» يعني نيزدې وه چه دغه نقش اوكربښو زه په فتنه كښې اچولې وو نودَ فأخاف او فكاد الفاظو نه معلوميږي چه فتنه واقع شوې نه وه څكه چه لفظ كاد دَ قربت په معنى باندې دلالت كوي او دَ فعل وقوع منع كوي.[9]

---

[1] فتح الباري: ٦٢٦/١شرح النووي على صحيح مسلم رقم الحديث:١٢٣٨، ٤٧/٥عمدة القاري: ١٣٨/٤فتح الملهم: ٤٠١/٣.

[2] معجم الصحاح ص: ١٠١٥لسان العرب: ١٤/١٤إكمال المعلم شرح مسلم لقاضي عياض: ٤٩٠/٢إكمال إكمال المعلم: ٢٥٣/٢شرح الكرماني: ٣٦/٤التوضيح لابن ملقن: ٣٤٥/٥شرح النووي على صحيح مسلم: ٤٦/٥.

[3] أوجزالمسالک كتاب الصلاة النظر فى الصلاة إلى ما يشغلک عنها رقم الحديث: ٢١٢، ٣٣٦/٢.

[4] المؤطا للإمام مالک ابواب الصلاة النظر فى الصلاة إلى ما يشغلک عنها رقم الحديث: ٢١٢.

[5] صحيح مسلم كتاب المساجد باب كراهية الصلاة فى ثوب له أعلام رقم الحديث:٥٥٦.

[6] التوضيح لابن ملقن: ٣٤٥/٥.

[7] صحيح البخاري كتاب الصلاة باب إذا صلى فى ثوب له أعلام والنظر إلى علمها رقم الحديث:٣٧٣.

[8] المؤطا للإمام مالک كتاب الصلاة النظر فى الصلاة إلى ما يشغلک عنها رقم الحديث: ٢١٢.

[9] أوجزالمسالک رقم الحديث: ٢١٢، ٣٣٧/٢فتح الملهم رقم الحديث : ٥٥٦، ٤٠١/٣.

حافظ ابن حجر رحمہ اللہ لیکلی دی چه (په روایاتوکښې مخې ته راتلونکی دَدې ظاهری تعارض دَ وجې نه) به تاویل کولې شی چه معنی داده چه زَه په غفلت کښې راتلوته نیزدې شوې ووم. دَ إلهاء اطلاق په قرب کښې دَمبالغې دَپاره وی. یا به دا تاو یل کولې شی چه دَ فتنې مصداق إلهاء نه قوی دې. اودَ حضورپاک دَفتنې الفاظوسره نې دَ قربت والاالفاظ استعمال کړل اودَ إلهاء نې مطلقًا استعمال کړه (۱)

**دَحضرت شیخ الحدیث رحمہ اللہ رائې:** دَ ذکرشوی بحث خلاصه دا شوه چه دَ ظاهری تعارض نه دَ بچ کیدو دَپاره دَ رومبې خبرې إلهاء معنی دَ دویمې خبرې یعنی احتمال والامعنی مراد واخستې شی نو مراد به داشی چه غفلت پیښ شوې نه ؤو بلکه په غفلت کښې دَ پریوتلو احتمال پیدا شوې وو

په دې باندې شیخ الحدیث رحمہ اللہ اوفرمائیل په دې مقام باندې چه حافظ ابن حجر رحمہ اللہ اوعلامه قسطلانی رحمہ اللہ کوم تاویل کړې دې .... خو زما په نیز دَ تاویل ضرورت نشته دې اوچونکه دا دواړه الفاظ په حدیث شریف کښې راغلی دی دَدې دَپاره چه ترکومې دَدې معنی بغیردَ تاویل نه جوړیدې شی نوجوړه دې کړې شی. چنانچه دلته معنی جوړیدې شي اوهغه دا چه إلهاء نه مراد إلهاء خفيف دې یعنی داخوا دیخوا لړشان خیال راتلل او افتنان دادې چه دَ دغه خیالاتو او تفکراتو شدت اوشی نودَ ألهتنی مطلب دا شو چه څه خیال راغلو او أخاف أن تفتننی مطلب دا شو چه دومره زیات شوې نه وو.

اوس خلاصه دا شوه چه دَ نفس خیال وقوع خو اوشوه مگر دَهغې کثرت او زیاتوالې اونه شو. او زما دَ خیال تائید دَدې نه کیږی چه فقهاؤ یوه مسئله بیان کړې ده چه که داخوا دیخوا خیال راشی نو مونځ به صحیح کیږی مگر دا خیالات ښه نه دی او په دلیل کښې فقهاء هم دا روایت پیش کوی. نوکه چرې إلهاء نه ده واقع شوې نودَ فقهاؤ استدلال به څنگه صحیح کیږی؟ لیکن خیالات وغیره راوستل به مکروه وی اودکومې درجې چه إلهاء وی هم دَهغه درجې به کراهت وی تردې چه کله به تنزیهی اوکله تحریمی پورې حالت رسیږی. دَدې نه پس دا اوگنړئی چه دَدې واقعې نه پس نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم مونځ اوکړو او راوې نه گرځولو نودَدې نه دَ مونځ صحت معلوم شو. او چونکه حضورپاک هغه کپړه واپس کړه نوپه دې سره کراهت معلوم شو. لیکن دا یاد ساتئې چه په دې سره دَ حضورپاک په شان مبارک کښې دَڅه قسم بد خیال رانه ولئې څکه چه حضورپاک دَ تعلیم فعلی دَپاره تشریف راوړې وو په دې وجه حضورپاک دَدې کولوسره اوخودل چه که چرې داسې واقعه دریښنه شی نو مونځ به صحیح وی. هم دغه وجه ده چه زمونږ دَپاره کوم کار خلاف اولی دې دَهغې په کولوبه هغوی ته په واجب دَ عمل کولوثواب ملاویږی. هم په دې وجه دَ حضورپاک ته په ناسته باندې دَ مونځ کولو پوره ثواب ملاویږی دغه شان دَ صحابه کرامو رضی اللہ عنہم نه گناه شوې لکه غلا زنا وغیره دا تول دَ امت دَ تعلیم دَپاره وو څکه چه دَهغوی تعلیم دَامت دَپاره ضروری وو او چونکه دا تول دَ نبی علیہ السلام دَشان خلاف وو په دې وجه دَنبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم په اصحاب کرام باندې اوکړې شو (۲)

**دعلامه قسطلانی رحمہ اللہ رائې:** دمذکوره ظاهری اختلاف په حل کښې شارح بخاری علامه قسطلانی رحمہ اللہ فرمائی چه دَنبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم دوه حالتونه وو. یوحالت بشری اوبل کوم چه حضورپاک سره مخصوص

(۱) فتح الباری: ۶۲۷/۱ أوجزالمسالک رقم الحدیث: ۲۱۲، ۳۳۷/۲ إرشاد الساری: ۲/۳۶.

(۲) تقریربخاری شریف کتاب الصلاة باب إذا صلى فی ثوب له أعلام: ۳۴۶/۲ الكنزالمتواری: ۴۸/۴-۴۷

أوجزالمسالک کتاب الصلاة باب النظر فی الصلاة إلى مايشغلک عنها رقم الحدیث: ۲۱۲، ۳۳۷/۲ بذل المجهود کتاب الصلاة باب من كره لبس الحرير رقم الحدیث: ۹۱۴، ۲۹۷/۴.

وو. په دې حالت کښې به رسول الله ﷺ د بشري مقتضیاتو نه بهر وو. چنانچه په رومبی حالت حالت بشریه طرف ته کتلوسره حضورپاك اوفرمائیل ألهتنی او دویم حالت طرف ته کتلو سره حضورپاك دا جزما اونه فرمائیل بلکه وئې فرمائیل چه ماته ویره پیدا شوه. او په دې سره په فتنه کښې واقع کیدل په حقیقت سره لازم نه راځي.([1])

**ابوجهم له په څادر لیګلوباندې یوه شبه اودهغې جواب:** په دې مقام باندې یوه شبه پیدا کیږي چه هغه څادر دکوم په وجه چه حضورپاك ته په مانځه کښې خلل پیدا شو حضورپاك هغه ناخوښه ګنړلوسره ابوجهم ته د واپس لیګلو حکم اوکړو نوچه کوم ئې پخپله ناخوښه وو هغه دبل دپاره څنګه خوښ کړې شو؟ دویمه خبره دا چه هغه کپړه د نبي کریم ﷺ د غفلت سبب جوړه شوه نوهغه کپړه خو به ابوجهم ﷺ خامخا په غفلت کښې اچوی داسې څیز ئې بل له څنګه اولیګلو؟

**دعلامه عثماني صاحب ﷫ جواب:** ددې جواب علامه شبیر احمد عثماني ﷫ دا ورکړو. اول خو دا چه صرف لیګل دلیل نه دې چه حضورپاك هغه ته دغه کپړه اغوستلوسره دمونځ حکم ورکوی (دا خوهم داسې دی)([2]) لکه چه حضرت عمر فاروق ﷜ له حضورپاك ریښمین لباس لیګلې وو بیائې تصریح فرمائیلې وه چه د ستا داستعمال دپاره مې نه ده درلیګلې (بلکه دې دپاره مې درلیګلې چه داخرڅه کړه او قیمت ئې په کار راوله) چنانچه حضرت عمر فاروق ﷜ هغه جوړه په دوه زره درهم باندې خرڅه کړې وه.([3])

(دغه شان حضرت علی ﷜ له ئې یوه جوړه لیګلې وه چه دا د ښځود څادر او لوپټې وغیره دپاره استعمال کړنې) ([4])بل دا چه یوڅیز د یو سړي په حق کښې مُلهِیْ وی خو ضروری نه ده چه هغه د بل سړي په حق کښې مُلهِیْ شي.

**په دویم جواب باندې اشکال اودهغې حل:** که څوک اووئیلې شي چه د رسول الله ﷺ دپاره مُلهِی شو نود بل دپاره خو په طریقه اولی کیدل پکاردی ځکه چه نورو ته خو هغه کمال حضور حاصل نه دې کوم چه رسول الله ﷺ ته حاصل وو؟

ددې جواب په یومثال سره داسې اوګنړئی چه دحضورپاك دا کمال او د نورو عدم کمال هم ددې تفاوت سبب دې. فرض کړه په یوصفا ستره سپینه پرقیدلې کپړه باندې یو وړوکې شان داغ اولګی نو ډیرزر به محسوس کیږي په خلاف ددې که کپړه خیرنه خیچنه وی او په هغې باندې معمولی شان داغ اولګی نویته به هم نه لږي. دغه شان کاملین (لکه حضورپاك) ته چونکه کمال حضور او استغراق په مانځه کښې کیدلو نو ډیر معمولی مشاغل به هم دهغوی باطنی احساس باندې اثر کولو (ددې په خلاف) ناقصین یا غیرکاملین ته بعض وخت ددې پته هم نه لږي (لنډه دا چه دا خبره ممکن ده چه هغه د نقش والا کپړه دحضورپاك د کمال حضور د وجې نه د حضورپاك باطنی احساس باندې اثر کړې وی لیکن د ابوجهم ﷜ دپاره سبب جوړنه شي) عارف رومی فرمائی:

ګرز باغ دل خلالے کم بود ‌ ‌ ‌ ‌ بر دل سالک ہزاراں غم بود ([1])

---

[1]) إرشادالساري: ۳۶/۲.

[2]) شرح ابن بطال: ۲۹/۲.

[3]) صحیح مسلم کتاب اللباس باب تحریم استعمال إناء الذهب والفضة علی الرجال والنساء رقم الحدیث: ۵۴۱۹.

[4]) صحیح مسلم کتاب اللباس باب تحریم استعمال إناء الذهب والفضة علی الرجال والنساء رقم الحدیث: ۵۴۴۲.

په دې خاتې كښې يو بل سوال پيدا كيږى چه د رسول الله ﷺ شان مبارك خو په وخت د معراج داسې مخې ته راغلې وو ﴿مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰى﴾ د دې نه خو دا معلوميږى چه حضورپاك هغه وخت د دنيا اوما فيها نه جدا كيدوسره د حق تعالى په مخكښې بالكليه پوشان شوې وو يعنى په حضورپاك كښې دا صفت اوصلاحيت موجود وو چه هغوى د يوې لمحې د پاره هم غافل نه شى. بيا د حضورپاك باره كښې دا خيال څنګه متحقق كيدې شي چه حضورپاك صرف د يونقش والا څادر د وجې نه په فتنه اوغفلت كښې پريوتلو ته ورنيزدې شو؟ نو د دې جواب دادې چه د حضورپاك دوه حالتونه دى يو بشرى او بل روحانى. كله چه حضورپاك معراج ته تشريف اوړلې وو نوحضورپاك د خپل بشرى طبيعت نه جدا كړې شوې وو په خلاف د بشرى حالت، چه هغه وخت حضورپاك دوباره د بشرى طباع او مقتضيات طرف ته متوجه وو. چنانچه د حضورپاك نه هغه ټول څيزونه صادر كيدل متوقع دى چه د يو بشر نه متوقع وى.(١) يو بل سوال دا پيدا كيږى چه د نبى كريم ﷺ د متبعينونه ډير زيات كسانو سره داسې حالات او صفات پيښ شوى دى چه هغوى ته په مانځه خبر هم نه دې شوې تردې چه چت راپريوتل، د مار اينختلو پورې غفلت نه دې پيدا شوې نوبيا د يو نبى نه د دې صادر كيدل څنګه ممكن كيدې شى؟ نو د دې جواب دادې چه دا كسان دغه وخت د خپل حالت بشرى نه خارج شوې وى د كوم د وجې نه چه هغوى ته خبر نه وو شوې. حضورپاك به كله په خپل خاص حالت باندې وو اوكله د غير خواص په حالت باندې، نو حضورپاك به فرمائيل «لست كأحدكم»(٢) يعنى زه ستاسو په شان نه يم اوكله چه به په بل حالت وو نو فرمائيل به ئى «إنما أنا بشر»(٣) يعنى زه هم ستاسو په شان بشر يم. هغه وخت به حضورپاك خپل طبعى حالت ته واپس راګرځولې شو.(٥)

**كله چه نبى كريم ﷺ محفوظ پاتې نه شو نو ابوجهم h به څنګه محفوظ پاتې كيدلو؟** سوال دا دې چه كله نبى كريم ﷺ د معصوم كيدو سره محفوظ پاتې نه شو نوبيا ابوجهم رضي الله عنه به څنګه محفوظ پاتې كيدلو ؟د دې جواب وړاندې وركړې شوې دې. د دې نور تفصيل داسې دې چه ابوجهم نابينا ووكه هغه دغه څادر اچولوسره مونځ هم كولو نو د هغوى نه الهاء متصور نه وه. دويم جواب دادې چه حضورپاك ته دامعلومه شوې وه چه هغه به د دې اچولوسره مونځ نه كوى. دريم جواب دادې چه وړاندې تيرشوى دى چه د اغوستلو د پاره ئى نه وو وړليګلې د هغې د ليګلو مقصد دا وو چه په څه بل استعمال كښې راولى يا ئى خرڅ كړى. څلورم جواب دادې چه داسې حضورپاك سره خاص وو لكه څنګه چه ارشاد فرمائيلې شوې دې «كل فإني أناجي من لاتناجي».

ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى چه كوم سړې د دې خبرې دعوى اوكړى چه په دې قسم څيزونوسره د هغه زړه نه متاثر كيږى نو په تحقيق سره هغه د سلوك د طريق نه جاهل او بې خبرې دې.(٦)

---

(١) فضل البارى: ٥٤-٣/٥٣شرح ابن بطال: ٣٩/٢إكمال إكمال المعلم: ٢٥٤/٢شرح النووى على صحيح مسلم: ٤٧/٥بذل المجهود: ٣٩٨/٤أوجز المسالك: ٣٣٧/٢.

(٢) أوجز المسالك: ٣٤٠/٢فتح الملهم: ٤٠١/٣.

(٣) صحيح البخارى كتاب الصوم باب الوصال ومن قال ليس فى الليل صيام رقم الحديث:١٩٦١.

(٤) صحيح البخارى كتاب المظالم باب ثم من خاصم فى باطل وهو يعلمه رقم الحديث: ٢٤٥٨.

(٥) أيضًا التوضيح لابن ملقن:٣٤٧/٥.

(٦) فتح الملهم: ٤٠١/٣فتح البارى: ٦٢٧/١شرح الكرمانى: ٣٦/٤.

**دَ حضورپاک دَخمیصه په بدل کښې دَ څادر راغوښتل دَ څه دپاره وو؟:** حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه داخميصه ابوجهم ته ورکړئی چه دَهغه زړه خفه نه شی خکه چه دا خمیصه هم ابوجهم هدیه کړې وه که چرې صرف هغه ته واپس کړې شوې وه نو هغه به خفه شوې وو. په دې وجه نې بیرواپس کړو بل نې طلب کړو. رومبې نې په دې وجه واپس کړو چه دَ ابوجهم دَ استعمالولوسره دَ هغه دَ نابینا کیدو دَ وجې نه هغه ته څه خطره نه وه. اودَ رسول الله ﷺ داسې غوښتلو نه معلومیږی چه دَغیر مال طلب کول هغه وخت جائز دې کله چه معلومه وی چه دَچا نه غوښتلې شی هغه خوشحالیږی. او په دې کښې دَهغه طیب نفس شامل دې.(۱)

**دَ روایت ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب وو «إذا صلی فی ثوب له أعلام ونظر إلی علمها» او په روایت کښې هم ذکر دی چه دَحضورپاك نظر په مانځه کښې په هغه نقوش باندې پریوتلو کوم چه په هغه کپړه باندې وو.(۲)

**دَحدیث مبارک نه مستنبط امور:** دَدې حدیث مبارك نه ډیر امور مستنبط کیږی. یوڅو دلته ذکرکولې شی:

① داسې کپړې اغوستلوسره مونځ کول جائز دی په کوم چه بوټی اونقش کرښې وغیره جوړې وی.
② په مانځه کښې لږډیر خیال اخواکیدوسره مونځ نه فاسد کیږی.
③ په مانځه کښې په مکمل توګه خشوع اوخضوع مطلوب اومحمود ده دَدې دَحصول دپاره هر ممکن کوشش کول پکاردی. ④ کوم څیز چه دَ مانځه په خشوع اوخضوع کښې بندیز جوړیږی هغه زر دَځپل ځان نه لرې کول پکاردی. ⑤ دَعالم دپاره دَځپل ځان نه وړوکی ته په کنیت سره رابلل صحیح دی. ⑥ دَ ملګرو نه هدیه قبلول جائز دی. ⑦ که په څه وجه هدیه واپس کول وی او معلومه وی چه ورکونکې به خفه نه وی نوهدیه ردکول هم جائز دی. ⑧ دَ ظاهری څیزونو اثر په پاك صفا نفوس اوقلوب باندې اثرکوی.(۳)

**تعليق**

**وقال هشام بن عروة عن أبيه عن عائشة قال النبی صلی الله علیه وسلم کنت أنظر إلی علمها وأنا فی الصلاة، فأخاف أن تفتنني:** دَحضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ما مونځ کولوسره دَ څادر نقش ته کتل بیا زه اوویریدلم چه چرته دا نقوش ما په فتنه کښې وانچوی (یعنی ما دَ مونځ دَخشوع اوخضوع نه غافل نه کړی).

**دَتعلیق تخریج:** حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله لیکلی دی(۴)چه په دې طریق سره دَدې روایت تخریج مسنداحمد المصنف لابن ابی شیبه صحیح مسلم اوسنن ابی داؤد کښې کړې شوې دې لیکن په دغه ټول طرق کښې بعینه دغه الفاظ نه دی کوم چه په دې طریق کښې دی. (۱)خو بیاهم

---

(۱) الاستذكار لابن عبدالبر كتاب الصلاة باب النظر فى الصلاة إلى ما يشغلك عنها: ٩٥. ٥٧٥/١شرح الكرمانی: ٣٦-٣٧/٤ فتح الملهم: ٤٠٢/٣.

(۲) عمدة القاری: ١٣٧/٤.

(۳) عمدة القاری: ١٣٧/٤شرح النووی علی صحیح مسلم: ٤٦/٥التوضیح لابن ملقن: ٤٣٦/٥.

(۴) فتح الباری: ٥٢٧/١تغلیق التعلیق: ٢١٧/٢-٢١٦عمدة القاری: ١٤٠/٤.

المؤطا للامام مالك كښې دې سره نيزدې الفاظ موجود دى اوهغه دادى: «فإني نظرت إلى علَمِها في الصلاة فكاد يفتنني»[2]

## دتعليق رجال

**هشام بن عروه:** دادحضرت عروه بن زبير خوئى دې د ده كنيت ابوالمنذر يا ابو عبدالله دې. دا تابعي رحمه الله دې. دَدوى حالات كتاب بدء الوحى دَدويم حديث لاندې تيرشوى دى.[3]

**ابيه:** داعروه بن زبير بن عوام دې. دَدوى حالات هم كتاب بدء الوحى دَدويم حديث لاندې تير شوى دى.[4]

**عائشة:** دا ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها ده. دَدى حالات هم كتاب بدء الوحى دَدويم حديث لاندې تيرشوى دى.[5]

**دَتعليق تشريح:** دَدې تعليق تشريح هم دَ سابقه حديث دَ تشريح په ضمن كښې تيره شوې ده. **وأنا في الصلاة** جمله حاليه ده په ماقبل جمله كښې كنت دَ فعل دَ أنا ضميرنه. **فأخاف** دَدې لفظ نه معلوميږى چه دَحضورپاك په غفلت كښې دَ كيدو صرف ويره او انديښنه وه په حقيقت كښې په غفلت كښې شوې نه وو. **أن تفتنني،** أن مصدريه دې او په فعل كښې دوه احتماله دى چه دَ ثلاثى مجرد نه وى نو دا **فَتَنَ يَفْتِنُ** **ضَرَبَ يَضْرِبُ** نه وى او كه ثلاثى مزيد فيه نه وى نو دا **أَفْتَنَ يُفْتِنُ** دَ باب افتعال نه وى.[6]

**دتعليق مقصد:** دَ روايت نه پس دَ تعليق ظاهرى مقصد دَ رواياتو دَ اختلاف طرف ته اشاره كول مقصود دى چه دَماقبل دَ روايت نه دَ فتنې دَ وقوع كيدو دَتحقق خبر كيدلو اواوس دَدې روايت نه صرف احتمال معلوميږى. بيا په دواړو روايتونو كښې تطبيق او خاص كر دَحضرت شيخ الحديث رحمه الله رائې په وړاندې صفحاتو كښې تيره شوې ده.

## ۱۳- باب: إِنْ صَلَّى فِيْ ثَوْبٍ مُصَلَّبٍ أَوْتَصَاوِيْرَ: هَلْ تَفْسُدُ صَلَاتُهُ؟ وَمَا يُنْهَى عَنْ ذٰلِكَ.

دا باب دې دَهغه سړې باره كښې چه يوه داسې كپړې كښې مونځ اداكړي په كوم كښې صليب جوړ شوې وى يا په يو داسې كپړې كښې مونځ اداكړي په كوم كښې چه تصويرونه جوړشوې وى

---

[1] مسند احمد بن حنبل رقم الحديث: ۲٤۰۸۷، ۲٤۱۹، ۲۵۷۲٤ المصنف لابن أبى شيبة بحواله فتح البارى: ٦۲۷/۱ صحيح مسلم كتاب المساجد مواضع الصلاة باب كراهة الصلاة فى ثوب له أعلام رقم الحديث: ۵۵٦ سنن أبى داؤد كتاب الصلاة باب النظر إلى الصلاة رقم الحديث: ۹۱۵.

[2] المؤطا للإمام مالک أبواب الصلاة النظر فى الصلاة إلى ما يشغلک عنها، رقم الحديث: ۲۱۲.

[3] كشف البارى: ۱۹۱/۱.

[4] كشف البارى: ۱۹۱/۱.

[5] كشف البارى: ۱۹۱/۱.

[6] فتح البارى: ٦۲۷/۱ عمدة القارى: ۱٤۱/٤-۱٤۰ إرشادالسارى: ۳٦/۲.

نو دغه مونځ به فاسد وي؟ (كه نه). او دغه روايت باره كښې په كوم كښې چه ددې ممانعت راغلې دې.

**قوله: :ثوب مُصَلَّب:** داموصوف صفت دې.مصلب داسم مفعول صيغه ده دباب تفعيل نه يعنى ((الذي فيه صورة الصليب)) هغه كپړه په كوم كښې چه د صليب تصوير جوړشوې وى.(١)

حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلي دى ((أي: فيه صلبان منسوجة أو مَنْقُوشَة)) يعنى داسې كپړه په كوم كښې چه صليبونه زوړند وى يا منقوش وى.(٢) په دې باندې علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دا معنى صحيح نه ده دلته صرف د صليب صورت كيدل منع دى دنفس صليب زوړنديدل مرادنه دى (٣)

**قوله: :أوتصاوير:** حافظ صاحب فرمائى چه دا ((فى ثوب ذي تصاوير)) دې. تصاوير نه وړاندې مضاف محذوف دې لكه چه معنى په دې باندې دلالت كوى.(٤)

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه دتصاوير عطف به په ثوب باندې وى په مصلب باندې نه. اوتصاوير مصدر دې دمفعول په معنى كښې. يا بيا كه عطف په مصلب باندې وى نو تقديرى عبارت به داسې وى ((فى ثوب مصورٍ بالصليب)) لكه چه دامام بخارى رحمه الله منشاء ((مصور بالصليب)) ونيل دى يا ((مصور بتصاوير غيره)).(٥)

په دې باندې علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دعلامه كرمانى رحمه الله ذكرشوې تفصيل صحيح نه دې خكه چه تصاوير جمع د تصوير ده اوكه موئږ ددې لفظ مصدر په معنى مفعول تسليم كړو نوهغه تقدير به منل صحيح نه وى كوم چه علامه كرمانى رحمه الله ذكر كړې دې. يعنى ((إن صلى فى ثوب مصورة)) خكه چه موصوف صفت كښې به مطابقت پاتې نه شى حالانكه د مطابقت كيدل شرط دې لهذا هم دا ظاهر دى چه دتصاوير عطف مصلب باندې وى او حرف صله محذوف كيدو سره. په دې صورت كښې به تقديرى عبارت داسې جوړيږى. ((إن صلى فى ثوب مصور بصلبان، أوثوب مصور بتصاوير التى هى التماثيل))(٦)

**قوله: :هل تفسُد صلاته؟:** دامام بخارى رحمه الله عادت دادې چه كوم خائې چرته اختلافى مسئله وى هلته دخپل طرف نه قطعى حكم لګولونه بغير د هغه اختلاف طرف ته شاره كونكى الفاظ استعمالولوسره تيريږى. چنانچه دلته هم داسې شوى دى چه اشاره ئې اوكړه او هغه داسې چه په كومو كپړوكښې تصويرونه وى هغې اغوستو سره مونځ اوكړې نودې سره مونځ فاسد كيږى كه نه؟ نوجمهور په دې باندې دى كه د تصوير سره متعلق وارد شوې نهى طرف ته اوكتلې شى نوبيا دا د فساد صلاة تقاضا كوى په بل صورت كښې دكراهت تقاضا كوى.(٧)

---

(١) الكوثر الجارى: ۵۹/۲.

(٢) فتح البارى: ۶۲۷/۱.

(٣) عمدة القارى: ۱٤۱/٤.

(٤) فتح البارى: ۶۲۷/۱.

(٥) شرح الكرمانى: ۳۷/٤.

(٦) عمدة القارى: ۱٤۱/٤.

(٧) فتح البارى: ۶۲۷/۱عمدة القارى: ۱٤۱/٤.

**قوله: ومأينهي من ذلك:** دې جملې نه مراد دادې «والذي ينهى عنه من المذكون» يعني ماقبل كښې كومه مسئله تيره شوه «چه د تصويرونو والا په كپړو كښې به مونځ كيږي كه نه؟» باره كښې و زد كيدونكي نهي بيان. بعض نسخوكښې د ينهي نه پس عنه مقدر دې او دويم قول دادې چه من ذلك په خائى عن ذلك دې. رومبې قول راجح دې.[1]

# حديث الأول

[۳٦٧] - حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَمْرٍو، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، كَانَ قِرَامٌ لِعَائِشَةَ سَتَرَتْ بِهِ جَانِبَ بَيْتِهَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَمِيطِي عَنَّا قِرَامَكِ هَذَا، فَإِنَّهُ لاَ تَزَالُ تَصَاوِيرُهُ تَعْرِضُ فِي صَلاَتِي» [۵۳۳][2]

**ترجمه:** انس رضي الله عنه فرمائي چه حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها سره يو پرده وه په كوم سره چه به هغې د كور يو طرف پټولو. نبى كريم صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو اې عائشه! زمونږ د مخي نه دا پرده لرې كړه په دې كښې باندې منقش تصويرونه مسلسل زما په مونځ كښې زما مخي ته راځي او مونځ نه مې غافل كوى

## تراجم رجال

**ابومعمر عبدالله بن عمرو:** دا ابومعمر عبدالله بن عمرو بن ابى الحجاج منقرى بصرى رحمه الله دې د دوى حالات كتاب العلم باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: اللهم علمه الكتاب كښې تيرشوى دى.[3]

**عبدالوارث:** دا عبدالوارث بن سعيد بن ذكوان تميمى عنبرى تنورى بصرى رحمه الله دې د دوى حالات كتاب العلم باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: اللهم علمه الكتاب كښې تيرشوى دى.[4]

**عبدالعزيز ابن صهيب:** دا حضرت عبدالعزيز بن صهيب بنانى بصرى رحمه الله دې. د دوه مختصر تذكره كتاب الإيمان باب حب الرسول من الإيمان كښې تيرشوى دى.[5] دې د حضرت انس بن مالك، شهربن حوشب، عبدالواحد البسانى، كنانه بن نعيم العدوى، محمد بن زياد، ابوصفيه صاحب ابى رزين، ابوغالب صاحب امامه او ابونصرة العبدى رحمهم الله نه روايت كوى.[6]

---

[1] فتح البارى: ۶۲۷/۱ عمدة القارى: ۱٤۱/٤ إرشادالسارى: ۳۷/۲.

[2] رواه البخارى فى كتاب اللباس باب ماوطىء من التصاوير رقم الحديث: ۵۹۵۵-۵۹۵٤ وأخرجه النسائى بألفاظ منها: يا عائشة أخرى هذا فإنى إذا رأيته ذكرت الدنيا. ومنها: فهتكه بيده . وقال: إن أشدالناس عذابا يوم القيامة الذين يشبهون بخلق الله. فى كتاب الزينة التصاوير رقم الحديث: ۵۳۵٤ - ۵۳۵۷ جامع الأصول كتاب الزينة الباب السابع فى الصور والنقوش والستور رقم الحديث: ۲۹۶۵، ۸۱۰/٤.

[3] كشف البارى: ۳۵۶/۳.

[4] كشف البارى: ۳۵۸/۳.

[5] كشف البارى: ۱۲/۲.

[6] تهذيب الكمال: ۱٤۷/۱۸ الجرح والتعديل: ٤۵۲/۵.

اودَدوی نه دَروایت کونکویولونی شمیردي. په کوم کښې چه عبدالوارث بن سعید ، ابراهیم بن طحان ،حارث بن عبیدابوقدامه الایادی،حسن بن ابی جعفر،حمادبن زید،حماد بن واقد،حماد بن سعید التبراء،حمادبن واقد،حمادبن سعیدالبراء،حمادبن سلمه،حمادبن یحیی،زکریا بن عماره الانصاری ، سعیدبن زید اخوحمادبن زید ، حکم بن عتبه، سعیدبن عبدالعزیز رحمهم الله شامل دی.[۱]

امام احمدبن حنبل رحمه الله دَدوی باره کښې فرمائی ثقه ثقه.[۲] دَهغوی خونی دَهغوی نه تپوس اوکړو چه عبدالعزیز رحمه الله او یحیی بن اسحاق کښې تاسو ته کوم زیات محبوب دي؟ نو ابن حنبل رحمه الله جواب ورکړو چه عبدالعزیز دَ یحیی نه زیات ثقه دي.[۳] عبدالله بن احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه زما پلار احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه معمر عبدالعزیز بن صهیب باره کښې په خطاباندي دي. دمعمر بیان دي چه عبدالعزیز دَحضرت انس رضي الله عنه آزاد کړې شوي غلام دي. حالانکه هغه خودَ بنانة آزاد کړې شوي غلام وو ،نه چه دَحضرت انس رضي الله عنه.[۴] ابن معین رحمه الله دَدوی باره کښې فرمائی ثقة.[۵] ابن سعد رحمه الله دَدوی باره کښې فرمائی ثقة.[۶] امام نسائی رحمه الله اوعجلی رحمه الله دَدوی باره کښې فرمائی ثقة.[۷]

**انس.** دامشهور صحابی حضرت انس بن مالك بن نصر بن ضمضم خزرجی انصاری رضي الله عنه دي. دَدوی حالات کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه کښې تیرشوی دی.[۸]

## شرح حدیث

**قوله: کان قرام لعائشة:** حضرت عائشه رضي الله عنها سره یوه پرده وه. قرام دَقاف کسره سره دي. دَدي جمع قرم راځي. دي نه مراد دمختلف رنګونو پیره ورینه کپړه ده دکوم نه چه پرده جوړولې شي یوبل قول دادي چه قرام نرئې منقش وریني پردې ته وائي.[۹] حضرت عائشه رضي الله عنها به دا پرده دکور په یوګوټ کښې زوړنده ساتله دي دَپاره چه ددې شاته پټ ساتونکی څیزونه پټ اوساتلې شي

**قوله: أمیطي عنا قرامكِ هذا:** «وني فرمائیل اې عائشه» زمونږ دَمخې نه دا پرده لرې کړه أمیطي معنی لرې کړه اخوا کړه.[۱۰]

[۱] تهذیب الکمال: ۱۸/۱۴۸تهذیب التهذیب: ۶/۳٤۱.
[۲] الجرح والتعدیل: ۵/٤۵۳تهذیب الکمال: ۱۸/۱٤۸.
[۳] الجرح والتعدیل: ۵/٤۵۳تهذیب الکمال: ۱۸/۱٤۸.
[۴] الثقات لابن حبان: ۵/۱۲۳ تهذیب الکمال: ۱۸/۱٤۹.
[۵] تهذیب الکمال: ۱۸/۱٤۹.
[۶] الطبقات الکبری لابن سعد: ۷/۲٤۵.
[۷] تهذیب التهذیب: ۶/۳٤۲.
[۸] کشف الباری: ۲/٤.
[۹] معجم الصحاح ص: ۸۵۵ النهایة فی غریب الحدیث والأثر: ۲/٤٤ معجم تهذیب اللغة: ٤/۳۳۲۷شرح الکرمانی: ٤/۳۷ التوضیح لابن ملقن: ۵/۳۵۰عمدة القاری: ٤/۱٤۲.
[۱۰] التوضیح لابن ملقن: ۵/۳۵۰عمدة القاری: ٤/۱٤۲.

**قوله: لاتزال تصاویر تعرض في صلاتي:** په دې کپړه باندې نقش تصاویر مسلسل زما په مانځه کښې مخې ته راتلوسره ما د مونځ نه غافل کوي. په دې جمله کښې تصاویره اضافت الی الضمیر سره دې. بعض نسخ وکښې دا لفظ اضافت نه بغیرصرف تصاویر دې. رومبی صورت کښې ضمیر کپړې یعنی قرام طرف ته راګرځي.(۱)

**دعلامه عثماني رحمه الله قول:** علامه شبیراحمد عثماني رحمه الله فرمائي د انبیاء علیهم السلام په مونځ کښې داولیاء مغلوب الحال په شان هغه شان استغراق نه وي چه بالکل د بل هیڅ څیز احساس باقي پاتې نه شي څکه چه دا څه لوئي کمال نه دې بلکه دانبیاء علیهم السلام دمونځ احساس باقي پاتې کیدو سره په پوره جمعیت خاطر اواستغراق باطن سره وي.هغوی د فناء اوبقاء مقامات په یووخت جمع ساتي.(۲)

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت: دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** ترجمة الباب وو چه یوسړې په داسې کپړو کښې مونځ اوکړي په کوم چه تصویرونه جوړشوې وي نو دهغه مونځ به فاسد شي که نه؟ خو په حدیث مبارك کښې داسې هیڅ ذکرنه دی په حدیث شریف کښې خودادی چه دمونځ ګذار مخې ته داسې دتصویرونووالا کپړې زوړندوی نوڅه حکم دې؟

په دې باره کښې علامه عیني رحمه الله فرمائي چه دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت په دې طریقه دې چه دمانځه نه خارج نبی کریم ﷺ دداسې پردو د زوړندولونه منع فرمائیلې په کوم چه تصویرونه وو نو دهغه کپړو په اغوستلو سره مونځ کول خو به په درجه اولی منع وي. دې نه علاوه نور لیکي که چرې دلته اعتراض پیداشي چه په ترجمة الباب کښې خو ددوو څیزونوذکردې یو د صلیب دتصویر دکپړو او دویم مطلقاً د تصویرونووالا دکپړو خو په حدیث شریف کښې صرف د یوڅیز ذکردې یعنی مطلقاً دتصویرونو والا دکپړو نومطابقت مکمل نه شو.

نودې جواب دا ورکړې شو چه هغه کپړه په کومه کښې چه د صلیبونو تصویرونه لګیدلي وي دغه کپړه به مطلقاً د تصویرونو والا کپړې سره لاحق کولې شي. څکه چه په دواړو تصویرونوکښې داد اشتراکی خبره ده چه په دې کښې الله ﷻ پریخودو سره دهغوې دعبادت کولوارخ موجود دې.(۳)

**دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله په دې باره کښې درې جوابونه ورکړی دی. دوه خو هم هغه کوم چه علامه عیني رحمه الله ورکړی دی اودریم جواب ئې دا ورکړې چه رسول الله ﷺ دهغه پردې د ختمولو حکم ورکړو نودا د داسې کپړې دمطلقاً استعمال ممانعت ته مستلزم دې.

حافظ صاحب رحمه الله فرمائي بیا ماته دا خبره معلومه شوه چه امام بخاري رحمه الله په ترجمة الباب کښې کوم «ثوب مصلب» ونیلې دې په دې سره اشاره ده د هغوی خبرې دې طرف ته کوم چه د دې حدیث په بعض طرق کښې موجود ده. اوهغه حدیث کتاب اللباس کښې موجود دې په هغې کښې دی «لم یکن

---

(۱) التوضیح لابن ملقن: ۳۵۰/۵عمدة القاري: ۱۴۲/۴تحفة الباري: ۲۹۶/۱.

(۲) فضل الباري: ۵۵/۳.

(۳) عمدة القاري: ۱۴۲/۴.

رسول الله صلى الله عليه وسلم يترك في بيته شيئاً في تصليب إلا نقضه»[۱] او هم په دې روايت كښې د اسماعيلي په نسخه كښې دا الفاظ هم ذكر دي «ستراً أو ثوباً» چنانچه مطابقت پوره شان سره ثابت شو. (۲)

**د حضرت شيخ الحديث رحمه الله رائې:** حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائي دلته دا اشكال پيداكيږي چه په ترجمة الباب كښې دوه جزونه ذكركړې شوي دي يو د تصويرونومتعلق او بل د مصلب كپړې متعلق. اول جز خو د روايت نه ثابتيږي مګردويم جز (ثوب مصلب) د روايت نه نه ثابتيږي.

د شراح رائې داده چه امام بخاري رحمه الله په ډېرو ځايونوكښې ترجمه په قياس سره ثابتوي. دلته ني هم په قياس سره داسې ثابته كړه چه كله د تصويرونووالا په كپړوكښې مونځ كيږي نو په مصلب كښې به په طريقه اولى كيږي. مګر زما په نيز په قياس سره ترجمه ثابتولوضرورت نشته ځكه چه پخپله هم دغه روايت په دويم جلد كښې صفحه ۸۸۸ «كتاب اللباس باب ما وطىء من التصاوير، رقم الحديث: ۵۹۵۴» كښې راځي. په هغې كښې د صليب لفظ موجود دي نو امام بخاري رحمه الله دلته د دغه راتلونكي روايت نه استدلال كړې دې. (۳)

**د تصويرونو والا په كپړه كښې د مونځ كولوحكم:** د مذكوره باب په ترجمه كښې دي «إن صلى في ثوب مصلب أو تصاوير هل تفسد صلاته؟» د دې ترجمة الباب لاندې مذكوره حديث نه امام بخاري رحمه الله دا ثابت كړل چه مونځ ني كيږي ځكه چه حضورپاك خونه مونځ مات كړو او نه ني روستو واپس راګرځولو. ليكن چونكه په نورو احاديثوكښې د تصوير ممانعت راغلې دې په دې وجه به مونځ مكروه وي حنفيه شافعيه مالكيه او په يوروايت كښې د حنابله هم دغه مذهب دې او د حنابله د بل روايت مطابق مونځ به نه كيږي. او د مالكيه په نيزكښې په وخت كښې دننه معلومه شي نو واپس به مونځ راګرځولې شي ګني سره د كراهت به ني مونځ اوشي. د مونځ وخت وتلو نه پس راګرځول نشته دې. (۴)

د دې تفصيل اجمال دادې چه په ثوب مصلب كښې مونځ كول مكروه تحريمي دي، مونځ به بهر حال اوشي ځكه چه د مونځ د كيدو د پاره ستر عورة شرط دې. او په ثوب مصلب سره هم سترعورت حاصليږي. ليكن د صليب شكل چونكه د نصارى شعار دې او د رسول الله ﷺ په دې باره كښې معمول پاتې دې چه حضورپاك ته چرته د دې شكل ښكاره شوې دې هغه ني وران كړې دې يا كه چرته ماتيدونكې څيز وو نوهغه به ني ماتولو. په دې صورت كښې په ثوب مصلب كښې د مونځ اداكول د كراهت نه خالي نه دي.

دويمه مسئله ثوب تصاوير يامكان تصاوير كښې د مونځ اداكولوده. نو په دې باره كښې تفصيل دادې چه كه چرته تصوير د خپو لاندې دې بياخو په دې كښې څه بدينت نشته ځكه چه د دې تصويرونو

---

[۱] صحيح البخاري كتاب اللباس باب ما وطيء من التصاوير رقم الحديث: ۵۹۵٤

[۲] فتح الباري: ۶۲۸/۱

[۳] الكنزالمتواري: ٤۹/٤ تقرير بخاري شريف: ۱۳۱/۲-۱۳۰.

[٤] الفتاوى الهندية كتاب الصلاة الباب السابع فيما يفسد الصلاة وما يكره فيها، الفصل الثاني فيما يكره في الصلاة وما لا يكره: ۱۰۷/۱ بذل المجهود كتاب اللباس باب في الصور رقم الحديث: ٤۱۵۲، ۱۷۸/۱۲-۱۷۷ الاستذكار كتاب الإستئذان باب ماجاء في الصور والتماثيل رقم الحديث: ٤۰۶۹۸، ۱۷۷/۲۷ المغني لابن قدامة كتاب الصلاة باب مايبطل الصلاة: ۳۹۳/۲-۳۹۲ الإنصاف للمراوردي كتاب الصلاة، باب شر ائط الصلاة: ٤۸۶/۱ الروض الندى شرح كافي المبتدى كتاب الصلاة ما يكره في الصلاة: ۸۱/۱ المجموع شرح المهذب كتاب الصلاة باب ستر العورة: ۱۸٤/۳

اهانت او سپکاوې کیږی اود تصویرونو داستعمال دا صورت جائز صورت دې. اوکه چرې تصویر د سر دپاسه دې او زوړند شوې دې نوداسې خائی کښې مونځ کول مکروه دی ځکه چه په دې صورت کښې د تصویر تعظیم دې اودا د بتان د عبادت په شان دی کوم چه جائزنه دې. که تصویرونه مخې ته وی نو په دې صورت کښې هم کراهت دې. که چرې ښی یاګس طرف ته وی نو په دې کښې هم عرض (یعنی د مونځ ګذار په مینځ کښې خلل کیدلو) یوصورت موجود دې په دې وجه په دې صورت کښې هم کراهت سره به مونځ کیږی. لیکن داکراهت (په نسبت دهغه کراهت کوم چه دتصویر مخې ته کیدو کښې وو نه) دکمې درجې دې اوکه چرې تصویرونه شاته وی نو په دې کښې هم کراهت دې لیکن دښی اوګس طرف ته کیدو والاصورت نه کم.بل که چرې هغه کېږې کومې چه استعمالولې شی په هغې کښې تصویرونه دی نوهغه د دوو احوالونه خالی نه دی یا خو هغه تصویرونه د ژوندو دی یا د غیرجاندار دی. که چرې د ژوندو دی نوهغه دکراهت سبب دې ددې د وجې نه به مونځ مکروه وی اوکه چرته دغه تصویرونه د غیرجاندار دی نوهغه هم د دوو حالو نه خالی نه دی یا خو به زړه په هغې کښې مشغول وی یا به مشغول نه وی. که چرې مشغول کیږی نوبیا ددې استعمال کښې کراهت دې اوکه چرې مشغول نه وی نوبیا کراهت به نه وې.هغه مکان چرته چه تصویر موجوددې په هغې کښې هم ددغه ژوندواوجانداروالا فرق دې.اول چه کوم تفصیل بیان شوهغه د ژوند تصویرونو وو اود غیر جاندارتصویرونه که چرته پدغه مکان کښې وی نوهلته دزړه د مشغولتیا په صورت کښې به دکراهت حکم وی او په غیرمشغولتیاکښې به دکراهت حکم نه وی.دې سره سره داخبره هم په ذهن کښې اوساتنی که دژوندی تصویر ډیر وروکې وی واضح نه ښکاری نوپه هغې کښې کراهت نشته دې (۱)

حضرت مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله لیکلی دی معلومه شوه چه د شریعت منشا د تصویرونو اومجسمو په بې توقیرئی کښې ده اودا دعزت او محبت د مقام نه راغورزول دی. لهذا هر هغه صورت په کوم سره چه ددې تعظیم کیږی ممنوع دې اوکوم سره چه سپکاوې کیږی هغه مطلوب باقې مجسمې یا تصویرونه جوړول یا فوټوان اخستل ناجائز اوحرام دی ځکه چه په دې کښې د حق تعالی د تخلیق د صفت مشابهت نه علاوه د غیرالله دعبادت اود ډیرو مفاسدو بدو او بد اخلاقو کومه دروازه کولاوېږی دهغې نه یومنصف عاقل انکار نه شی کولې.(۲)

هم ددې حدیث په دویم طرق کښې دی چه حضرت عائشه رضی الله عنها هغه پرده اوشلوله اودوه تکیه ګانې جوړې کړې وې حضورپاك به په هغې باندې کیناستو هم او ډډه به ئی هم لګوله.(۳) هم ددې نه د دغه تصویرونو د استعمال د اهانت والامواضع کښې جائزکیدل معلومیږی

**دتصویرونو شرعی حکم:** د تصویرونو احکامات تفصیلاً که په نورې طریقو سره وی اوکه په پخوانو طریقوسره په کتاب اللباس کښې به متعلق ځائی کښې راځی

---

(۱) فتح القدیر کتاب الصلاة فصل فی المکروهات: ۴۲۸/۱-۴۲۷ردالمحتار مع الدرالمختار کتاب الصلاة مطلب إذا تردد الحکم بین السنة والبدعة کان ترک السنة أولی: ۴۱۸/۲-۴۱۶ تبیین الحقائق کتاب الصلاة باب ما یفسد الصلاة وما یکره فیها: ۴۱۵/۱-۴۱۴ حاشیة الطحطاوی علی المراقی الفلاح کتاب الصلاة فصل فی المکروهات. ۳۶۲/۱.

(۲) أنوار الباری: ۱۳۶/۱۱.

(۳) صحیح البخاری کتاب اللباس باب ماوطیء من التصاویر رقم الحدیث: ۵۹۵۴.

## ۱۵- باب: مَنْ صَلَّى فِيْ فَرُّوْجِ حَرِيْرٍ ثُمَّ نَزَعَهُ.

دا باب دې دَهغه سړي باره کښې چه دَ ريښمونه جوړشوی کوټ کښې مونځ اوکړي بيا هغه مکروه ګڼړلوسره کوز کړي.

دا ترجمة الباب دَ نبی کريم ﷺ دَهغه فعل حکايت يا ترجماني ده کوم چه په حديث باب کښې راځي.
**دَ فروج معنی:** دا لفظ دَ فاء فتحه او راء مشدده ضمه سره مستعمل دې. دَدې معنی ده هغه دقميص په شان کوټ يا جبه چه دَ شا طرف نه کولاؤ شوي وي. دا چاؤدې ملا سره وي ددې لستوڼړی تنګ وي دا لباس په سفر کښې اودَ جنګ په وخت دَ ډيرې آسانتيا سبب وي.

علامه قرطبی رحمه الله ليکلی دی چه دا لفظ دَ فاء فتحه او ضمه دواړه شان ضبط کړې شوي دې. ليکن ضمه سره معروف دې او راء په هرحال کښې مضموم اومشدده وي. کله کله تخفيف سره هم استعماليږي. ابوالعلاء المعری رحمه الله فرمانی چه دا لفظ دَ فاء ضمه سره اوراء تخفيف سره دې دَخُرُوج په وزن باندې. ليکن دَ لغت امهات الکتب کښې دالفظ دَفاء فتحه او راء مشدد ضمه سره ذکر دې.

## الحديث الأول

[۳۶۸]- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، قَالَ: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: أُهْدِيَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُّوجُ حَرِيرٍ، فَلَبِسَهُ، فَصَلَّى فِيهِ، ثُمَّ انْصَرَفَ، فَنَزَعَهُ نَزْعًا شَدِيدًا كَالْكَارِهِ لَهُ، وَقَالَ: «لَا يَنْبَغِي هَذَا لِلْمُتَّقِينَ» [۵۸۰۱](۱).

**ترجمه:** حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه فرمانی چه نبی کريم ﷺ ته يو ريښمن کوټ په هديه کښې ورکړې شو. حضورپاك هغه واغوستو او مونځ ئې اداکړو. بيا دَ مانځه نه فارغيدو سره زر هغه ريښمن کوټ داسې اوويستلولکه چه حضورپاك داسخت ناخوښه کونکې وي. بيائې اوفرمائيل دالباس دَ پرهيزګارانو دَپاره مناسب نه دې.

### تراجم رجال

**عبدالله بن يوسف:** دا ابومحمدبن يوسف تنيسی کلاعی دمشقی رحمه الله دې. دَدوی تعارف کشف الباري کتاب بدء الوحی دويم حديث او کتاب العلم باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب کښې تيرشوې دې. (۲).

---

(۱) أخرجه البخاري في كتاب اللباس باب القباء وفروج حرير وهو القباء رقم الحديث: ۵۸۰۰ومسلم في صحيحه في كتاب اللباس باب تحريم لبس الحرير وغير ذلک للرجال رقم الحديث: ۵۴۲۷والنسائي في سننه في كتاب الصلاة الصلاة في الحرير رقم الحديث: ۷۷۱وجامع الأصول حرف الصاد الكتاب الأول في الصلاة. الفصل السادس في شرائط الصلاة ولوازمها. الفرع الثالث في ستر العورة النوع الرابع فيما كره من اللباس رقم الحديث: ۳۶۵۱، ۴۶۳/۵وحرف اللام الكتاب الأول في اللباس الفصل الرابع في الحرير النوع الأول في تحريمه. رقم الحديث: ۸۳۳۶، ۶۸۴/۱.

(۲) كشف الباری كتاب بدء الوحی: ۳۸۹/۱ وكتاب العلم: ۱۱۳/۴.

**الليث**: دامشهور امام ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمى مصرى رحمه الله دي. دَدوى حالات كتاب بدء الوحى دَدريم حديث په ذيل كښې تير شوى دى.[1]

علامه كرمانى رحمه الله دَدوى باره كښې ليكلى دى چه خليفه منصور عباسي دوى ته ولايت دَ مصر وړاندې كړو خوهغوى قبول نه كړو.[2] په دې باندې رد كولوسره علامه عينى رحمه الله فرمائى دا خبره تيك نه ده بلكه هغوي دَ څه مودې پورې په دې عهده باندې پاتې وو[3] اودې دَ امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله دَ متبعينونه وو.[4]

**يزيد**: دا ابورجاء يزيد بن ابى حبيب سويد رحمه الله دي. دَدوى حالات كتاب الإيمان باب إطعام الطعام من الإسلام كښې تيرشوى دى.[5]

**ابي الخير**: دا مرثد بن عبدالله مزنى مصرى رحمه الله دي. دَدوى تذكره هم كتاب الإيمان باب إطعام الطعام من الإسلام كښې تيره شوى دى.[6]

**عقبة بن عامر**: داحضرت عقبه بن عامر بن عبس بن عمرو بن عدى بن عمرو الجهنى رضي الله عنه دي[7]: دَدوى كنيت باره كښې ډير زيات اقوال دى اب.حماد، ابوسعاد، ابوعامر، ابوعمرو، ابوعبس، ابواسد او ابوالاسود.[8] دا صحابى رسول دي[9] دَ اصحاب صفه نه وو[10] دي دَ نبى كريم ﷺ اوحضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت كوى.[11]

اودَدوى نه روايت كونكو يولوئى جماعت دې په هغې كښې دَ مشهورو ذكردلته كولې شي ابوالخير مرثد بن عبدالله اليزنى، مسلمه بن خالد، معاذ بن عبدالله بن خبيب الجهنى، عمر بن سفيان بن عبدالله، ربعى بن خراش، سعيد المقبرى، عبدالله بن عباس، عكرمه مولى ابن عباس، قيس بن ابى حازم، ابوقبيل المعافرى او ابوالهيثم العتواري وغيره رحمهم الله شامل دى.[12]

دَدوى دَصفاتو باره كښې په كتب الرجال كښې ذكردى «كان عالمًا، مقرئًا، فصيحًا، فقيهًا فرضيًا، شاعرًا كبير الشأن»[13] هغوى به قرآن پاك په ډير خوږ آواز سره لوستلو يوځل حضرت عمر رضي الله عنه هغوى ته اووئيل ماته قرآن پاك واوروه، دَهغوى قرآن ئى چه واوريدو نو حضرت عمر رضي الله عنه دَهغوى قراءت اوريدوسره په

---

[1] كشف البارى: ۳۲٤/۱.
[2] شرح الكرمانى: ۳۸/٤.
[3] عمدة القارى: ۱٤٤/٤.
[4] وفيات الأعيان: ۱۲۷/٤مقدمة نصب الراية: ٤۰/۱مقدمه انوارالبارى: ۲۱۲/۱.
[5] كشف البارى: ٦۹٤/۱
[6] كشف البارى: ٦۹٤/۱
[7] تهذيب الكمال: ۲۰۲/۲۰سير أعلام النبلاء: ٤٦۷/۲.
[8] الجرح والتعديل: ۳۰۱/٦الكاشف: ۲٦٦/۲.
[9] تهذيب الكمال: ۲۰۳/۲۰سير أعلام النبلاء: ٤٦۷/۲.
[10] الجرح والتعديل: ۳۰۱/٦ سير أعلام النبلاء: ٤٦۸/۲.
[11] تهذيب الكمال: ۲۰۳/۲۰تهذيب التهذيب: ۲٤۲/۷.
[12] تهذيب الكمال: ۲۰۲-۲۰۳/۲۰تهذيب التهذيب: ۲٤۲/۷.
[13] سير أعلام النبلاء: ٤٦۷/۲تهذيب التهذيب: ۲٤۳/۷.

ژړا شو.[1] هغوی كاتب هم وو. كومو صحابه كرامو چه د قرآن كتابت كړې وو په هغوی كښې يو دې هم وو. د دوی د لاس ليكلې شوې قرآن پاك نن هم په مصر كښې محفوظ دې. دهغه قرآن ترتيب جمع د دې ترتيب مطابق نه دې كوم چه مصحف عثماني كښې دې.[2]

هغوی پخپله فرمائی چه كله ماته (مدينه كښې) د حضورپاك د تشريف راوړلو خبر ملاؤ شو هغه وخت ما د چيلو يوه رمه څروله. ما هغه پريخودې او د حضورپاك په خدمت كښې حاضرشوم اوعرض مې اوكړو يا رسول الله! زه تاسو له د بيعت په غرض سره حاضرشوې يم. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د بيعت عربيه اراده دې ده كه د بيعت هجرة؟ بيا ما بيعت اوكړو اوحضورپاك سره حصار شوم حضورپاك يوه ورځ مونږ (اصحاب صفه) نه تپوس اوكړو تاسوكښې (قبيله) معدنه څوك دې؟ هغه دې اودريږې څه كسان اودريدل زه هم هغوی سره اودريدم. حضورپاك اوفرمائيل كينه زه كيناستم بيا حضورپاك دغه شان دوه يا درې ځل معلومات اوكړل آخر ما تپوس اوكړو چه يارسول الله ﷺ ولې مونږ دمعد نه نه يو؟ حضورپاك جواب وركړو نه. ما تپوس اوكړو بيا مونږ څوك يو؟ حضورپاك جواب اوكړو چه تاسو د قبيله فضاعه بن مالك بن حمير نه يئې.[3]

هغوی به توره وسمه استعمالوله او فرمائيل به ئې:

## نُغَيِّرُ أعلاهـا وتأبى أصولُهـا

مراد دا جوړيږې چه مونږ خودې ويښتو پورته حصه رنګ كوو خودې ويښتو جرړې (د بدليدونه) انكار كوی يعنې ډير زر نوې راوځې او سپينوالی ښكاره كوی.[4]

دوی دريو كالوپورې دمصر والی هم پاتې دی. بيا دهغوی په ځائې مسلمه بن مخلد والی مصر جوړ كړې شو. هغه وخت دوی د اسكندريه طرف ته د جهاد په سفر كښې وو. هلته هغوی ته د دوی دمعزول كيدو خبر اورسيدو نو وئې فرمائيل سبحان الله! مسافرت هم اومعزولی هم يوځائې جمع شو.[5] د علامه واقدی رحمه الله بيان دې چه هغوی دحضرت امير معاويه رضي الله عنه د طرف نه په جنګ صفين كښې هم شريك شوې وو.[6]

د دوی نه روايت كړې شوی احاديث ډير زيات دی. دحضرت عبادة بن نسی نه مروی دی چه دعبدالملك بن مروان په خلافت كښې، ما يوسړی سره يوه ګنړه اوليدله او هغه سړی د دوی په وړاندې احاديث بيانول. ما تپوس اوكړو دا محدث څوك دې؟ نوخلقو اووئيل دا عقبه بن عامر رضي الله عنه دې.[7]

د دوی يوكور دمشق كښې دباب توما يوطرف ته وو. دهغوی وفات دحضرت اميرمعاويه رضي الله عنه په دورخلافت كښې شوې.[8] دا ۵۸هجری كال وو.[9]

---

[1] سیرأعلام النبلاء: ۴۶۸/۲.
[2] تهذیب التهذیب: ۲۴۳/۷ تذکرة الحفاظ: ۴۳/۱.
[3] الطبقات الکبری لابن سعد: ۳۴۴/۴.
[4] تذکرة الحفاظ للذهبي: ۴۳/۱الطبقات الکبری لابن سعد: ۳۴۴/۴ تهذیب التهذیب: ۲۴۳/۷.
[5] التاریخ الکبیرللبخاري: ۴۳۰/۶سیرأعلام النبلاء: ۴۶۸/۲تهذیب التهذیب: ۲۴۳/۷.
[6] تهذیب الکمال: ۲۰۵/۲الطبقات الکبری لابن سعد: ۳۴۴/۴.
[7] تذکرة الحفاظ للذهبي: ۴۳/۱تهذیب التهذیب: ۲۴۳/۷.
[8] الطبقات الکبری لابن سعد: ۳۴۴/۴ سیرأعلام النبلاء: ۴۶۹/۲.
[9] الکاشف: ۲۶۶/۲تهذیب الکمال: ۲۰۵/۲تهذیب التهذیب: ۲۴۳/۷.

## شرح حديث

**قوله: أهدي إلى النبي صلى الله عليه وسلم فروج حرير:** رسول الله ﷺ ته دَ ريښمو يوكوټ هديه كړې شو. داد چا دطرف نه وركړې شوې وو؟ په دې باره كښې دَ نورو رواياتونه معلوميږي چه هغه دَ دومة الجندل بادشاه اكيدر بن عبدالملك هدية وركړې وو. (۱) دا عيسائي بادشاه وو.

علامه انورشاه كشميري رحمه الله دَ دومة الجندل تاريخي واقعات اجمالاً نقل كړي دي چه دلته بيانولې شي: په ربيع الاول ۵هجري كښې دَغزوه دومة الجندل واقعه پيښه شوه يعني حضورپاك ته خبر اورسيدو چه هلته دكافرانو ګنړه دَدې دَ پاره راجمع كيږي چه په مدينه طيبه باندې حمله اوكړي. په دې وجه حضورپاك دَ زرو صحابه كرامو رضي الله عنهم سره هغه طرف ته روان شو. په لاره كښې معلومه شوه چه داسې اهم څه اجتماع نشته دې. دَ بعض نقول نه معلوميږي چه هغه ټول دَ حضورپاك دَ راتلو خبر اوريدو سره خواره شول.پدې وجه حضورپاك واپس شو. دې نه پس دَ سريه دومة الجندل واقعه اوشوه.

په كوم كښې چه عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه شعبان ۶هجري كښې هلته تشريف يوړو او دَ هغه خاني عيسايانوته ئې درې ورځې وعظ اوتبليغ اوكړو په كوم سره چه دَهغه خاني سردار مسلمان شوې وو دريمه واقعه سريه دومة الجندل په ۹هجري كښې پيښه شوه په كوم كښې چه حضورپاك دَ غزوه تبوك په موقع حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه هلته ليګلې وو. هغوى دَهغه خاني حاكم اكيدر قيدولوسره دَ حضورپاك په خدمت كښې مدينه طيبه ته ليګلې وو. حضورپاك دَهغوى خان اوبخښلو اودَ جزيه اداكولو وعده باندې ئې دَهغه علاقه هم هغه ته حواله كړې وه.

څلورمه واقعه دَ خلافت صديقي په ۱۳هجري كښې پيښه شوه چه حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه دَدومة الجندل قلعه فتح كولوسره دَهغې دواړه سرداران اكيدر او جودى بن ربيعه قتل كړل. (۲)

دومة الجندل دَ يوې قلعه نوم دې. دا لفظ دَ دال په ضمه او فتحه دواړه شان نقل دې. دَ ابن دريد وينا ده چه دا هم ضمه سره لوستل جائزدي، فتحه سره نه. محدثين حضرات دا فتحه سره لولي هغوى په دې باره كښې په خطاء باندې دي. ليكن داسې صحيح نه دي. جوهرى رحمه الله ليكلي دي چه دواړه مشهور لغتونه دي. اهل لغت دا ضمه سره لولي اومحدثين كرام فتحه سره دواړه صحيح دي. (۳)

دومة الجندل يوه قلعه وه چه دَشام اوعراق په سرحد باندې وه. دَ دمشق نه ۷ مرحلې (۱۱۲ ميل) اودمدينه طيبه نه ۱۲ مرحلې (۲۰۸ميل) باندې، په نقشه كښې دَ تبوك فاصله هم دَمدينې طيبې نه ۱۳مرحلې معلوميږي چرته چه نبي كريم ﷺ رجب ۹ هجري كښې تشريف اوړلې وو (۴)

اكيدر بن عبدالملك الكندى همزه ضمه او كاف فتحه سره متعمل دې. خطيب بغدادي رحمه الله خپل كتاب الأسماء المبهمة في الأنباء المحكمة كښې ليكلي دي دا سړې نصراني وو بيا مسلمان شو بيا مرتدشو او هم نصرانيت باندې وفات شو. (۱)

(۱) صحيح البخاري كتاب الهبة باب قبول الهدية من المشركين رقم الحديث: ۲۶۱۶ صحيح مسلم كتاب اللباس والزينة باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة على الرجال رقم الحديث: ۵۳۸۹مسند أبي يعلى الموصلي مسند علي ابن أبي طالب رقم الحديث: ۴۳۳، ۲۱۵/۱.

(۲) أنوار الباري: ۱۳۸/۱۱أسدالغابة في معرفة الصحابة: ۱۳۴/۱شرح النووي على صحيح مسلم: ۲۷۵/۱۴.

(۳) معجم الصحاح ص: ۳۶۳النهاية في غريب الحديث والأثر: ۵۸۹/۱.

(۴) شرح النووي: ۲۷۵/۱۴عمدة القاري: ۱۴۴/۴أنوارالباري: ۱۳۷/۱۱.

ابونعیم اصبهانی رحمه الله خپل کتاب معرفة الصحابه کښې لیکلی دی چه اکیدر اسلام قبول کړې وو.[۲] اوحضورپاك ته ئې هدیه هم رالیګلې وه. ابن الاثیر رحمه الله خپل کتاب أسدالغابة فی معرفة الصحابة کښې لیکلی دی چه دَ هغه هدیه پیش کول او صلح کول خو صحیح دی لیکن دَهغه اسلام قبلول صحیح نه دی. هغه اسلام قبول کړې نه وو او په دې خبره کښې دَاهل سیر نه دَ چا اختلاف نشته دې کوم سړې چه دَ هغه دَ اسلام دَ قبلولو قائل دې هغه په ښکاره او فحش غلطئی باندې دې.[۳] دا نصرانی وو دَهغه په قلعه چه کله حضورپاك حمله اوکړه نوهغه دَ صلح پیش کش اوکړو نورسول الله ﷺ هغه سره صلح اوکړه اوهغه ئې په دغه قلعه کښې باقی پرېخودو..... الخ.[۴]

**قوله: لاینبغی هذا للمتقین:** رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه دَ ریښمو دَ لباس استعمال دَ پرهیزګاره دَ پاره مناسب نه دې. یوبل روایت کښې دی «إن هذا لبس من لباس المتقین».[۵]

**دَ لفظ لاینبغی معنی:** علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی چه لفظ لاینبغی نه جواز مه ګڼرئی ،او دَدې دا مطلب مه اخلئی چه ریښمنه کپړه جائز خوده البته مناسب نه ده، بعض ځائی کښې حرام او ممتنع باندې هم دَعدم ابتغاء اطلاق کولې شی. (یعنی لفظ لاینبغی استعمالولې شی لکه) قرآن مجید کښې دی: ﴿وَمَا يَنبَغِي لِلرَّحْمَٰنِ أَن يَتَّخِذَ وَلَدًا﴾.[۶]

حالانکه اتخاذ ولد دَرحمن په حق کښې محال اوممتنع دې او په یوه درجه کښې هم جائزنه دې.[۷] لیکن په قرآن پاك کښې په دې ځائی دَ لا ینبغي لفظ استعمال کړې شو چنانچه په دې ځائی کښې دَدې لفظ معنی مناسب نه دی کول په هیڅ شان سره صحیح نه ده للمتقین، دَمتقین نه مراد هغه کسان دی چه دکفر نه بچ کیدونکی دی یعنی مطلقًا مسلمان مراد دی. عام دادی چه هغوی دَ ګناه نه بچ کیدونکې اوکه نه وی، دَ ریښم حرمت په متقی اوغیر متقی دواړو باندې ثابت دې.[۸]

**ایا دَ ښځودپاره هم ریښم استعمالول جائز نه دی؟** دې ځائی کښې یواعتراض کیږی چه په دې مقام متقین دَ جمع مذکر سالم صیغه استعمال کړې شوې اوقاعده داده چه په جمع مذکر سالم کښې نبعًا مؤنث هم داخل وی. دې نه به نتیجه اوخی چه دَ ریښم حرمت څنګه دَ متقین مذکر دَپاره ثابت شو دغه شان په حرمت کښې متقیات مؤنث هم داخل شو حالانکه دَ ښځودپاره ریښم استعمالول جائز دی دَدې جواب دادې چه دا قاعده کلیه نه ده چه دَهرمذکر لاندې مؤنث هم داخل وی لهذا په دې ځائی کښې دَ حرمت په حکم کښې اشتراك لازم نه راځی اوکه چرې اومنلې هم شی نوونیلی به شی چه دَښځودپاره دَ ریښم دَ استعمال حلت دَ نورو دلائلو او نصوص نه ثابت دې.[۹]

---

[۱] کتاب الأسماء المبهمة فی الأنباء المحکمة حدیث إکیدر بن عبدالملك ص: ۲٤.
[۲] معرفة الصحابة لأبی نعیم الأصبهانی: ۳۲۵/۱.
[۳] أسدالغابة فی معرفة الصحابة: ۱۳٤/۱.
[۴] شرح النووی علی صحیح مسلم: ۲۷۵/۱٤عمدة القاری: ۱٤٤/٤.
[۵] المعجم الکبیر للطبرانی أبوالخیر مرثدبن عبدالله رقم الحدیث: ۷۵۸، ۲۷۵/۱۷.
[۶] سورت مریم: ۹۲.
[۷] فضل الباری: ۵٦/۳.
[۸] فتح الباری: ٦۲۹/۱عمدة القاری: ۱٤٤/٤إرشادالساری: ۳۸/۲تحفة الباری: ۲۹۷/۱.
[۹] شرح الکرمانی: ۳۸/٤عمدة القاری: ۱٤٤/٤إرشادالساری: ۳۸/۲تحفة الباری: ۲۹۷/۱الکوثرالجاری: ٦۰/۲.

**نبي کريم ﷺ د ريښموکوټ سره د حرمت نه ولې واچولو؟** علامه کرماني رحمه الله دلته يو سوال او جواب نقل کړې دې. که چرې اعتراض اوکړې شي چه رسول الله ﷺ څنګه ريښمن کوټ استعمال کړو سره د دې چه ريښم د سړو دپاره حرام وو؟ د دې جواب علامه کرماني رحمه الله دا ورکړې دې چه حضورپاک کله دغه کوټ استعمال کړو نوتر هغه وخته پورې د دې د حرمت حکم نه وو نازل شوې.

بيا که اعتراض اوکړې شي چه د دې په شان معامله ته خو نسخ وائي. په دې حيثيت سره چه حبيب پاک ﷺ اول د دې اغوستل جائز ګرځولې دی او بيائي حرام کړی دی نو رومبې حکم په دويم سره منسوخ شو. نو د دې جواب دادې چه دا نسخ نه ده ځکه چه په دې مسئله کښې د ريښمو استعمال اصلاً مباح دې او په نسخ کښې ضروري دی چه منسوخ شوې حکم صحيح شرعي وی (اومباح کيدل حکم صحيح شرعي نه وی). اوکه چرې اومنلې شي چه منسوخ شوې حکم شرعي دې نوبيابه هم دې ته نسخ نه شي وئيلې ځکه چه په نسخ کښې خو دا کيږي چه حکم د ټولو مکلفينونه اوچتولې شي نه چه د بعض نه (اومسئله مبحوث عنها کښې حکم جواز صرف د سړو نه اوچت کړې شوې دې نه چه د ښځو نه). که چرې داسې وی چه حکم د بعض نه اوچت کړې شي او بعض نه اوچت نه کړې شي (لکه څنګه چه دلته شوی) نوځغې ته تخصيص وائی نه چه نسخ [1]

**دعلامه عيني رحمه الله په علامه کرماني رحمه الله باندې رد:** علامه عيني رحمه الله د علامه کرماني رحمه الله په دې خبره باندې فرمائيلي دی چه زه وايم د حضورپاک دغه ريښمي لباس اغوستل يوحکم دې او بيا دا کوزول بل حکم دې اوځنګه چه دويم حکم حکم شرعي دې دغه شان رومبې حکم هم حکم شرعي دې او دويم حکم اول حکم منسوخ کړو او دويم حکم سړو اوښځو ته عام دې خو بياهم د ښځو دپاره د دې لباس حلت دنورو نصوصو نه دې. (خلاصه دا چه دلته هم نسخ موندلې شي تخصيص نه) [2]

**دعلامه کوراني رحمه الله جواب:** دعلامه عيني رحمه الله جواب په نور تفصيل سره علامه کوراني رحمه الله داسې بيان کړې دې. دعلامه کرماني رحمه الله کلام په ډيرو وجوهاتو سره فاسد دې مثلاً

① په دې ځاني کښې چه کوم سوال قائم کړې شوې چه کله ريښم حرام وو نو حضورپاک هغه څنګه واغوستل،هم دانه شي منلې ځکه چه حضورپاک ته د دې د حرمت علم وې نوداخبره په قطعي توګه سره ثابته ده چه حضورپاک به دا نه اغوستل

② دعلامه کرماني رحمه الله جواب پخپلو کښې يوبل سره معارض دې هغه داسې چه يوطرف ته خو علامه صاحب اوفرمائيل چه د ريښم داستعمال حکم اصلاً مباح دې اوبل طرف ته علامه صاحب اوفرمائيل چه اول نبي کريم ﷺ د دې استعمال جائز ګرځولې اوبيائي د دې استعمال حرام ګرځولې

د دې وضاحت داسې دې چه دعلامه صاحب جوزلسه ونيل د الإباحة الأصلية معارض دې اوهغه داسې چه جائز ګرځولو مطلب دا وی چه اول يو څيز حرام وو بيائی دا جائز اوګرځول اوبل طرف ته وائي چه دا استعمال مباح اصلي دې نو هم په يوځاني کښې اباحت اوحرمت څنګه جمع شو؟

③ علامه صاحب رحمه الله فرمائي ((فالنسخ يكون رفعاً للحكم عن المكلفين، وهذا رفع عن البعض، فهو تخصيص)) يعنې په نسخ کښې خوحکم د ټولو مکلفينونه اوچتولې شي چه د بعض نه اوچت شي اود بعض نه اوچت نه شي نودا نسخ نه بلکه تخصيص وی.

---

[1] شرح الكرماني: ٣٨/٤.

[2] عمدة القاري: ١٤٤/٤.

په دې باندې علامه کوراني اوفرمائيل چه داخبره دمنلونه ده چه کله دبعض نه حکم اوچت شي نوهغې ته تخصيص وائي نه چه رفع، په دې وجه تخصيص خو نوم دې دمتکلم د ارادې مطابق حکم کښې دبعض کسانو دعدم دخول بيانول،لهذادلته به رفع وی اوهلته به هم نسخ وی نه چه تخصيص [1]

**دَ شيخ الحديث رحمه الله رائې**: حضرت شيخ الحديث رحمه الله ددې سوال په جواب کښې فرمائي چه علامه عيني رحمه الله ددې دا جواب ورکوی چه دَ حضورپاك دا فعل (يعنی فروج ريښم اغوستل) دتحريم ريښم نه وړاندې واقعه ده. په داسې صورت کښې دَ حضورپاك دا کالکاره ويستل دَقلب طهر صفائي اود راتلونکي حرام کيدونکي څيز نه دنفرت اظهار دې.

اوزما رائې داده چه دا قبل التحريم باندې محمول کولو ضرورت نشته بلکه په دې کښې حضورپاك په دې کښې مونځ دَ جواز اوتعليم دپاره کړې دې. اودائې اوخودل چه مونځ خو به اوشی مګر مکروه به وی اودې سره سره دَ ريښمو دَ استعمال ګناه به هم وی.[2]

**دَعلامه نووی رحمه الله رائې**: دې ذکرشوی جواب سره علامه نووی رحمه الله يو بل جواب ورکړې دې چه کوم وخت حضورپاك دغه لباس دَ ناخوښئی نه کوز کړو نوهم دهغه وخت نه دَنهی او حرمت شروع اوشوه په دې وجه رسول الله ﷺ يو بل حديث اوفرمائيلو «نهاني عنه جبريل»[3]، نو دَ«نهاني» لفظ دلالت کوی چه ددې نه دحرمت شروع شوې ده.[4]

**دحضرت ګنګوهی رحمه الله رائې**: رسول الله ﷺ دا لباس دَمونځ نه فارغيدوسره دَ ناخوښئی اظهار کولو سره زر اوويستلو لکه چه دَ مونځ په حالت کښې وحی نازل شوې وی لکه چه دَ حضورپاك زر ددې لباس ويستلو نه دلالت کوی.[5]

**په ريښمن لباس کښې دَ مونځ کولوحکم**: هم ددې حديث آخری جمله چه "حضورپاك دَناخوښئی اظهارکولوسره هغه کوټ اوويستلو" نه دا مسئله مستنبط کيږی چه ريښمن لباس اغوستو سره به مونځ اوشی اوکه نه؟ نو ددې باره کښې امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله امام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله مذهب دادې چه داسې لباس کښې مونځ کول مکروه تحريمی دی. که چرې چا داسې مونځ اوکړو نو فريضه به ئې دَ ذمې نه ساقط شی ليکن دَ ګناه سره. البته ددې ائمه کرامو نه امام مالك رحمه الله دا فرمائي چه په داسې سړی باندې په وخت کښې دننه دَمونځ اعاده کول واجب دی اوکه چرې وخت تير شو نوبيا به ددې نه اعاده ساقط شی.[6]

---

[1]) الکوثر الجاری:۲/۶۱۔

[2]) تقرير بخاری شريف:۲/۳۴۷الکنزالمتواری: ۴/۵۱۔

[3]) صحيح مسلم کتاب ا للباس والزينة، باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة رقم الحديث: ۵۳۸۹۔

[4]) شرح النووی علی صحيح مسلم کتاب اللباس والزينة باب تحريم استعمال إناء الذهب والفضة: ۱۴/۲۷۷فتح الباری: ۱/۶۲۹۔

[5]) الکنزالمتواری: ۴/۵۱۔

[6]) حاشية ابن عابدين کتاب الصلاة مطلب فی سترالعورة: ۲/۷۵البحرالرائق کتاب الصلاة باب شروط الصلاة: ۱/۴۷۸الجوهر النيرة کتاب الصلاة شروط صحة الصلاة: ۱/۵۵حاشية الدسوقی علی الشرح الکبير کتاب الصلاة فصل فی ستر العورة: ۱/۳۴۹-۳۴۸ المدونة الکبری کتاب ماجاء فی الصلاة فی الثوب يصلی فيه وفيه النجاسة: ۱/۳۴التاج والإکليل کتاب الصلاة فصل فی ستر العورة: ۱/۵۰۴ العزيز شرح الوجيز. کتاب الصلاة باب سترالعورة: ۲/۴۲روضة الطالبين الباب الخامس فی شروط الصلاة: ۱/۳۹۳ المجموع شرح المهذب کتاب الصلاة باب

د شوافعو کتاب المهذب کښې دی دسرې دپاره جائزنه دی چه هغه دې ریښمن لباس اغوستو سره مونځ ادکړی اونه داجائز دی چه په یوه ریښمی کپړه باندې اودریدو سره مونځ اوکړی خکه چه په دغه سرې باندې د مانځه نه بهر د ریښمو استعمال حرام دې نو په مانځه کښې خو به په درجه اولی حرام وی بیاکه دمذکوره دواړو صورتونونه یوصورت کښې مونځ اداکړونود مونځ فریضه به نې اداشی ددې دپاره ددې حرمت دمونځ سره نه دې اونه ممانعت دمانځه طرف ته راګرځی. نودا به دمونځ د صحت دپاره مانع نه وی اود ښځې دپاره جائز دی چه هغه دې ریښمن لباس اغوستو سره مونځ اوکړی خکه چه دښځې دپاره بهر دمانځه نه یا داخل په مانځه ښې د ریښمن لباس استعمال ممنوع نه دې (۱)

په دې مسئله کښې دحنابله دوه روایتونه دی: دهغوی په مشهورروایت کښې دادی چه دداسې سړی مونځ به صحیح نه وی. ابن عقیل دا ذکرکړی دې اوداحکم هغه وخت دې کله چه هغه ته د ریښمو لباس دحرمت حکم وی اوکه چرې هغه ته علم نه وی نودهغه مونځ به دکراهت سره اداشی. خلال او صاحب الفنون دا ذکرکړی دی هم دغه دهغوی دویم روایت دې (۲)

**دحضرت ګنګوهی رحمه الله قول** په دې مقام باندې حضرت رشیداحمد ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه په دې کښې په دې خبره باندې دلالت دې چه دمانځه جواز دحرمت سره جمع کیدې شی لکه چه د احنافو مذهب دې اودحرام فعل به خطا سره ارتکاب سبب به څه بل جهت نه څه نعمت هم ملاویږی کوم چه حرام نه وی لکه چه په دې روایاتوکښې ددې حرامو لباسونوحرمت دمونځ د جائز کیدو نه مانع نه جوړیږی. (۳)

**د روایت ترجمة الباب سره مناسبت** ددې روایت ترجمة الباب «باب من صلی فی فروج حریر ثم نزعه» وو په دې ترجمه سره دحدیث مناسبت په مکمل توګه سره ښکاره دې (۴)

**دحدیث مبارک نه مستنبط امور** ددې حدیث شریف نه دا امور مستفادکیږی: ① په دې حدیث کښې د سړو د پاره په ریښمو اغوستلو په حرمت باندې واضح دلیل دې ② داهم معلومیږی چه دا حرمت صرف د سړو په حق کښې دې دښځو په حق کښې نه دې ③ ددې حدیث نه دغیر مسلم هدیه قبولولو جواز هم معلومیږی خکه چاچه ریښمن کوټ هدیه کړې وو هغه مسلمان نه وو. ④ په ریښمن لباس کښې د مانځه جواز معلوم شو خو سره ددې چه مکروه دې (۵)

.....................

ستر العورة: ۱۷۹/۳ الفقه الإسلامی وأدلته کتاب الصلاة الصلاة فی الثوب الحرام: ۷۴۰/۱ نیل الأوطار باب الصلاة فی ثوب الحریر والغصب: ۸۰/۲

(۱) المجموع شرح المهذب کتاب الصلاة باب ستر العورة: ۱۷۹/۳.

(۲) المبدع شرح المقنع لابن مفلح الحنبلی کتاب الصلاة باب ستر العورة: ۳۲۵/۱-۳۲۴ الإقناع فی فقه الإمام أحمدبن حنبل کتاب الصلاة باب ستر العورة وأحکام اللباس: ۸۹/۱ الإنصاف فی معرفة الراجح من الخلاف علی مذهب ابن حنبل کتاب الصلاة باب ستر العورة: ۴۵۷/۱ المغنی لابن قدامة کتاب الصلاة باب ستر العورة لباس المصلی: ۳۴۲-۳۴۳/۱ شرح ابن بطال: ۱/۲ ۴ التوضیح لابن ملقن: ۳۵۴/۵-۳۵۳ فتح الباری: ۶۲۹/۱

(۳) الکنز المتواری: ۵۲/۴.

(۴) عمدة القاری: ۱۴۴/۴.

(۵) شرح الکرمانی: ۳۸/۴ عمدة القاری: ۱۴۶/۴ الشرح المیسر لصحیح البخاری: ۴۳۱/۱.

# ۲۱- باب: اَلصَّلَاةِ فِيْ الثَّوْبِ الْأَحْمَرِ.

دا باب دې په سره کپړه کښې د مانځه د حکم په بیان کښې.

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله مذکوره ترجمة الباب قائمولوسره داخودل غواړی چه سرې کپړې اچولوسره د مونځ کولوڅه حکم دې؟ اودهغه د صنیع نه معلومیږی چه د هغه مقصد به دې کپړوکښې د مونځ جائز کیدل خودل دی.(۱)

**د حافظ ابن حجر رحمه الله په احنافو باندې رد:** د دې ترجمة الباب نه پس حافظ صاحب رحمه الله فتح الباری کښې لیکلی: (۲)

دا ترجمه سرې کپړې اغوستو سره د مونځ جائزکیدو طرف ته اشاره کوی په دې مسئله کښې د امام بخاری رحمه الله اوشوافع د احنافو سره اختلاف دې. احناف وائی چه سرې کپړې اغوستلوسره مونځ کول مکروه دی.اوبه حدیث الباب کښې احناف تاویل کوی په کومه سره کپړه کښې چه نبی کریم ﷺ مونځ اداکړو هغه مکمل سره نه وه بلکه په هغې کښې سرې کرښې وې په کوم کښې چه مونځ اداکول مکروه نه دی.

نور فرمانی چه د احنافو دلائل کښې د سنن ابی داؤد حدیث دې. په کوم کښې چه دی د نبی کریم ﷺ تیریدل په یوداسې سړی باندې اوشو دکوم په بدن چه دوه سرې کپړې وې. هغه سلام اوکړو لیکن رسول الله ﷺ د هغه د سلام جواب ورنه کړو. نوداحدیث ضعیف الاسناد دی.(۳)

**د علامه عینی رحمه الله په حافظ صاحب باندې رد:** د حافظ صاحب رحمه الله د مذکوره کلام باره کښې علامه عینی رحمه الله لیکلی دی: زه وایم چه حنفیه د جواز خلاف نه دی. که چرې دې اعتراض کونکې صاحب د احنافو مذهب پیژندلو نوده به داسې خبره نه کوله. نور فرمانی چه حافظ صاحب دا هم ونیلی دی د حنفیه په دلائلو کښې حدیث ابی داؤد هم دې چه ضعیف الاسناد دې.

علامه عینی رحمه الله په دې باندې لیکلی دی چه دې معترض صاحب د عصبیت د وجې نه دومره وینا کولوسره خاموشی اختیارکړې ده حالانکه د ابوداؤد دا حدیث امام ترمذی رحمه الله هم خپل کتاب کښې ذکر کولوسره لیکلی دی: «هذا حديث حسن»(٤)

د علامه عینی رحمه الله د دې قول باره کښې عرض دې چه کیدې شی دغه وخت علامه صاحب سره د فتح الباری نسخه وی او په هغې کښې صرف هم دومره وی څومره چه علامه صاحب ذکر کړی (چه حافظ صاحب صرف د ابوداؤد والاحدیث ته ضعیف ونیلې او د صاحب ترمذی رحمه الله کلام «هذا حديث حسن» ئی ذکرنه کړو) گنی هغه وخت د فتح الباری په متداول نسخوکښې په دې مقام باندې داعبارت «وإن وقع في بعض نسخ الترمذي أنه قال: حديث حسن صحيح، لأن في سنده كذا»(۵)، د دې عبارت د وجې نه د علامه عینی رحمه الله په حافظ صاحب رحمه الله باندې مذکوره اعتراض نه وارد کیدلو. البته دا هم ممکن ده

---

(۱) عمدة القاري: ١٢٤/٤فتح الباري: ٦٢٩/١.

(۲) فتح الباري: ٦٢٩/١

(۳) سنن أبي داؤد كتاب الصلاة باب مايستر المصلي رقم الحديث: ٦٨٨.

(٤) سنن الترمذي أبواب الصلاة باب ماجاء في إدخال الأصبع في الأذان عند الأذان رقم الحديث: ١٩٧.

(۵) فتح الباري: ٦٢٩/١

چه روستو د دې عبارت اضافه کړې شوې وی.(۱)

**دسور لباس د استعمال باره کښې د احنافو مذهب** دسور لباس د استعمال او په هغې کښې د مونځ کولو باره کښې د احنافو په نيز اووه يا اته اقوال دی. د دغه فقهاؤ د اقوالو د اختلاف وجه داده چه په دې باره کښې مختلف احاديث دی. د رواياتو د تعارض د فقهاؤ د اقوالو د مختلف کيدو په وجه دی. علامه حصکفی رحمه الله فرمائې چه علامه شرنبلالی رحمه الله يوه رساله ليکلې وه په کوم کښې چه اته مختلف اقوال جمع کړې شوې وو.(۲)

علامه شامی رحمه الله فرمائی چه د دغه رسالې نوم «تحفة الأكمل والهمام المصدر لبيان جواز لبس الأحمر» دې.(۳)
صاحب تنوير رحمه الله ليکلی دې چه په زعفرانی رنګ کښې رنګ کړې شوې د سور او زيړ رنګ اغوستل مکروه دی. د دې نه علاوه د نورو رنګونو په استعمال کښې څه حرج نشته. بيا د دې په شرح کښې علامه حصکفی رحمه الله ليکلی دی چه مذکوره رنګ د ښځو د پاره مکروه نه دې صرف د سړو د پاره مکروه دې. اومجتبٰی قهستانی او ابوالمکارم په شرح النقايه کښې دی چه د سوررنګ کپړې په استعمال کښې هيڅ حرج نشته دې. د دې کتابونو په حواله سره معلوميږی چه د دې رنګونو استعمال مکروه تنزيهي دې. ليکن تحفة الملوك کښې په صراحت سره د دې رنګونو د استعمال د حرمت قول موجود دې.(۴) علامه خصکفی رحمه الله فرمائی چه زه وايم چه د علامه شرنبلانی رحمه الله يوه رساله ده په کوم کښې چه هغه اته اقوال راجمع کړی دی په هغې کښې يود مستحب هم دې.(۵)
علامه شامی رحمه الله د علامه شرنبلانی رحمه الله د رسالې نه يوقول نقل کوی چه مونږ د حرمت په صراحت باندې مشتمل دليل چرته اونه ليدلو اود سور رنګ لباس د استعمال د ممانعت هم د داسې سړی ښځو او(غيرمسلم) عجميانوسره مشابهت اختيارولو د ممنوع کيدو وجې نه په پوهه کښې راځی. دا بيا ممانعت به تکبر د وجې نه وی اوکله چه علت مرتفع شی اود اغوستلو نه مقصود صرف د الله ﷻ د نعمت اظهاروی نوبيابه د دغه رنګونو کراهت هم ختميږی. اود کراهت تعلق به صرف هغه کپړو سره وی چه په نجس رنګ کښې په رنګ کولوسره سرې شوې وی او مونږ د امام اعظم رحمه الله د جواز قول اود اباحت په قول باندې واضح دليل هم ليدلې دې اوهغه دليل د قرآن پاك د حکم زينت اختيارولو په اطلاق کړې دې. لهذا د دې د وجې نه حرمت او کراهت نه کيدل بلکه د نبی کريم ﷺ اقتداء کولوسره مستحب کيدل ثابتيږی. د دې قول د نقل کولونه پس علامه شامی رحمه الله ليکی چه زه وايم چه (علامه شرنبلالی رحمه الله خو استحباب ثابتوی ليکن) په لويو اومعتبر کتابونوکښې هم د کراهت قول ذکردې. مثلاً سراج، المحيط البرهانی، الاختيار، المثقی او ذخيره وغيره اوعلامه قاسم (قلوبغا رحمه الله) هم د دې کراهت په قول باندې فتوی ورکړې ده. د دې نه علاوه امام زاهدی رحمه الله الحاوی کښې ذکرکړی دی چه د سور رنګ په سر باندې استعمال په اجماعی توګه باندې مکروه نه دې (يعنی سره توپئی وغيره)(۶)
سابقه بحث د علامه شامی رحمه الله حاشية ابن عابدين نه نقل کړې شوې دې ليکن علامه صاحب تنقيح

---

(۱) عمدة القاري: ۱۶۴/۴.
(۲) ردالمختار کتاب الحظر والإباحة باب في اللبس ص: ۶۴۵دارالكتب العلمية.
(۳) ردالمختار کتاب الحظر والإباحة باب في اللبس: ۵۱۶/۹دارالکتب العلمية.
(۴) تحفة الملوک مراتب اللبس، لبس الثوب المعصفر: ص: ۲۹۳.
(۵) الدرالمختار كتاب الحظر والإباحة باب فی لبس ص: ۶۵۴
(۶) حاشية ابن عابدين كتاب الحظر والإباحة باب في اللبس: ۵۱۶/۹.

الفتاوی الحامدیه کښې په دې بحث باندې تفصیلي کلام کولوسره د کراهت تحریمي قول راجح ګرځولوسره د علامه شرنبلالي رحمه الله د عبارت جائزه هم پیش کړې ده. ((من شاء فليراجع))([1])

**دعلامه کشمیري رحمه الله رائې:** د سرو کپړو داستعمال باره کښې علامه محمدانورشاه کشمیري رحمه الله فرمائي زما په نیز ددې مسئلې تفصیل داسې دې که چرې رنګ زعفراني وي نو مکروه تحریمي دې ددې دواړو نه علاوه که د تك سور رنګ او شوخ وي نومکروه تنزیهي دې تحریمي نه دې. او که نرنې شان وي نو بیا مکروه تنزیهي هم نه دې اوکه په سپینه کپړه باندې سرې کرښې وي نوهغه هم بغیرد کراهت نه جائز دې بلکه بعض حضراتو دې ته مستحب هم وئیلي دي. ځکه چه نبي کریم ﷺ دا پخپله اغوستې دې بیا دامسئله دکپړې ده د څرمن نه ده.(ددې په هیڅ رنګ کښې کراهت نشته دې) اودا مسئله د سرو دپاره ده د بنځو دپاره ټول رنګونه بلاکراهت جائز دي.([2])

**دحضرت مولانا بنوري رحمه الله رائې:** علامه محمدیوسف صاحب بنوري رحمه الله دسور رنګ داستعمال باره کښې د احنافو په مسلك باندې خبره کولوسره اولاً دعلامه شامي رحمه الله تفصیلي بحث ذکرکړې دې اودې نه پس ئې فرمائیلي: ما دسور لباس د استعمال دممانعت والا احادیث جمع کړل دهغې شمیر تر شلو پورې اورسیدلو او په هغې کښې صحیح هم دي حسن هم متصل هم او مرسل هم. په دې کښې چه کوم حکم دکم نه کم ثابت شو هغه د کراهت تحریمي دې. بیا حضرت بنوري رحمه الله په آخره کښې دحضرت علامه کمشیري رحمه الله مذکوره قول ذکرولوسره بحث ختم کړو.([3])

**دحضرت ګنګوهي رحمه الله رائې:** په مذکوره مسئله کښې حضرت اقدس رشیداحمد ګنګوهي رحمه الله فرمائي د سرو او زیړو کپړو داغوستو باره کښې مذهب دادې چه هغه سور او زیړ رنګ کوم چه معصفر او زعفران سره رنګ کړې شوې وي نوهغه دسړو دپاره مطلقاً ممنوع دې اودې نه علاوه که سور بخن یا زیړ رنګې وي نوفتوی د مطلقاً جائز کیدو ده. لیکن تقوی داده چه ددې نه ځان اوساتلې شي.([4])

**د حضرت شیخ الحدیث رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب کاندهلوي رحمه الله لیکلي چه د سرو کپړو باره کښې روایات ډیر مختلف دي. دبعض نه جواز او دبعض نه ممانعت معلومیږي. دغه شان شراح اووه اقوال نقل کړي دي اوپخپله داحنافو په نیز باوجود د روایاتو دقلت په دې مسئله کښې اته روایات دي کوم چه ما په الحاشیه الکوکب کښې لیکلي دي ددغه ټولونه تحریم استحباب اوکراهت هم دې. حضرت اقدس ګنګوهي رحمه الله په خپل تقریرات اوخپلو فتاوی کښې کوم قول اختیارکړې دې هغه دادې چه دکومو روایاتونه اغوستل ثابت دي هغه په بیان د جواز باندې محمول دي اودکوم نه چه ممانعت معلومیږي هغه خلاف اولی کیدو باندې محمول دي یعنې فی نفسه اغوستل خو جائز دي مګر خلاف اولی دي.

او زما په نیز اختلاف دروایاتو او اختلاف د مذاهب سبب د رنګ په حقیقت کښې اختلاف او تشبه

---

[1]) العقود الدرية المعروف بتنقيح فتاوى الحامدية مسائل وقواعد شتى من الحظر والإباحة وغير ذلك ومطالبه بحرم لبس الحرير: ۳۵۶/۲-۳۵۵.

[2]) العرف الشذي كتاب الطهارة باب ماجاء في إدخال الأصبع في الأذان عندالأذان رقم الحديث:۱۹۷، ۲۱۲/۱فيض الباري: ۲۶/۲أنوار الباري: ۱۳۹/۱۱.

[3]) معارف السنن كتاب الطهارة باب ماجاء في إدخال الأصبع في الأذان عندالأذان رقم الحديث:۱۹۷، ۲۰٤/۲.

[4]) الكوكب الدري كتاب الطهارة باب ماجاء في إدخال الأصبع في الأذان عندالأذان رقم الحديث:۱۹۷، ۲۲٤/۱.

بالنساء کیدل معلومیږی. لهذا دکومو روایاتونه چه ممانعت معلومیږی هغه په هغه رنګونوباندې محمول دی په کوم کښې چه دَ ناپاك څیز دَ ګډون احتمال وی. مثلاً دَ نن نه څلویښت کاله وړاندې دامشهوره وه چه په سور رنګ کښې وینه اچوی لهذا په کوم رنګ کښې چه وینه وی دَمنع روایت به په هغې باندې محمول وی. اوبیا روستو معلومه شوه چه په دې کښې وینه نه وی نودجواز روایات به په دې محمول وی اوبیا چونکه په سور رنګ کښې تشبه بالنساء ده نوچرته چه څنګه تشبه وی هلته به هم هغه شان کراهت وی. مثلاً څوك سور قمیص واغوندی په دې کښې کراهت، ځکه چه دا تشبه بالنساء ده. خو که هم دا رنګ څادر له څوك ورکړی بیانې څوك سړې په سر کړی نو په دې کښې زیاته تشبه بالنساء ده. خود تولائی او تورشك دَ استر دپاره رنګ سور وی نو په دې کښې مضائقه نشته دې اونه په کښې څه کراهت دې. په دې وجه دا خاص رنګ ښځو سره خاص نه دې لهذا تشبه به هم نه وی. هم دغه شان که سرې کربښې وی نو په دې کښې هم تشبه نشته لهذا داهم جائز دې.[1]

**دَعلامه عینی رحمه الله رائې:** دَحافظ ابن حجر رحمه الله دَ احنافوطرف ته دَ کراهت نسبت کول او په هغې باندې دَعلامه عینی رحمه الله رد تیرشوې دې. علامه صاحب فرمائی چه دَاحنافو قول دَ حرمت والا نه دې بلکه احناف دَیو بل حدیث دَ وجې نه کراهت (تنزیهه)قائل دې اوهغه حدیث هغه دې په کوم کښې چه حضور پاك لباس معصفر اغوستونه منع فرمائیلې ده. لهذا دَ دوو شانو احادیثو دَ وجې نه دَ جواز اوکراهت دواړو حکم به وی (دَ دواړو حکمونو دَ مواقع بیان وړاندې تیرشوې دې).[2]

## الحدیث الأول

[۳۶۹]-حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ عَوْنِ بْنِ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قُبَّةٍ حَمْرَاءَ مِنْ أَدَمٍ، وَرَأَيْتُ بِلاَلاً أَخَذَ وَضُوءَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَأَيْتُ النَّاسَ يَبْتَدِرُونَ ذَاكَ الوَضُوءَ، فَمَنْ أَصَابَ مِنْهُ شَيْئًا تَمَسَّحَ بِهِ، وَمَنْ لَمْ يُصِبْ مِنْهُ شَيْئًا أَخَذَ مِنْ بَلَلِ يَدِ صَاحِبِهِ، ثُمَّ رَأَيْتُ بِلاَلاً أَخَذَ عَنَزَةً، فَرَكَزَهَا وَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ، مُشَمِّرًا [ص:۸۵] صَلَّى إِلَى العَنَزَةِ بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ، وَرَأَيْتُ النَّاسَ وَالدَّوَابَّ يَمُرُّونَ مِنْ بَيْنِ يَدَيِ العَنَزَةِ»[3][ر۱۸۵]

**ترجمه:** حضرت ابوجحیفه رضی الله عنه روایت کوی چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم اولیدلو چه (حضورپاك) دَ څرمن نه جوړې شوې دَ سور رنګ خیمه کښې (تشریف فرما) وو او حضرت بلال رضی الله عنه مې اولیدلو چه هغه دَ حضورپاك دَ پاره دَ اودس اوبو سره (ولاړ) وو (یعني اودس نې ورله کولو). اوخلق مې اولیدل چه دَ حضورپاك (په اودس استعمال شوې اوبه) اخستو دپاره دَ یو بل نه دَ وړاندې کیدو کوشش نې کولو نوچه کوم سړې به دَ دغه اوبو په اخستوکښې کامیاب شو نوهغه اوبه به نې (د برکت دَحاصلولو دپاره په خپل مخ اوبدن باندې) مږلې اوکوم سړی ته چه به څه نه ملاویدل نوهغه به دَ خپل ملګری په لاسونوباندې لګیدلې څه (لوندوالې) حاصلولو سره په خپل (مخ یا بدن) باندې مږل.

---

[1] تقریر بخاری شریف: ۱۳۲/۲-۱۳۱الکنزالمتواری: ۵۴/۴-۵۳.

[2] عمدة القاری: ۱۷۴/۴.

[3] دَدې حدیث تخریج کتاب الوضوء باب استعمال فضل وضوء الناس کښې تیرشوې دې

بیا ما حضرت بلال رضی الله عنه اولیدلو هغه یوه چوکه دکومې لاندې چه د اوسپنې یوځوکه لګیدلې وو په زمکه کښې ورخښه کړه او نبی کریم ﷺ یو د سور رنګ پوشاك (یا څادر) اغوستو سره د خیمې نه بهر تشریف راوړو په داسې حال کښې چه هغه څادر ئې راغونډولو. بیا حضورپاك د دغه چوکې طرف ته مخ کولوسره خلقو ته دوه رکعته مونځ اوکړو په دې وخت کښې ما خلق او (مختلف قسم) څناور د هغه چوکې شاته تیریدونکی اولیدل (لیکن حضورپاك یو شان مونځ کولو).

## تراجم رجال

**محمدبن عَرْعَرَه**: دامحمدبن عرعره بن البرند القرشی السامی رحمه الله دې. د دوی حالات کتاب الایمان باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله وهولایشعر لاندې تیرشوی دی.[1]

**عمر بن ابي زائدة**: د دوی د نوم باره کښې عمربن ابی زائده عمر زکریا بن ابی زائده عمر بن خالد اقوال ملاویږی.[2] پوره نوم عمر زکریا بن ابی زائده خالدبن میمون الهمدانی الوداعی الکوفی رحمه الله دې.[3] دا عمرو بن عبدالله الوداعی آزادکړی شوې غلام وو.[4] د دوی د رور نوم زکریا بن ابی زائده وو.[5]

د دوی په استاذانوکښې عون بن ابی جحیفه، ابو صخرة جامع بن شدادالمحاربی، عامر شعبی، عبدالله بن ابی السفر، عکرمه مولی بن عباس، العیزار بن جرول الحضرمی، قاسم بن مخیمره، قیس بن ابی خازم، مدرك بن عماره بن عقبه بن ابی معیط القرشی، ابواسحاق السبیعی، ابوبرده ابن ابی موسی الاشعری رحمهم الله شامل دی.[6]

د هغوی په شاګردانوکښې محمدبن عرعره، اسحاق بن منصور السلولی، بهز بن اسد، حجاج بن منهال، حفص بن عمرالحوضی، حکم بن مروان، محمدبن فضیل وغیره رحمهم الله شامل دی.[7]

عبدالرحمن بن مهدی رحمه الله د هغوی باره کښې وائی «کان کیس الحفظ».[8]

امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی ثقة[9] یحیی بن معین رحمه الله فرمائی ثقة[10] امام ابوحاتم رحمه الله او امام نسائی رحمه الله فرمائی «لیس به بأس».[11] ابوعبید الآجری رحمه الله امام ابوداؤد رحمه الله نه روایت کوی چه «عمر یری القدر».[12] اوپه بل ځائی کښې داهم ونیلی دی «زکریا أعلی عن أخیه عمر بکثیر».[13] ابن حبان رحمه الله

---

[1]) کشف الباری: ۵۵۷/۲.
[2]) تهذیب الکمال: ۳٤۸/۲۱ الجرح والتعدیل: ۱۰۶/۶.
[3]) الثقات لابن حبان: ۱٤۷/۷ تهذیب التهذیب: ٤٤۹/۷.
[4]) العلل ومعرفة الرجال لأحمدبن حنبل: ۳۶۲/۱ تهذیب الکمال: ۳٤۹/۲۱.
[5]) العلل ومعرفة الرجال لأحمدبن حنبل: ۳۶۲/۱ تقریب التهذیب: ٤۱۲/۱.
[6]) تهذیب الکمال: ۳٤۸/۲۱ تهذیب التهذیب: ٤٤۸/۷.
[7]) تهذیب الکمال: ۳٤۹/۲۱ تهذیب التهذیب: ٤٤۸/۷.
[8]) الجرح والتعدیل: ۱۰۶/۲ تهذیب التهذیب: ٤٤۹/۷.
[9]) الجرح والتعدیل: ۱۰۶/۶.
[10]) الجرح والتعدیل: ۱۰۶/۶ تاریخ یحیی بن معین: ۱۹۹/۱.
[11]) تهذیب الکمال: ۳۵۰/۲۱ تهذیب التهذیب: ٤٤۹/۷.
[12]) الضعفاء الکبیر: ۱۷۸/۳ تهذیب الکمال: ۳۵۰/۲۱.
[13]) تهذیب الکمال: ۳۵۰/۲۱ تهذیب التهذیب: ٤٤۹/۷.

دهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.(۱) امام عجلی رحمه الله فرمائی ثقة.(۲) امام ذهبی رحمه الله فرمائی چه هغوی ۱۵۹هجری کښې وفات شوی.(۳)

**عون ابن ابي جحيفة:** دا عون بن ابی جحیفه دې. دَدوی دَ پلار نوم وهب بن عبدالله السوائی الکوفی رضی الله عنه دې.(۴) دَدوی تعلق بنوعامر صعصعة سره وو.(۵) دې دَ عبدالرحمن بن بکیر، خپل پلار ابوجحیفه السوائی، عبدالرحمن بن علقمه الثقفی، مالك بن صحار، مخنف بن سلیم، مسلم بن رباح الثقفی رضی الله عنهم، منذر بن جریر بن عبدالله البجلی رحمهم الله نه روایت کوی.(۶) اودَدوی نه روایت کونکوکښې عمر بن ابی زائده، سعیدبن مسروق الثوری، سفیان ثوری، شعبه بن الحجاج، عبدالحمید بن ابی جعفر الفرآء، عبدالملك بن سعیدبن ابجر، ابو ادریس الاودی او ابوخالد الدالانی وغیره رحمهم الله شامل دی.(۷) اسحاق بن منصور یحیی بن معین ابوحاتم او امام نسائی رحمهم الله نه روایت کولوسره دَهغوی باره کښې فرمائی ثقة.(۸) امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی ثقة.(۹) ابن حبان رحمه الله دَهغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.(۱۰) دَ دوی وفات ۱۱۶هجری کښې شوې.(۱۱) دا دور په عراق کښې دَ حضرت خالد رضی الله عنه دَ ولایت وو.(۱۲)

**عن ابيه:** دې نه مراد ابو جحیفه دې. دَدوی نوم وهب بن عبدالله السوائی رضی الله عنه وو. دَدوی حالات کتاب العلم باب كتابة العلم لاندې تیر شوی دی.(۱۳)

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ مذکوره حدیث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې. یعنی خرج النبي صلى الله عليه وسلم في حلة حمرآء سره. (۱۴)

## شرح حديث

**قوله: في قبة حمراء من أدم:** راوی وائی چه ما نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ څرمن په یوه خیمه کښې اولیدلو چه دَ سور رنګ وه. قبة دَ قاف ضمه سره او باء مشدد دَ فتحه سره. هغه وړوکې غونډې خیمه یا تنبو ته وائی چه دَ پاسه ګول وی. دَدې جمع قِبَاب او قُبَب راځی.(۱)

---

(۱) ۱۷٤/۷.
(۲) معرفة الثقات للعجلی: ۱۶۶/۲ تهذیب التهذیب: ۳۴۹/۷ ٤.
(۳) خلاصة التهذیب للخزرجی ص: ۲۸۲.
(٤) التاریخ الکبیر للبخاری: ۱۵/٤ تهذیب الکمال: ٤٤٨/۲۲.
(۵) الطبقات الکبری: ۳۱۸/۶ الجرح والتعدیل: ۵۰۶/۶
(۶) تهذیب التهذیب: ۱۷۰/۸ سیر أعلام النبلاء: ۱۰۵/۵.
(۷) تهذیب الکمال: ٤٤٨/۲۲ الجرح والتعدیل: ۵۰۶/۶.
(۸) سیر أعلام النبلاء: ۱۰۵/۵ تهذیب الکمال: ٤٤٨/۲۲.
(۹) الجرح والتعدیل: ۵۰۶/۶
(۱۰) ۲۶۲/۵.
(۱۱) تهذیب التهذیب: ۱۷۰/۸.
(۱۲) الثقات لابن حبان: ۲۶۳/۵ تهذیب التهذیب: ۱۷۰/۸.
(۱۳) کشف الباری: ۲۳۱/٤.
(۱٤) عمدة القاری: ۱٤۷/٤.

**قوله:: حمرآء** دَ فعلا په وزن باندې دې. دَ أحمر مؤنث دې اودَ سور رنګ په معنی کښې دې.

**قوله:: أدَم** دا لفظ دَهمزه اودال فتح سره دې. داد أدِيْمْ جمع ده. دَدې مطلب دې پخه کړې شوې څرمن يا رنګ کړې شوې څرمن يا دباغت کړې شوې څرمن، تول دَ يوبل مترادفات دی. دَ باغت نه وړاندې څرمن ته إهاب وائي. اومطلقًا څرمن ته جِلْدْ وائي.(۲)

**دَ نبی کریم ﷺ دَ قیام ځائی:** راوی دَ رسول الله ﷺ په هغه قبه کښې دَ قیام ذکر اوکړو هغه ځائی مکه مکرمه کښې أبطح نومې ځائی وو. دا دَ بطحاء په نوم سره مشهور دې اوداهم ونیلی شی چه دا منی سره نیزدې دې اوددې نوم محصب دې. اودَ بعض خلقو خیال دې چه دا ځائی ذوطوی دې حالانکه داسې نه ده لکه څنګه چه ابن قرقول رحمه الله په دې باندې تنبیه کړې ده.(۳)

په دې موقع باندې دَ نبی کریم ﷺ په مقام أبطح کښې حصاريدل پخپله هم دَصحيح بخاری دَ يو روايت نه معلوميږی کوم چه وړاندې کتاب الأذان کښې راځی.(۴) دَ سنن نسائي په روايت کښې داهم دی چه هغه وخت خيمه کښې حضورپاك سره څه خلق هم وو(۵) اودَامام نسائي رحمه الله دويم تاليف السنن الكبرى كښې دی چه هغه وخت حضورپاك سره ځلوبښت کسان وو.(۶)

**قوله:: ورأيت بلالا أخذ وَضوءه رسول الله صلى الله عليه وسلم:** اوما (حضرت) بلال رضي الله عنه اوليدلو چه هغه دَ نبی کریم ﷺ دَپاره دَ اودس اوبوسره ولاړ وو. وضوء دا لفظ دَ صحيح قول مطابق دَ واؤ فتحه سره دې. دَدې معنی ده هغه اوبه چه دَاودس دَپاره تيارې کړې شی.(۷)

په دې عبارت کښې اختصار دې. پوره خبره داده چه حضرت بلال رضي الله عنه دا اوبه واخستې او په پيغمبر ﷺ باندې اودس اوکړو بيائي باقی پاتې اوبه واخستې اودَخيمې نه بهر شو. اوس دلته دوه احتمالات دی چه دا اوبه په هغه لوښي کښې باقی پاتې وې په کومو سره چه حضورپاك اودس اوکړو يعنی څه اوبه حضورپاك په اودس کښې استعمال کړې او څه باقی پاتې شوې. دغه اوبه حضرت بلال رضي الله عنه واخستې اوبهر ئې تشريف راوړو. او دويم احتمال داد ې چه دا اوبه دَ حضورپاك اندامونوسره لګيدلو سره راڅڅيدونکې وې يعنی مستعمل اوبه وې او په اتفاق سره اوبه مستعمل پاکې وی.(۸)

**قوله:: ورأيت الناس يبتدرون ذلك الوضوء:** اوما خلق اوليدل چه دَ حضورپاك دَ اودس اوبه نې داخستو دپاره د يوبل نه وړاندې کيدو کوشش کولو.

**قوله:: يبتدرون:** دباب افتعال نه دَجمع مذكر غائب صيغه ده. دَدې مطلب داد ې چه په يوكار کښې دَ يوبل نه د وړاندې کيدو کوشش کول په دې ځائی کښې به دَدې تفصيل دا شی چه دَ حضورپاك نه

(۱) معجم الصحاح حرف القاف ص: ۳۳۰لسان العرب حرف القاف: ۷/۱۱المغرب حرف القاف: ۱۵۵/۲.
(۲) معجم الصحاح ص: ۳۴المحكم والمحيط الأعظم لابن سيدة: ۹۷/۱۰النهاية فی غريب الحديث والأثر: ۴۲/۱لسان العرب: ۹۶/۱.
(۳) التوضيح لابن ملقن: ۳۵۶/۵عمدة القاری: ۱۴۸/۴.
(۴) صحيح البخاری كتاب الأذان باب الأذان للمسافرين إذا كانوا جماعة والإقامة رقم الحديث: ۶۳۳
(۵) السنن النسائی كتاب الزينة باب اتخاذ القباب الحمر رقم الحديث: ۵۳۸۰.
(۶) السنن النسائی كتاب الزينة باب اتخاذ القباب الحمر رقم الحديث: ۹۷۴۲.
(۷) التوضيح لابن ملقن: ۳۵۷/۵شرح الكرمانی: ۳۹/۴ إرشادالساری: ۳۹/۲الكوثر الجاری: ۶۲/۲
(۸) أعلام بفوائد عمدة الأحكام باب الأذان الحديث الثانی معنی الوضوء: ۴۲۳/۲.

بچ شوي اوبو سره دبركت حاصلولو په نيت سره هرچا دغه اوبه حاصلول غوښتل. اوددي دپاره د يوبل نه وړاندي كيدل[۱] هم دغه خبره ماقبل كښي (كادوا يقتتلون على وَضوئه) په الفاظو كښي تيره شوي ده.[۲]
دا جمله په اصل كښي عروه بن مسعود ﷺ د قريشو په مخكښي د صحابه كرامو ﷺ صفات بيانولو سره كړي وه اوددي مشاهده هغوى د صلح حديبيه په وخت كله چه د صلح پيغام راوړلو سره راغلي وو په هغې كښي د صحابه كرامو ﷺ د طرف نه رسول الله ﷺ سره عظيم محبت او عقيدت ثبوت ملاويږي. پوره تفصيل اوګورئي صحيح البخاري كتاب الجهاد كښي.[۳]
او دلته چه دا د يقتتلون لفظ استعمال شوي دي دي نه مراد حقيقي قتل نه دي بلكه دصحابه شوق او ذوق اود هغې طرف ته په تيزئي سره ورتللو سره دا لفظ مبالغةً استعمال كړي شوي.[۴]

**قوله: فمن أصاب منه شيئًا، تمسح به، ومن لم يصب منه شيئًا، أخذ من بَلَل يد صاحبه:**

نوچه څوك به دحضورپاك د دغه استعمال شوي اوبو په څه حصه حاصلولو كښي كامياب شو نوهغه به دغه اوبه (په بدن اومخ) باندي مږلي. اوكوم سړى ته چه به د دغه اوبونه څه حصه ملاؤ نه شوه نود بل سړى په لوند لاس سره به ئى څه لوندوالي اخستو او په خپل بدن باندي به ئى مږلو. د صحيح بخارى په يو روايت كښي دى: (وقام الناس، فجعلوا يأخذون يديه، فيمسحون بها وجوههم، قال: فأخذت بيده، فوضعتها على وجهي، فإذا هي أبرد من الثلج وأطيب رائحة من المسك) يعني چه خلق اودريدل او (د حضورپاك ﷺ استعمال شوي) اوبه ئى په خپلو لاسونو كښي اخستو سره په مخونو مږلي. راوى وائي چه ما (څه) اوبه په لاس كښي واخستي او په مخ باندي مي اومږلي نوهغه د واوري نه زيات يخي او د مشك نه زيات خوشبو والاوي. سبحان الله.
د حديث پاك په دي مقام باندي دوه مسئلي قابل د تحقيق دى: ① د ماء مستعمل حكم ② د حضورپاك د آثارنه تبرك حاصلول.

**د ماء مستعمل حكم:** د ماء مستعمل باره كښي مكمل تفصيل ماقبل كتاب الوضوء اوكتاب الغسل كښي متعلقه مقاماتو باندي تيرشوي دي. خلاصه دا چه ماء مستعمل هغه اوبوته وائي په كوم سره چه حدث او جنابت لري كول يا د ثواب حاصلولو دپاره اودس يا غسل اوكړي شي. دا اوبه څنګه چه د بدن نه جداشى په هغې به د مستعمل حكم لګولي شى
د دي حكم دادي چه د مفتى به قول مطابق د احنافو په نيز دا اوبه پاكي دى. ليكن دي اوبو سره اودس يا غسل نه شى كولي البته دا اوبو د څكلو دپاره استعمالول كراهت خفيفه سره جائز دى.[۵]
د ائمه ثلاثه په دي باره كښي مختلف اقوال دى ليكن د هغوى په نيز د قول مشهور مطابق دا پاكي

---

[۱]) معجم الصحاح ص: ۷۸.
[۲]) صحيح البخارى كتاب الوضوء باب استعمال فضل الوضوء الناس الحديث الرابع رقم: ۱۸۹.
[۳]) صحيح البخارى كتاب الشروط باب الشروط فى الجهاد والمصالحة مع أهل الحرب وكتابة الشروط والشروط مع الناس رقم الحديث: ۲۷۳۱.
[۴]) الكوثرالجاري: ۶۲/۲ التوضيح لابن ملقن كتاب الوضوء باب استعمال فضل وضوء الناس رقم الحديث: ۱۸۷، ۳۰۵/٤.
[۵]) الفتح القدير كتاب الطهارة: ۹٤/۱-۹۰ تبيين الحقائق كتاب الطهارة: ۸۸/۱-۸۶ البحرالرائق كتاب الطهارة: ۱۲۲-۱۲٤/۱ اللباب فى شرح الكتاب كتاب الطهارة: ۲٤/۱-۲۳ حاشية الطحاوى على مراقى الفلاح كتاب الطهارة: ۲۲/۱ بدائع الصنائع كتاب الطهارة فصل فى بيان الطهارة الحقيقة. ۲۹۲/۱-۲۸۶.

خووی لیکن په دې سره پاکي نه شي حاصلولې. (۱)

**دَ ماء مستعمل باره کښې دَعلامه عینی رحمه الله وضاحت:** علامه عینی رحمه الله فرمائی دَحدیث باب نه دَ ماء مستعمل طهارت هم معلوم شو او داد حنفیه خلاف هم اوګڼړلې شو دا صحیح نه دی ځکه چه هغوی هم دې ته طاهر وائی نجس نه وائې تردې چه دَهغې څکل هم جائزدی. په دې سره اوره اغرل صحیح دې البته په دې سره اودس یا غسل کول صحیح نه دی. اوددې باره کښې چه دَامام صاحب رحمه الله نه کوم دَ نجاست روایت نقل دې اول خودَ احنافو په نیز هغه معمول بها نه دې بل دَدې مطلب نجاست حکمی دې ځکه چه دَدې په ذریعه دَنجس ګناهونوختمول دَ ګناهګار بدن نه کیږی لهذا دحضورپاک په فضل وضوء باندې خودَدې اطلاق نه شي کیدې ځکه چه هغه بدن هم په هرلحاظ سره مقدس اوطاهر وو نو هغه اوبه خو طهور هم وې بلکه دَهر طاهر او اطیب نه زیر مطهر وې. (۲)

**دَ رسول الله ﷺ دَ اثارنه دَ تبرک حاصلولوحکم:** دَحدیث مبارک په دې مقام باندې یوه بله مسئله هم زیر بحث راځی چه دَ نبی کریم ﷺ دَ آثار او ملبوسات وغیره نه تبرک حاصلول څنګه دی؟

دَدې مذکوره حدیث شریف او دَنورو ډیرو احادیثو مبارکو او آثار نه دا خبره په صحیح طریقه سره ثابته ده اودَ علماؤ په دې خبره باندې اتفاق دې چه دَ نبی کریم ﷺ دَ آثار نه برکت حاصلول مشروع اوثابت دی. البته په دې کښې دا ضروری دی چه په دې معامله کښې په شرک کښې دَ اخته کیدو اندیښنه نه وی. اوکه چرته دَدې په وجه سره په شرک کښې دَاخته کیدو ویره وی نوبیابه دا تبرک حاصلول جائزنه وی. (۳) کتاب الوضوء کښې په دې موضوع باندې تفصیلی بحث تیرشوې دې. خو په دې مقام باندې بیاهم دَحکیم الامت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله کتاب اشرف الجواب نه یوفائده مند بحث دَحواشي دَ اضافه سره دلته ذکرکولې شي.

**دَتبرکات نبوی ﷺ زیارت:** حضرت حکیم الامت رحمه الله فرمائی:

**الف:** تبرکات نبوی ﷺ کښې یوخو هم هغه زیاتوالې کولې شي کوم چه په نورو بدعاتوکښې دې چه خلقو دَدې نه میله جوړه کړې وی. په دې باب کښې اکثرخلق تردې پورې چه بعض طالبان هم په شک کښې دې داسې ګڼړی چه په دې کښې څه حرج دې؟ دَ جبه نبوی ﷺ زیارت دَ برکت سبب دې که څوک صرف دَ زیارت کولو په نیت لاړشی نوڅه بدی نشته دې ماته یو طالبعلم دَچا کور چه په جلال آبادکښې دې اوجبه شریف مکان سره دَهغه دکان دې. سوال نی اوکړو چه زه په دکان کښې کینم دَ جبه زیارت اوکړم خو ما دَدې اجازت ورنه کړو ځکه چه هغه ګڼړه بالکل دَ میلو په شان اودَ عرسونو په شان وی. تاریخ مقررکولې شي دعوت کیږی دَلرې نه خلق راځي اودَ ښځو اجتماع هم وی داسې خلق چه مونځ هم نه کوی زیارت له راځي حالانکه دجبه شریف دَزیارت فضیلت دَ قبر شریف برابرکیدې نه شي. حدیث ((لاتتخذوا قبري عیداً)) (۴) (زما په قبرباندې دَ اختر په شان ګڼړه مه جوړوئی) سره دَدې نفی

---

(۱) الموسوعة الفقهية الكويتية: ۳۹/۳۶۳-۳۵۹بداية المجتهد الباب الثلث في المياه المسئلة الثالثة الإختلاف في الماء المستعمل في الطهارة: ۱/۲۴-۲۳.

(۲) عمدة القاري: ۴/۱۴۹.

(۳) التوضيح لابن ملقن: ۵/۳۵۷عمدة القاري: ۴/۱۴۸الكوثر الجاري: ۲/۶۲الموسوعة الفقهية الكويتية حرف التاء: ۱۰/۵۹

(۴) المسندللإمام أحمدبن حنبل مسند أبي هريرة: رقم الحديث: ۸۸۰۴، ۱۴/۴۰۳المصنف لابن أبي شيبة باب في الصلاة عيد قبرالنبي صلى الله عليه وسلم: رقم الحديث: ۷۶۳۵، ۵/۱۷۸مسند أبي يعلى مسند علي بن طالب رقم الحديث: ۴۶۵، ۱/۳۶۱.

کیږی ځکه چه دَ جبه شریف فضیلت دَ قبر شریف برابر کیدې نه شی. لکه چه په دې کښې داسې خو نه شی وئیلې چه دَ پیدائش دَ ورځ په شان وغیره په دې کښې بدل شو سره دَدې چه دَعدم بدلون یقین هم نشته مګر خیر چه کومه خبره په زړه کښې نه وی هغه په ژبه باندې هم نه دی راوستل پکار. مګر یوبله خبره دَفرق دلته هم موجود ده چه دې وخت کښې هغه ملبوس بدن مبارک سره لګیدلې نه دې اوقبر شریف ته بدن مبارک لګیدلو شرف حاصل دې.پدې وجه جبه نبوی ته چادَعرش نه افضل نه دی وئیلی. نوچه کله په قبرباندې اخترجوړول حرام دی نوملبوس شریف باندې اخترجوړول څنګه جائز دی؟

**ویښته مبارک:** چرته چرته دَ حضورپاک ﷺ ویښته مبارک تردې وخته پورې موجود دی. په هغې باندې اختر جوړول هم جائزنه دی ځکه چه سره دَدې په ظاهره داخیال کوئی چه دا ویښته مبارک دَ بدن مبارک جز دې. دَ قبر نه غوره معلومیږی. لیکن په قبر کښې دَ اتصال او تماس داسې فضیلت موجود دی چه ویښتو مبارکوته بالفعل نه دې حاصل. په دې وجه دواړه برابر خو شو چه ویښته مبارک جز دې لیکن اوس مماس یعنی هغه یوځائې والې نشته اوقبر شریف جز خونه دې لیکن مماس او یوځائې والې شته نو دواړه برابر شو اودَ یوبرابر نه دَ بل حکم معلومیدې شی.

نوحدیث ((لاتتخذوا قبري عيداً))[1] نه دَ ویښتو مبارکو نه اختر جوړول ناجائز اوحرام دی. دادَ حضور پاک غایت بلاغت دې چه حضورپاک قبر په ذکر کښې اختیارکړو دکوم نه چه دَ ملبوس اوشعروغیره ټول احکام پخپله معلوم شو. دې نه علاوه صحابه کرامو او سلف صالحین اختر جوړول نه دی اختیارکړی حالانکه هغوی سره زمونږ نه زیات تبرکات نبویه موجود وو اوهغوی ته زمونږ نه زیات دَ نیکو په کارونوکښې دَ وراندیوالی جذبه وه. که چرته دا څه دَخیر خبره وه نو سلف کښې به دَ دې څه اصل خو وې. اوس صرف سوال دا پاتې شو چه په صحابه کرامو کښې دَ اختر په شان اجتماع نه وه نو آخر تبرکات سره دَهغوی څه سلوک وو؟ دَدې دَ پاره ما یو څو احادیث په یوه پرچه باندې لیکلی دی ځکه چه دَهغې په الفاظو سره یاد ساتل ګران وو هغه دې وخت کښې نقل کوم.

**دَتبرکات نبوی ﷺ په سلسله کښې احادیث:** ((عن عثمان بن عبدالله بن وهب قال: أرسلني أهلي إلى أم سلمة رضي الله عنها بقدح من ماء، وكان إذا أصاب الإنسان عين أو شيء، بعث إليها مخضبة لها، فأخرجت من شعر رسول الله صلى الله عليه وسلم وكانت تمسكه في جلجل من فضة، فخضخضت له، فشرب منه، قال: فاطلعت في الجلجل، فرأيت شعرات حمراء))[2]

---

[1] حواله بالا.

[2] دَمذکوره حدیث حواله حضرت مولانا محمداشرف علی تهانوی رحمه الله دَ صحیح بخاری ورکړې ده خودَ صحیح بخاری په ډیرو نسخوکښې دکتلو نه باوجود مذکوره حدیث په دې الفاظوسره ملاؤنه شو په صحیح بخاری کښې موجود دَحدیث الفاظ دادی: ((عن عثمان بن عبدالله بن موهب قال: أرسلني أهلي إلى أم سلمة بقدح من ماء، وقبض إسرائيل ثلاث أصابع من قصة فيها شعر من شعر النبي صلى الله عليه وسلم: وكان إذا أصاب الإنسان عين أو شيء، بعث إليها مخضبة فاطلعت في الجلجل، فرأيت شعرات حمراء)) (صحيح البخاري كتاب اللباس باب مايذكرفي الشيب رقم الحديث: ۵۸۹۶) البته په جامع الأصول کښې مذکوره حدیث هم په دغه مذکوره الفاظوکښې دَ صحیح بخاری په حواله سره ذکر دې اوګورئی: (جامع الأصول حرف الزاء الكتاب الثالث من حرف الزاي، الباب الثاني، الفصل الثاني في خضاب اليدين، رقم الحديث ۲۸۶۶، ۷۴۰/۴) داحدیث دَ افراد بخاری نه دې.

**ترجمه:** حضرت عثمان بن عبدالله بن وهب نه روايت كوى چه هغوى فرمانى زه زما كور والا د حضرت ام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنها له د اوبو پياله راكولوسره اوليګلم اوقاعده دا وه چه كله يو انسان ته د نظر وغيره تكليف وى نو حضرت ام سلمه رضي الله عنها له به د اوبو پياله ورليګلې شوه هغې سره د حضورپاك څه ويښته وو. كوم چه هغې د چاندنى په نلكه كښې كيخودې وو. په اوبو كښې به ئى هغه ويښته خوزول اوهغه اوبه به ئى په بيمار باندې څكلې. راوى وائى چه زه ورتيټ شوم اونلكه مې اوكتله نو په هغې كښې يو څو سره ويښته وو.

ددې حديث نه معلومه شوه چه يوه صحابيه (حضرت ام سلمه رضي الله عنها) سره ويښته مباركه په نلكه كښې پراته وو كوم سره چه به دا سلوك كولې شو چه د بيمارانو د شفا د پاره به ئى د هغې غساله ورڅكوله د حضورپاك دخضاب باره كښې اختلاف دې. صحيح خبره داده چه د حضورپاك ويښته مبارك پاخه شوې وو دكوم نه چه به كتونكوته خضاب ښكاريدلو ګنى حضورپاك كله هم خضاب (وسمه) نه ده كړې ځكه چه د حضورپاك ټول سپين ويښته شلو ته نيزدې وو يا څه زيات.

**د جبه مبارک تذكره:** ((عن أسماء بنت أبى بكر رضى الله عنها...... فأخرجت إلى جبةً طيالسةٍ كسروانية لها لبنة ديباج، وفرجيها مكفوفين بالديباج، فقالت: هذه (جبة رسول الله صلى الله عليه وسلم) كانت عند عائشة، حتى قبضت فلما قبضت قبضتها، وكان النبى صلى الله عليه وسلم يلبسها، فنحن نغسلها للمرضى لنستشفى بها)) [1]

**ترجمه:** د حضرت اسماء بنت ابى بكر رضي الله عنها نه روايت دې........ چه هغې يوه جبه طيلسانى كسروى راويستله د كوم په ګريوان او دواړو څاخو باندې د ريښمو سنجاف لګيدلې وو او وئې وئيل چه دا د رسول الله صلى الله عليه وسلم جبه ده كومه چه حضرت عائشه رضي الله عنها سره وه. د هغې د وفات نه پس ما واخستله حضورپاك به دا اغوستله مونږ به دا وينځله او اوبه به مو بيمارانو ته وركولې د شفاحاصلولو د پاره.

**د ويښتو مباركوسره متعلق حديث:** ((عن أنس بن مالك رضى الله عنه قال: لما رمى رسول الله صلى الله عليه وسلم الجمرةَ، ونحر نسكه وحلَق، ناول الحالق شقَه الأيمنَ، فحلقَه، ثم دعا أبا طلحة الأنصاري، فأعطاه إياه، ثم ناوله الشق الأيسر فقال: احلق، فحلقَه، فأعطاه أبا طلحة، فقال: اقسمه بين الناس)) [2]

**ترجمه:** د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم حجة الوداع كښې د عرفات نه منى ته تشريف راوړو نوجمره عقبه ته اورسيدو او د هغې رمى ئى اوكړه. بيا په منى كښې چه كوم مكان د حضورپاك د پاره مقرر وو هغې، ته ئې تشريف راوړو او د قربانئى څاروې ئى ذبح كړو. بيائى حلاق (نائى) راؤغوښتلو اوهغه ته ئى اول د سر ښې حصه وركړه نوهغه ښې حصه اوخروله بيا حضورپاك ابوطلحه انصارى صحابى رضي الله عنه راؤغوښتلو اوهغه ويښته ئى هغه ته وركړل بيائى نائى نه د سر ګسه حصه وركړه او وئى فرمائيل اوخروه، هغه ګسه حصه هم اوخروله. حضورپاك هغه ويښته

[1] صحيح مسلم كتاب اللباس والزينة تحريم لبس الحرير وغير ذلک للرجال رقم الحديث: ۵٤٠٩.

[2] صحيح مسلم كتاب الحج باب بيان أن السنة يوم النحر أن يرمى، ثم ينحر، ثم يحلق رقم الحديث: ۳۱۵۵ د حضورپاک د ويښتو مباركونه تبرک حاصلولو د پاره نور هم ډېر احاديث مذكور دى مثلاً اوګورئى: صحيح مسلم كتاب الفضائل باب قربة صلى الله عليه وسلم من النار وتبركهم به، وتواضعه لهم رقم الحديث: ٦٠٤٢ او صحيح البخارى كتاب الوضوء باب الماء الذى يغسل به شعر الإنسان رقم الحديث: ۱۷۱-۱۷۰وغيره، او صحيح البخارى كتاب الاستئذان باب من زار قوما فقال عندهم رقم الحديث: ٦٢٨١او صحيح مسلم كتاب الفضائل باب طيب عرقه صلى الله عليه وسلم والتبرک به رقم الحديث: ٦٠٥٦.

هم ابوطلحه رضی الله عنه ته ورکړل او ورته ئې اوفرمائيل چه دا په خلقو کښې تقسيم کړه.
دَدې حديث نه معلومه شوه چه حضورپاک په ډير مقدار کښې خپل ويښته مبارک صحابه کرام رضی الله عنهم ته تقسيم کړي دي اوښکاره خبره ده چه صحابه کرام رضی الله عنهم شرقاً اوغرباً خواره شوي وو اوکه چرته ويښته مبارک اوليدلې شي نو فوري توګه باندې دَهغې نه انکار مه کوئ بلکه که په صحيح سند سره دَدې پته معلومه شي نوبيا خو به دَهغې تعظيم کولې شي خوکه يقيني دليل دَ افتراء او اختراع نه وي نو خاموشي به اختيارولې شي. يعنې نه به تصديق کولې شي اونه تکذيب، په مشتبه امر کښې مونږ ته شريعت هم دغه تعليم راکړې دې.

**لباس مبارک:** «عن أم عطية (في قصة غسل زينب بنت رسول الله صلى الله عليه وسلم تكفينها أختها) فألقى حقوه، فقال: أشعرنها إياه. فقال الشيخ في اللمعات: وهذا الحديث أصل في التبركة بآثار الصالحين ولباسهم»[1]

**ترجمه:** حضرت ام عطيه رضی الله عنها دَ حضرت زينب بنت رسول الله صلی الله علیه وسلم دَغسل اوکفن واقعه کښې روايت کوي حضورپاک خپل لنګ زمونږ طرف ته راوغورزولو چه دا دَمرحومه بدن پورې يوځائې کولوسره وراغوندئې يعنې دَ تولو نه لاندې دا اوساتئې چه دَدې برکت بدن سره متصل وي.
حضرت شيخ عبدالحق رحمه الله لمعات شرح مشکوة کښې دَدې حديث په شرح کښې ليکې دا حديث دَ آثار اوملبوسات دَ صالحينو نه دَ برکت اخستلو اصل دې.[2]
معلومه شوه چه په تبرکات سره دَ برکت حاصلولو يوه طريقه داهم ده چه پس دَ مرګ نه هغه په کفن کښې کيخودلې شي مګر دې سره قرآن او دَدعاګانو کتابونه په کفن کښې کيخودل جائز نه دي ځکه چه په دې کښې دَ هغې احترام باطل کيږي. ځکه چه قرآن پاک سره دَ ناپاکئې اتصال حرام دې. اودَ مړي بدن دَ يو څو ورځونه پس پرسيږي او شليږي نوهغه نجاست به قرآن پورې هم اولګي. دغه شان هغه کتابونه کوم کښې چه دعاګانې اودَ الله او رسول نوم ځائې په ځائې په کښې دي دَاحترام قابل دې بلکه الفاظ اوحروف مطلقاً دَ احترام قابل دي بلکه ساده کاغذ هم دَ علم دَ آله کيدو دَ وجې نه دَ احترام قابل دې. بعض خلق دَ فرعون اوهامان نوم ليکلو سره هغه په څپلوباندې وهي دا باطل فضول او مهمل حرکت دې. په هغوي باندې خو ئې وس نۀ وي اونه چليدو نو بس هم په الفاظو باندې بهادري ښائي. مګر دې تولوسره هغې نه اختر نه دې جوړول پکار ځکه چه دادپوهيدو خبره ده چه دَدې څيزونو قدر دَ څه دَپاره دې؟ په دې وجه نه چه دا دَحضورپاک څيزونه دي نوبيا احکام خو هم دَ حضورپاک دي دَهغې خو هم قدر کول پکاردي په هغې کښې هم برکت دې دغه برکت هم اخستل پکاردي. غرض هغه

---

[1]) صحيح مسلم كتاب الجنائز باب في غسل الميت رقم الحديث: ۲۱۶۸، ۲۱۷۳. په دې روايت کښې پوره خبره داسې ده: قال لنا رسول الله صلى الله عليه وسلم: اغسلنها وتراً ثلاثاً أو خمساً. واجعلن في الخامسة كافوراً، او شيئاً من كافور. فإذا غسلتنها فأعلمني قالت: فأعلمناه. فأعطانا حقوه وقال: اشعرنها إياه. صحيح البخاري رقم الحديث: ۲۱۷۳مفهوم دادې چه حضورپاک ارشاد اوفرمائيلو چه کله تاسو غسل ورکړئې (دَکفن کولونه وراندې) ماته خبر راکړئې چنانچه مونږ (دَغسل نه فارغ شو) خبر مو ورکړو نوحضورپاک خپل لنګ زمونږ طرف ته واچولو..... الخ. علامه سيوطي رحمه الله فرمائي ((أنه أمر بذلك تبركاً به)) (الديباج على صحيح مسلم كتاب الجنائز باب في غسل الحدث رقم: ۲۱۶۸، ۴۵۵/۱) علامه نووي رحمه الله فرمائي ((والحكمة في إشعار هابه تبريكها به. فيه التبرك بآثار الصالحين ولباسهم)) (شرح النووي على صحيح مسلم كتاب الجنائز باب في غسل الميت رقم الحديث: ۲۱۶۸، ۷/۷)

[2]) لمعات التنقيح كتاب الجنائز باب غسل الميت وتكفينه رقم الحديث: ۱۶۳۴، ۳۱۸/۴.

چه كوم سوال كړې شوې ووچه دسلف صالحين تبركات سره څنګه سلوك كول وو؟نو په دې روايتونوسره دهغې جواب معلوم شو هم دا دې موافق مونږ له عمل كول پكاردى دا دې نه زيات وړاندې كيدل نه دى پكار.

**دنبى كريم ﷺ تبركات سره غلو:** بعض خلق دلته غلوكوى چه حب شريفه دپاره نذرونه منى فقهاء كرامو دا حرام ليكلى دى څكه چه نذر عبادت دې او عبادت د مخلوق دپاره نه شى كيدې عبادت صرف د الله ﷻ د پاره خاص دې. بحرالرائق كښې په دې خبره باندې اجماع نقل شوې ده چه نذر منل دمخلوق دپاره د ټولو په نيز اتفاقاً حرام دى. منجاورانو باندې خوراك خوړل او په هغې كښې دڅه قسم تصرف كول جائزنه دى. (وعظ الحبور، ص: ۲۱).

**تبركات په كار نه راځى:** (ب): په تبركات باندې دې څوك هم يقين نه كوى بغيرد ايمان نه ټول بې كاره دى. چنانچه اوګورئى چه ابن ابى سره څومره جمع شو حضورپاك خپل قميص مبارك دهغه په كفن كښې وركړو بنه دا خبره به چاته نصيب شى؟ كه نن صبا څوك ډير بنه اوكړى نو دكعبې دغلاف ټكړه به كيږدى خو د كعبې د غلاف دحضورپاك قميص سره څه نسبت؟ د رسول الله ﷺ بدن مبارك دعرش اوكعبې نه غوره دې اوكه چرې دكعبې غلاف د حضورپاك د قميص سره برابر هم اومنلې شى نودا دولت چاته نصيب كيدې شى چه دحضورپاك خپل لعاب مبارك دهغه په خله كښې پريوځى د عبدالله بن ابى دمرګ نه پس حضورپاك خپل لعاب مبارك هم دهغه په خله كښې اچولې وو هغه دحضورپاك چز وو دكوم بركت چه د لباس نه هم زيات دى. بيا حضورپاك دهغه د جنازې مونځ وركړو لكه چه دهغه دپاره ئې دمغفرت دعا اوكړه. بنه ده دا شرف اوعزت نن صبا چا ته نصيب كيدې شى چه حضورپاك اودهغه صحابه كرام ﷺ دهغه د جنازې مونځ اوكړى. خوباوجود دا دې ټولو خبرو عبدالله بن ابى ته دا دې تبركات نه هيڅ هم فائده اونه رسيدله څكه چه هغه دايمان نه محروم وو. الله ﷻ صفا فرمائيلى دى ﴿إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُوا وَهُمْ فَاسِقُونَ﴾[1] (الرفع والوضع ص: ۳۰) دحكيم الامت ﷫ عبارت مكمل شو.[2]

**قوله:: ورأيت بلالاً أخذ عَنَزَةً، فركزها:** اوما حضرت بلال ﷛ همسا نيولوسره اوليدلو (دكوم نه لاندې چه د اوسپنې پل (سپار) لګيدلې وو) كومه چه هغه په زمكه كښې ورخښه كړه.

**قوله:: عَنَزَةً:** دا نيمه نيزه يا دې نه څه زياته اوږدوالى كښې هغه همسا وى دكوم نه لاندې چه د اوسپنې پل لګيدلې وې په عام توګه د ډير عمر كسان خپل ځان سره ساتى د ډډې او سهارې وغيره دلګولو دپاره.[3]، دا دې جمع عَنَزٌ او عَنَزَاتٌ راځى

**قوله:: فركزها:** دانى په زمكه كښې ورخښه كړه چه په مانځه كښې د سترې كار وركړې شى

**قوله:: وخرج النبى صلى الله عليه وسلم فى حلة حمراء مشمراً:** او نبى ﷺ د خيمې نه بهر تشريف راوړو سره جوړه اغوستلو سره په داسې حال كښې چه خپل ازار (يا څادر) ئې راغونډولو

---

[1] سورت التوبة: ۸٤

[2] اشرف الجواب بيسواں اعتراض، تبركات نبوى ﷺ كى زيارت ص: ۱۳٦-۱۳۲.

[3] معجم الصحاح للجوهرى ص: ۷٤۷النهاية فى غريب الحديث والأثر: ۲٦۲/۲المعجم الوسيط ص: ٦۳۱عمدة القارى: ۱٤۸/٤.

**قوله:: حُلة**: دَنوې کپړو جوړې ته حله وائی هم دَ يوقسم دوه کپړې ،څادر او ازار، نه هم حله وائی. دَدې نه علاوه دَحلې استعمال دوه قطيزه کپړې باندې هم کيږی دَدې جمع حُلَل او حِلَاْل راځي (۱)

دَابن ابی داؤد رحمه الله په روايت کښې دَ دې حله باره کښې دی ((وعليه حلة حمراء يمنية وقطري)) (۲)

يعني حضورپاك دَسور رنګ حله اغوستې وه چه دَيمن دَ ښار قطر جوړ شوې څادرونو باندې مشتمله وه علامه عينی رحمه الله وائې چه دَحضورپاك دا جوړه دَ دريو اوصافو حامل وه يعني دَ ذات دَ صفت په اعتبارسره دَ سوررنګ وه. دَ جنس صفت په اعتبارسره يمني څادرې وې اودنوع دَ صفت په اعتبارسره هغه قطري وه. (۳) علامه انورشاه کشميری رحمه الله فرمائی چه شارحين بخاری رحمهم الله ليکلی دی چه دَهغې زمکه سپينه وه او په هغې باندې صرف سرې کرخې وې ما تتبع اوکړه نواحکام القرآن لابن عربي کښې دَ هغې دَپاره روايت ملاؤ شو. په ظاهره به دَ شارحينو مخې ته هم دغه روايت وی مګر حواله ئې نه ده ورکړې. (۴)

علامه عيني رحمه الله فرمائی چه دې خائی کښې يوه خبره داهم ونيلې شوې ده چه حضورپاك سره حله په سفر کښې ددې وجې نه اغوستې وه چه په دې سره په دښمن باندې رعب پريوځي او په هره يوغزوه کښې داسې لباس اغوستل جائز دی کوم چه دَ غزوه نه علاوه ورخوکښې اغوستل جائزنه وی. علامه صاحب فرمائی چه زه وايم دا مذکوره تاويل صحيح نه دې ځکه چه دا سفر دَ څه غزوه دَپاره نه وو بلکه داخو دَحجة الوداع نه دَ واپسئ سفر وو هغه وخت خو دَحضورپاك مخې ته هيڅ غزوه نه وه داسې معلومه ده چه دَدې خبرې قائل دَحنفيه دَ سرو کپړو باره کښې دَ استعمال والا دَ عدم جواز روايت اوريدوسره تاويل کړې دې. نوزه وايم چه دَدې هډو ضرورت نشته دې ځکه چه دَ احنافو دامسلك نه دې لهذا دَمذکوره جواب څه حاجت باقی نه پاتې کيږی (۵)

**قوله:: مُشَمِّرًا**: دادَباب تفعيل نه دَاسم فاعل صيغه ده. دَدې مطلب دې يوه کپړه راغونډول، که دَ لستوڼړی وی اوکه ازار يا پرتوګ وغيره. اودې خائی کښې مراد دادې چه نبی کريم ﷺ خپل ازار راغونډولو چه هغه په زمکه باندې رانښکلې شی. دَدې تفصيل په يوبل حديث کښې موجود دې. راوی وائی: ((كأني أنظر إلى بياض ساقيه)) لکه چه ما دَنبی عليه السلام دَ پنډو سپينوالې ليدلو (۶)

---

(۱) معجم الصحاح للجوهري ص: ۲۵۷ النهاية في غريب الحديث والأثر: ۴۶۳/۲التوضيح لابن ملقن: ۲۵۶/۵عمدة القاری: ۱۴۸/۴.

(۲) سنن ابی داؤد کتاب الصلاة باب فی المؤذن يستدير فی أذانه رقم الحديث: ۵۲۰

(۳) عمدة القاری: ۱۴۹/۴-۱۴۸.

عمدة القاری: ۱۴۹/۴-۱۴۸شرح سنن ابی داؤد للعينی کتاب الصلاة باب فی المؤذن يستدير فی ثوابة رقم: ۵۲، ۱۷۲/۲ عون المعبود کتاب الصلاة باب فی المؤذن يستدير فی أذانه رقم الحديث، ۵۲، ۲۲/۲-۲۲۱.

(۴) فيض الباری: ۲۶/۴أنوارالباری: ۱۳۹/۱۱العرف الشذی کتاب الطهارة باب ماجاء فی إدخال ال أصبع فی الأذان عند الأذان رقم الحديث: ۱۹۷، ۲۱۲/۱ سنن السلام کتاب الصلاة باب اللباس رقم الحديث: ۴۹۶، ۲۶۱/۲ فتح الباری لابن رجب الحنبلی، ۷۲/۲-۲۶۹مرقاة المفاتيح کتاب اللباس الفصل الأول رقم الحديث:۴۳۲۷، ۲۰۵/۸ زاد المعاد فصل فی ملابسه صلی الله عليه وسلم، ۱۳۷/۱.

(۵) عمدة القاری، ۱۴۹/۴.

(۶)التوضيح لابن ملقن: ۲۵۷/۵عمدة القاری: ۱۴۹/۴صحيح البخاری کتاب المناقب باب صفة النبی صلی الله عليه وسلم رقم الحديث: ۳۵۶۶صحيح مسلم کتاب الصلاة باب سترة المصلی والندب إلى الصلاة إلى سترة رقم الحديث: ۱۱۱۹.

**قوله:: صلى إلى العنزة بالناس ركعتين:** حضورپاك دَ دغه چوكې طرف ته مخ كولوسره خلقو ته دوه ركعته مونځ اوكړو. دې نه معلومه شوه چه دَحضورپاك دغه چوكه دَ سترې په توګه ښنه كړې شوې وه. دويمه خبره داده چه دا دوه ركعته دَ نورو احاديثو په رڼا كښې دَ ماسپښين دَ مونځ دوه ركعته وو. چه دَ سفر په حالت كښې دكيدو په سبب دوه ركعته كړې وو. اوګورئ. دمسلم په روايت كښې دى «فتقدم فصلى الظهر ركعتين» يعنى حضورپاك وړاندې شو دَماسپښين دوه ركعته ئې اوكړه (١)

**قوله:: ورأيت الناس والدواب يمرون من بين يدي العنزة:** اوما خلق او ځاروى اوليدل چه هغه دَ سترې مخې ته تيريدل. يعنې دَ سترې مخې ته يا شاته تيريدونكى تيريدل اودَحضورپاك مونځ جارى وو. دې نه معلومه شوه چه دَ سترې نه اخوا تيريدونكو دَ تيريدو سره په مانځه باندې څه اثر نه پريوځى. دَدې مقام باره كښې په احاديثوكښې ډير نو مختلف الفاظ راغلى دى مثلاً «تمر عن ورائها المرأة، يمر بين يديه الحمار والكلب لايمنع، يمر من ورائها المرأة والحمار» او «يمر بين يديه المرأة والحمار» وغيره (٢) بل سترې سره متعلق ټول ابحاث به په خپل مقام باندې راځى.

**دَمذكوره حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَدې حديث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې كوم چه «الحلة الحمراء» سره دې. (٣)

**دَمذكوره حديث نه مستفاد امور:** دَدې حديث نه ډير امور مستفاد كيږى مثلاً ① دسرې كپړې استعمال جائز دې ② دَسور رنګ دَ هرقسم خيمې استعمال جائز دې ③ دَ نبى كريم ﷺ دَ آثار نه تبرك حاصلول جائز دى ④ دَماء مستعمل استعمال جائز دې ⑤ په ځنګل وغيره كښې ستره لګولو سره مونځ كول پكاردى ⑥ دسترې دَمخې نه تيريدونكو تيريدوسره څه حرج نشته دې ⑦ په شرعى سفر كښې څلورركعتيز مونځ قصركولوسره كولې شى ⑧ په سفر كښې دَ مشر بنده خدمت كول مستحسن امر دې. (٤)

## ١٧-باب: اَلصَّلَاةِ فِى السُّطُوحِ وَالْمِنْبَرِ وَالْخَشَبِ

قَالَ أَبُوْعَبْدِاللهِ: وَلَمْ يَرَ الْحَسَنُ بَأْسًا أَنْ يُصَلَّى عَلَى الْجَمْدِ وَالْقَنَاطِرِ، وَإِنْ جَرَى تَحْتَهَا بَوْلٌ، أَوْفَوْقَهَا، أَوْأَمَامَهَا، إِذَاكَانَ بَيْنَهُمَا سُتْرَةٌ. وَصَلَّى أَبُوْهُرَيْرَةَ عَلَى سَقْفِ الْمَسْجِدِ بِصَلَاةِ الْإِمَامِ، وَصَلَّى ابْنُ عُمَرَ عَلَى الثَّلْجِ.

دا باب دې په چتونو باندې او په منبرونو باندې او لرګى (نه جوړې شوې تخته وغيره) باندې اودريدو سره دَمونځ كولو دَ حكم باره كښې.

**قوله:: السُّطُوح:** دَ سين په ضمه سره جمع ده دَسطح ، اودې نه مراد دَ كور چت دې كوم ته چه سقف

---

(١) التوضيح لابن ملقن: ٢٥٨/٥عمدة القارى: ١٤٩/٤ صحيح مسلم كتاب الصلاة باب سترة المصلى والندب إلى الصلاة إلى سترة رقم الحديث: ١١٩٢-١١١٩.

(٢) التوضيح لابن ملقن: ٢٥٨/٥عمدة القارى: ١٤٩/٤إرشادالسارى: ٣٦/٤.

(٣) عمدة القارى: ١٤٧/٤.

(٤) التوضيح لابن ملقن: ٢٥٨/٥-٣٥٦ عمدة القارى: ١٤٩/٤-١٤٧الإعلام بفوائد عمدة الإحكام باب الأذان الحديث الثانى معنى الوضوء: ٤٣٥/٢-٤٣٣إرشاد السارى: ٤٩/٢ الكنزالمتوارى: ٥٤/٤-٥٢.

(هم) واني. هسې ده يوځيز د پاسه حصې ته سطح هم ونيلي شي.[1]

**قوله: المنبر:** د ميم كسره سره ((نبرت الشيء إذا رفعته)) نه ماخوذ دې. د قياس مطابق خود ميم فتحه كيدل پكار وو خكه چه كسره خو د اسم آله علامت دې او هغه دلته مراد نه دې. ليكن دا لفظ سماعي كيدو د وجې نه داسې لوستلې كيږي. د دې جمع منابر راځي. منبر هر اوچت ځائې ته وائي ليكن اصطلاحاً د واعظ او خطيب د پاره په جمات كښې جوړشوې د ناستې ځائې ته وائي. د دې نوې معنی د اجتماع عام مقام، د عام مباحثو مقام، استيج او پليټ فارم دی. د كوم ځائې نه چه آواز اوچت كړې شي.[2]

**قوله: الخَشَب:** د خاء او شين سره د الخشبة جمع ده. هم دغه لفظ خُشُبٌ، خُشْبٌ او خُشْبَانٌ هم راځي د دې معنی د لرګې او شهتير ده.[3]

**د ترجمة الباب مقصد: د شاه ولی الله دهلوی رحمه الله رائې:** حضرت شاه ولی الله دهلوی رحمه الله فرمائي ((جُعِلَت لي الأرض مسجداً وطهوراً)) سره په ظاهره وهم كيږي چه مونځ هم په زمكه كيدل پكار دی نه چه په څه بل ځيز باندې اوكړې شي. نو امام بخاری رحمه الله دا وهم لرې كړو چه د زمكې نه علاوه په بل څه ځيز مثلاً چت، منبر او لرګی وغيره كه پاك وی نو په هغې باندې بغير د څه كراهت نه مونځ كول جائز دی. (چونكه دې مسئله كښې د سلف اختلاف وو په دې وجه امام بخاری رحمه الله جزئيات ذكر كړل).[4]

**د حضرت شيخ الحديث رحمه الله رائې:** حضرت شيخ الحديث مولانا محمد زكريا كاندهلوی رحمه الله فرمائي چه د حضرت اقدس شاه ولی الله رحمه الله رائې دا ده چه په حديث پاك كښې راځي (جُعِلَت لي الأرض مسجداً وطهوراً) خو زما په نيز د دې مسئلې زيات موافق ((باب الصلاة على الفراش)) دې. چرته چه به په دې مسئله بحث كيږي. دلته خو امام بخاری رحمه الله د نورو اختلافاتو طرف ته اشاره كوی. لكه چه دا اختلاف اوس زمونږ په زمانه كښې هيڅ هم نه دې ((كان لم يكن)) شو مګر چونكه د امام بخاری رحمه الله په نيز دا اختلاف وو په دې وجه هغوی په دې باندې باب اوتړلو. او ډير اختلافات داسې دی چه ډير زيات مشهور دی مثلاً رفع اليدين دا يو داسې د جګړې خبره نه وه لكه څنګه چه اوس شوې ده بهر حال زما په نيز امام بخاری رحمه الله اوس په دې باب سره د بعض تابعينو په قول باندې رد فرمائي لكه چه د بعض شراح نه نقل دی چه هغه خلق د ((صلوة على السطح)) د كراهت قائل دی. بل په دې باب سره په مالكيه باندې هم رد دې چه هغوی ((صلوة على المنبر)) د كراهت قائل دی. او همداسې د خشب سره په حضرت حسن بصری رحمه الله او ابن سيرين رحمه الله په قول باندې رد فرمائي ځكه چه هغوی نه ((صلوة على الخشب)) كراهت نقل دې.[5]

---

[1]) معجم الصحاح للجوهري ص: ۱۰۹۲ المعجم الوسيط ص: ۴۲۹.

[2]) معجم الصحاح للجوهري ص: ۱۰۱۵ القاموس الوحيد ص: ۱۶۰۲ التوضيح لابن ملقن: ۳۶۰/۵ عمدة القاری: ۱۵۰/۴.

[3]) معجم الصحاح للجوهري ص: ۴۹۶ النهاية في غريب الحديث والأثر: ۱/۴۹۱-۴۹۰.

[4]) شرح تراجم أبواب البخاري لشاه ولي الله محدث الدهلوي ص: ۲۱ تيسير القاری شرح فارسی صحيح البخاری: ۱۴۷/۲.

[5]) تقرير بخاری شريف: ۱۳۲/۲ الكنز المتواري: ۵۵/۴.

**دَعلامه ابن رجب حنبلي رحمه الله رائې:** علامه ابن رجب الحنبلي رحمه الله خپله شرح دَ بخاري السمی به فتح الباري کښې ليکي چه دَامام بخاري رحمه الله مقصود دَدې ترجمة الباب نه دادې چه مونځ په هر هغه مقام کښې جائز دې چه دَ مخ دَ زمکې نه اوچت وي برابر وي چه هغه په مخ دَ زمکې باندې کېخودې شوې وي لکه منبر دَ لرګي تخته وغيره يا دَ زمکې دَ مخ نه اوچت کړې شوې وي مثلاً په زمکه دپاسه جوړ شوې کمرې چت يا په مخ دَ زمکې باندې کېخودونکې هغه ځيز کوم چه ويلې کيدونکې نه وي کلک وي مثلاً کلکه شوې واوره وغيره.[1]

**دَ حضرت کشميري رحمه الله رائې:** حضرت شاه صاحب رحمه الله فرماني دَ منبر نه اوچت ځائې باندې مونځ کولو او ورکولو دَ جواز طرف ته اشاره ده او خشب (لرګي) سره ئې اوخودل چه څنګه په خاوره سجد اداکيدې شي دغه شان په لرګي وغيره باندې هم ادا کيدې شي.[2]

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عيني رحمه الله رائې:** دې دواړو صاحبانو دَدې ترجمة الباب دامقصد خودلې دې چه اولاً خو امام بخاري رحمه الله په دغه مذکوره ځيزونو باندې دَمونځ کولو جواز ښانې او دويم بعض تابعين اوامام مالک رحمه الله باندې رد کول مقصود دې.[3]

**قوله: قال أبوعبدالله:** ابوعبدالله نه مراد پخپله مصنف يعني هم امام بخاري رحمه الله دې.

**قوله: ولم ير الحسن بأسا أن يصلى على الجمد والقناطير وإن جرى تحتها بول، أو فوقها، أو أمامها، إذا كان بينهما سترة.**

حضرت حسن بصري رحمه الله به په واوره او پولونو باندې مونځ کولوکښې هيڅ حرج نه ګنړلو. که دَهغې نه ښکته پورته يا دَهغې وړاندې متيازې بهيدلې. خوچه دمونځ ګذار او دغه (بهيدونکو متيازو) په مينځ کښې څه پرده وي. مذکوره عبارت دَ امام بخاري رحمه الله قول دې په کوم کښې چه هغوی دَ حسن بصري رحمه الله طرف ته منسوب خبرې نه دليل نيولو سره يا دَحضرت حسن بصري رحمه الله طرف ته منسوب خبره دَدليل په توګه پيش کړې ده چه جمد يعني په واوره يا پلونو باندې اودريدو سره مونځ کول جائز دې.

**قوله: الجمد:** دا لفظ دَ جيم فتحه اوميم فتحه او سکون سره نقل دې دَدې جمع اجماد او جماد راځي ددې معنی واوره ده يعني کلکې شوې اوبه چه تهوس شکل اختيار کړې وي.[4]

**قوله: القناطير:** داجمع ده قنطرة قنطرة هغه پل ته وائی چه دَ اوبودپاسه تيريدودپاره جوړولې شی که دا پل دَ خښتو يا کاڼړو نه جوړکړې شوې وی نودې ته قنطرة وائی اوکه دَ لرګی نه جوړشوې وی نو هغې ته جسر وائی.[5]

---

[1] فتح الباري لابن رجب الحنبلي: ٢/٧٣-٧٢.

[2] أنوارالباري: ١١/١٤١فيض الباري: ٢/٢٧.

[3] فتح الباري: ١/٦٣٠عمدة القاري: ٤/١٤٩.

[4] معجم الصحاح للجوهري ص: ١٨٦المحكم والمحيط الأعظم لابن سيده: ٧/٢٤٩تاج العروس من جواهر القاموس للزبيدي: ٧/٥١٨.

[5] المحكم والمحيط الأعظيم: ٤/٦٣٠المخصص لابن سيده: ٩/١٦٢ تاج العروس للزبيدي: ١٢/٤٨٣.

**قوله: وإن جري تحتها..... الخ**: په دې جمله كښې دَ مختلف صورتونوطرف ته اشاره كول مقصود دى چه مونځ كونكې په واوړه باندې يا دَ اوبودپاسه جوړشوى پل باندې ولاړ وى اودَ دغه واوړې يا پل لاندې څه ناپاك يانجس څيز مثلاً متيازې وغيره بهيږى نو په دې كښې هيڅ حرج نشته دې مونځ به اوشى. دغه شان دَ مونځ ګذار مخې طرف ته متيازې بهيږى يا دَ مونځ ګذار دَ سر طرف ته دَ چت وغيره دپاسه متيازې بهيږى نو په دې سره دَ مونځ په جواز باندې څه اثرنه پريوځى البته شرط صرف دومره دې چه دَ ميتازو بهيدو او مونځ ګذار په مينځ كښې فصل وى كوم چه لفظ ستره سره بيان كړې شوې دې.

علامه كشميرى رحمه الله فرمانې پخوانتى زمانه كښې په يخو علاقوكښې داعام عادت وو چه داسې څاروى به اخستو سره به نى دَ پلونونه لاندې بوتلل هلته به هغې ميتازې هم كولې. دغه شان به دَهغه پلونو لاندې هغه متيازې بهيدلې نو په دغه دوران كښې كه دَ پل دپاسه څوك مونځ كوى نوڅه حرج نشته. دې ځائى يوه خبره كولې شى چه دَحضرت حسن بصرى رحمه الله طرف ته منسوب دې قول كښې دَ كومو متيازو ذكر دې دې نه مراد دَغيرماكول اللحم متيازې دى نه چه دَ ماكول اللحم. دا ډيره دَعقل نه لرې خبره ده ځكه چه دَ پلونو لاندې به كوم څاروى راوستلې شو هغه به هم ماكول اللحم وو نه چه غيرماكول اللحم. بلكه دَدې نه خوداهم معلوميږى چه دَحضرت حسن بصرى رحمه الله په نيزماكول اللحم متيازې هم نجس دى لكه چه امام بخارى رحمه الله تصريح كړې ده چه دَحضرت حسن رحمه الله په نيز اوښ غواګانو او چيلو متيازې مكروه دى. بل ردالمحتار كښې يوه مسئله هم ذكر ده چه دَاصطبل په چت باندې مونځ كول مكروه دى. دَدې وجه داده چه دَدغه اصطبل نه اوچتيدونكې بدبوئى داره هواګانې دَ دغه كراهت سبب دې نه چه دَهغوى ابوال.(١) «وإن جري تحتها بول» باره كښې علامه كرمانى رحمه الله فرمانى چه دَدې تعلق صرف قناطرسره دې.(٢)

په دې باندې علامه عينى رحمه الله فرمانى زه وايم چه دَدې جملې تعلق الجمد سره كيدل هم صحيح دى ځكه چه واوره په حقيقت كښې هم اوبه وى. دَيخننى دَ زياتوالى دَ وجې نه كلكه شى اوكله خونهر اوبه هم دومره كلكې شى چه په هغې باندې په آسانتى سره تګ هم ممكن كيږى لهذا كه يوسړې په واوره باندې اودريږى او مونځ كوى اودَ دغه كلكې شوې واوړې لاندې متيازې بهيږى نونه دې سره دَمونځ په صحت باندې هيڅ اثر نه پريوځى

اوكه چرې په دې باندې دا اشكال اوكړې شى چه په دې صورت كښې په عبارت كښې موجود الفاظ «تحتها، فوقها، أمامها» كښې دَ ها ضمير مؤنث مرجع به څه وى؟ ځكه چه الجمد خو مؤنث نه دې. نودَدې جواب دادې چه معجم الصحاح په حواله سره داخبره تيره شوې ده چه الجمد جمع دَ جامد اوجمع دَ جماعت په حكم كښې كيدوسره مؤنث كيږى نودَ دغه مؤنث ضمائر مرجع الجمد كيدو كښې هيڅ اشكال باقى نه پاتې كيږى.(٣)

علامه عينى رحمه الله فرمانى كه دَ واوړې سانچه كلكه شوې وى او په دې باندې دَ سجدې په حالت كښې تندئى اونخلى نو په هغې باندې سجده كول جائز دى اوكه چرې واوره سخته نه وى ويلې شوې وى يا خوره شوې وى او په دې باندې تندې اونه نخلى نو په دې باندې سجده كول جائزنه ده. په مجتبى

---

(١) فيض البارى: ٤/٢٧.
(٢) شرح الكرمانى: ٤/٤٠.
(٣) عمدة القارى: ٤/١٥٠.

کنبې دی که سجده نی د واړي دپاسه اوکړه یا د وښو په ډیرې په ریشنلې شوې مالوچو باندې اوکړه په داسې توګه چه تندې په دغه څیزونو پورې اولګی او تندنی سختوالی سره اولګیدو نوسجده به اوشی ګنی نه کیږی. فتاوی ابی الحفص کښې دی چه واوړه غنم اوربشې جوار وغیره باندې سجده کولوسره به مونځ صحیح شی لیکن پلاله (د وریژو دروزه) باندې سجده کولوسره به مونځ صحیح نه شی. ځکه چه په دې باندې تندې په ښه شان سره نه شی کیخودې او غیر منجمد واوړه او وښو وغیره باندې به هم مونځ صحیح نه وی. مګردا چه دا وابښه ښه شان سره کلک شی اود سجدې ځائی سختی ښه شان سره محسوس شی. (۱)

علامه کشمیری رحمه الله فرمانی زمونږ په نیز په کټ باندې مونځ کول صحیح دی ځکه چه په دې باندې تندې ښه شان سره کیخودې شی. په مالوچو باندې مونځ صحیح نه دې ځکه چه په دې باندې تندې نه کلکیږی او په واوړه باندې هم تندې په ښه شان سره نه شی لګولې اود دې د سخت یخوالی د وجې نه په لاسونو باندې زور ورکولو سره صرف مساس کولې شی. خو په سجده کښې پوره شان سره سر د سجدې په ځائې باندې کیخودل شرط او ضروری دی. لهذا واوړه په تخت او کټ باندې قیاس کول صحیح نه دی.(۲)

**قوله:: إذا کان بینهما سترة:** بینهما کښې د هما ضمیر مرجع باره کښې علامه کرمانی رحمه الله فرمانی ((أي: بین القناطر والبول، أو بین المصلي والبول)) یعنی په مذکوره صحت کښې د مانځه د جواز حکم په دې صورت کښې دې چه کله د پلونو او متیازو په مینځ کښې څه حائل موجود وی یا بیا د مونځ ګذار اومتیازو په مینځ کښې څه حائل موجود وی. اودا دې قید تعلق صرف لفظ إمامها سره دې نه چه د دې اخوات تحتها او فوقها سره.(۳)

په دې قول کښې علامه کرمانی رحمه الله چه کوم دویم احتمال ذکرکړې دې په هغې کښې مصلی ذکر صراحت سره امام بخاری رحمه الله په قول کښې نشته دې بلکه هغه لفظ یصلی نه ماخود دې (۴) ددې قدام نه مراد څومره فاصله ده؟ ددې تعیین هیڅ یوحد سره نقل نه دې. ښکاره خبره داده چه هغه نجاست مونځ ګذار سره متصل نه وی. بیا عام ده که نیزدې وی اوکه لرې په دې سره هیڅ فرق نه پریوځی (۵) البته د مالکیه نه ابن حبیب قول دې که قصداً د نجاست مخې ته مونځ اوکړې شی اونجاست مونځ ګذار سره نیزدې وی نومونځ به راګرځولې شی.(۶) په المدونة الکبری کښې دی که چرې چا د بیت الخلاء مخې ته مونځ اوکړو نو څه حرج نشته دې (۷)

علامه ابن رجب الحنبلی رحمه الله په خپل شرح بخاری کښې د امام بخاری رحمه الله د مذکوره قول په شان هم معنی اثر ذکرکړې دې: ((روي حرب بإسناده، عن همام، سئل قتادة عن المسجد یکون علی القنطرة؟ فکرهه، قال

---

(۱) عمدة القاري: ۱۵۰/۴.

(۲) أنوار الباري: ۱۴۲/۱۱.

(۳) شرح الکرماني: ۴۰/۴.

(۴) عمدة القاري: ۱۵۱/۴.

(۵) عمدة القاري: ۱۵۱/۴.

(۶) الذخیرة للقرافی کتاب الصلاة الباب الثالث فی شروط الصلاة فصل فی الرعاف: ۹۵/۲.

(۷) المدونة الکبری کتاب الصلاة فی المواضع التی تجوز فیها الصلاة: ۹۰/۱.

همام: فذكرت ذلك لمطر، فقال: كان الحسن لا يري به بأساً»، يعني حرب رحمه الله په خپل سندسره دهمام رحمه الله نه روايت كړې دې چه حضرت قتاده رحمه الله نه په هغه جمات (كښې مونځ كولو)باره كښې سوال اوكړې شو (چه څه حكم دې؟)، نوهغوي په داسې جمات كښې مونځ كول ناخوښه اوګرځول.(١)

## تعليق

**قوله: وصلى أبوهريرة على ظهر المسجد بصلاة الإمام:** اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه دامام په اقتداء كښې دجمات په چت باندې(اودريدو سره)مونځ اوكړو. په دې جمله كښې ظهر المسجد الفاظ ابى ذر،اصيلي او ابى الوقت د روايت مطابق دى(٢)اود مستملي درروايت مطابق ددې په ځائې سقف المسجد الفاظ دى.(٣)

**دتعليق تخريج:** دا تعليق ابن ابى شيبه رحمه الله موصولاً روايت كړې دې. «عن ابن أبى ذئب عن صالح مولى التوأمة – وفيه فقال – قال: صليت مع أبى هريرة فوق المسجد بصلاة الإمام وهو الأسفل»(٤)راوى وائى چه ما حضرت ابوهريره رضي الله عنه سره دجمات په چت باندې امام پسې مونځ اوكړو په داسې حال كښې چه امام ښكته وو. المصنف كښې هم ددې اثر نه علاوه دمختلف حضراتو نه ډير صحيح آثار نقل دى.(٥)

**تشريح او دائمه مذاهب:** ددې تعليق نه داخودل مقصوددى كه دامام اومقتدى داودريدو مقام مختلف وى نوبياهم مونځ صحيح دې. په دې باره كښې د ټولو ائمه حضراتو په نيز دا ضرورى دى چه مقتدى ته دامام د انتقالاتو ښه علم كيږى. دې نه علاوه دټولو ائمه حضراتو په نيز په دې مقام باندې څه جزوى تفصيلات هم دى چه د فقه په كتابونوكښې كتلې شى. دلته اجمالاً دومره ذكركول ضرورى دى چه احناف (٦)په نيز په مذكوره صورت كښې مونځ اداكول صحيح دى. البته دټولو په نيز ضرورى هم دغه دى چه دامام انتقالات څوچه يا ښكارى يا په آواز سره دهغې ښه اندازه كيږى. ليكن كه امام خان له ښكته منزل باندې وى اومقتديان ټول په پورته منزل باندې وى نودا صورت مكروه دې. ليكن امام مالك رحمه الله صلاة خمسه كښې خو د ائمه ثلاثه سره دې ليكن دجمعه د مونځ په وخت هغه ددې صورت اجازت نه وركوى.(٧)

---

١) فتح البارى لابن رجب الحنبلى ٧٤/٢.

٢) إرشادالسارى: ٤٠/٢.

٣) فتح البارى: ٦٣٠/١شرح الكرمانى: ٤٠/٤عمدةالقارى: ١٤١/٤.

٤) المصنف لابن أبى شيبة كتاب الصلاة من كان يرخص فى ذلک رقم الحديث: ٦٢١٥، ٣٢٨/٤.

٥) المصنف لابن أبى شيبة كتاب الصلاة من كان يرخص فى ذلک رقم الحديث: ٣٢٩/٤-٣٢٨،٦٢٢٠-٦٢١٥

٦) الفتاوى الهندية كتاب الصلاة الباب الخامس فى الإقامة الفصل الخامس فى بيان مقام الإمام والمأموم: ٨٨/١ بدائع الصنائع كتاب الصلاة فصل وأما واجباتها فانواع، بعضها قبل الصلاة: ١/١٤٦فتح القدير كتاب الصلاة فصل ويكره استقبال القبلة: ١/٤٣٣.. شوافع كتاب الام للشافعى كتاب الصلاة باب مقام الإمام مرتفعاً و المأموم مرتفع: ٣٧٤/٢الحاوى فى فقه الشافعى كتاب الصلاة، باب موقف صلاة المأموم مرتفع مع الإمام: ٢/٣٤٣العزيز شرح الوجيز كتاب الصلاة الجماعة شرائط القدوة: ١٧٦/٢.: اوحنابله المبدع شرح المقنع كتاب الصلاة فصل فى الموقف: ٩٨/٢كشف القناع كتاب الصلاة فصل فى أحكام الإقتداء: ٤٦٧/١شرح منتقهى الإرادات البهوتى كتاب الصلاة فصل فى الإقتداء: ٥٨٢/١.

٧) المدونة كتاب الصلاة الصلاة فوق ظهرالمسجد بصلاة الإمام: ٨٢/١الذخيرة كتاب الصلاة الفصل الرابع فى تبعية الإمام فى المكان: ٢٥٦/٢حاشية الدسوقى كتاب الصلاة فصل فى بيان حكم صلاة الجماعة: ٢٣٦/١.

**دتعليق ترجمة الباب سره مناسبت:** دمذکوره تعليق ترجمة الباب سره مناسبت بنکاره دي چه ترجمة الباب کښې په سطوح باندي دَ مونځ کولو ذکر وو او هم دغه ذکر په تعليق کښې هم دي.[1]

حضرت ګنګوهي رحمه الله فرمائي دَ مذکوره تعليق محل زمونږ په نيز به په دې صورت کښې وی چه کله په چت باندې اودريږی اودَ اقتداء کونکې امام نه وړاندې نه وی ځکه چه که چرته داسې اوشی نو مونځ يعنی اقتداء به فاسد شی او امام به خان له مونځ کونکې شميرلې کيږی.[2]

په دې باندې حضرت کاندهلوي رحمه الله تائيداً ددرمختار نه جزئيه پيش کوی چه داقتداء دَ شرائط نه دا هم دی چه دمقتدی قدم دې دَ امام دَ ګيټې نه وړاندې نه وی. په دې باندې علامه شامي رحمه الله ليکلی دی که دَ مقتدی خپې اوږدې وی دکوم دَ وجې نه چه ددغه دَ خپوګوتې دَ امام دَ قدمونو نه وړاندې هموتلې وی نو هيڅ حرج نشته دې.[3]

**قوله: وصلى ابن عمر على الثلج:** اوحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په واوره باندې اودريدو سره مونځ اوکړو. دَ ډير لټون نه باوجود دمذکوره قول تخريج معلوم نه شو. او په دې باره کښې شارحين هم څه کلام نه دې کړې. البته صرف علامه عينی رحمه الله صرف دومره خبره کړې ده چه دَامام بخاری رحمه الله په مذکوره قول کښې لفظ الثلج نه مراد کلکه واوره به مراد اخستې شی نوهله به دَدې قول ترجمة الباب سره مناسبت ثابت کړې شی اوهغه داسې چه پخه واوره به دَ کانړی چت يا لرګی په شان شی او په دې خيزونوباندې دَمونځ کيدو ذکر ترجمة الباب کښې ذکر دې او که چرې واوره ويلې شوې اونرمه وی نو په هغې به سجده کول صحيح نه وی لکه څنګه چه وړاندې ذکرشو.[4]

## الحديث الأول

[٣٧٠]- حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو حَازِمٍ، قَالَ: سَأَلُوا سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ: مِنْ أَيِّ شَيْءٍ المِنْبَرُ؟ فَقَالَ: مَا بَقِيَ بِالنَّاسِ أَعْلَمُ مِنِّي، هُوَ مِنْ أَثْلِ الغَابَةِ عَمِلَهُ فُلاَنٌ مَوْلَى فُلاَنَةَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، «وَقَامَ عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ عُمِلَ وَوُضِعَ، فَاسْتَقْبَلَ القِبْلَةَ، كَبَّرَ وَقَامَ النَّاسُ خَلْفَهُ، فَقَرَأَ وَرَكَعَ وَرَكَعَ النَّاسُ خَلْفَهُ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ ثُمَّ رَجَعَ القَهْقَرَى، فَسَجَدَ عَلَى الأَرْضِ، ثُمَّ عَادَ إِلَى المِنْبَرِ، ثُمَّ رَكَعَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ، ثُمَّ رَجَعَ القَهْقَرَى حَتَّى سَجَدَ بِالأَرْضِ»، فَهَذَا شَأْنُهُ، قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ: قَالَ عَلِيُّ بْنُ المَدِينِيِّ: "سَأَلَنِي أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ رَحِمَهُ اللَّهُ عَنْ هَذَا الحَدِيثِ، قَالَ: فَإِنَّمَا أَرَدْتُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ أَعْلَى مِنَ النَّاسِ فَلاَ بَأْسَ أَنْ يَكُونَ الإِمَامُ أَعْلَى مِنَ النَّاسِ بِهَذَا الحَدِيثِ، قَالَ: فَقُلْتُ: إِنَّ سُفْيَانَ بْنَ عُيَيْنَةَ كَانَ يُسْأَلُ عَنْ هَذَا كَثِيرًا فَلَمْ تَسْمَعْهُ مِنْهُ قَالَ: لاَ"[5] [٢٢٢٠،١٩٨٨،٨٧٥،٤٣٢]

---

[1] عمدة القاري: ١٥١/٤.

[2] الكنزالمتواري: ٥٦/٤.

[3] حاشية ابن عابدين كتاب الصلاة باب الإمامة مطلب شروط الإمامة الكبرى: ٢٨٦/٢.

[4] عمدة القاري: ١٥١/٤ تيسيرالقاري شرح فارسي صحيح البخاري: ١٤٦/٢.

[5] أخرجه البخاري في صحيحه في كتاب المساجد باب الاستعانة بالنجار والصناع في أعواد المنبر والمسجد رقم الحديث: ٤٤٨ وفي الجمعة باب الخطبة على المنبر رقم الحديث: ٩١٧ وفي البيوع باب من النجار رقم الحديث: ٢٠٩٤ وفي الهبة باب

**ترجمه:** دحضرت ابوحازم رحمه الله نه روايت دي چه خلقو دحضرت سهل بن سعد رضي الله عنه نه معلومات اوكړل چه دَ نبي كريم ﷺ منبر دَ څه څيز نه جوړ شو؟ حضرت سهل رضي الله عنه دَدې په جواب كښې اوفرمائيل چه په خلقو كښې په دغه وخت دَدې خبرې باره كښې زما نه زيات پېژندونكي څوك باقي پاتې نه شو او هغه منبر غابه (مقام) غز نه جوړشوې وو. دَ فلانكې ښځې فلانكى غلام دا دَ رسول الله ﷺ دپاره جوړ كړو. كله چه هغه تياركړې شو (جمات كښې) كېخودې شو نو رسول الله ﷺ په دې باندې اودريدو خپل مخ ئې دَ قبلې طرف ته كولو سره (دمانځه دپاره) اودريدو. تكبير ئې اووئيل او خلق دحضورپاك شاته (دمانځه دپاره) اودريدل بيا حضورپاك قراءت اوكړو او ركوع ئې اوكړه خلق دَ حضورپاك شاته (دحضورپاك په اقتداء كښې) ركوع اوكړه. بيا حضورپاك خپل سر مبارك (دَركوع نه) اوچت كړو بيا حضورپاك شاته شو (يعني دَ منبر دَ پاؤړني نه راكوز شو داسې چه سينه مباركه ئې دَ قبلې نه واؤنړيده) اوپه زمكه ئې سجده اوكړه. بيا حضورپاك دوباره منبر ته اوختلو بيا ئې قراءت اوكړو او بيائې ركوع اوكړه بيائې دَ ركوع نه سر اوچت كړو ( اودَ قبلې طرف نه مخ اړولونه بغير) شاته شو او په زمكه ئې سجده اوكړه. دا قصه ده دَ هغه (منبر). ابوعبدالله (امام بخاري رحمه الله) اوفرمائيل چه ماته علي بن عبدالله (المديني) رحمه الله اووئيل چه (امام) احمدبن حنبل رحمه الله دَ دې حديث (مدلول) باره كښې ماته تپوس اوكړو او وئې وئيل چه زما مطلب دادې چه جناب رسول الله ﷺ (مونځ كولو سره) دَخلقو په مقابله كښې پاس (والاخاني باندې) وو لهذا ددې حديث په بنياد باندې كه چرې امام دَ خلقو (يعني مقتديانو) نه پورته وي نوڅه حرج نشته دې. هغوى (يعني علي بن عبدالله المديني رحمه الله) اووئيل چه ما اووئيل چه حضرت سفيان بن عيينه رحمه الله نه خودَ دې حديث متعلق اكثر تپوس كيدلو آيا تا دَهغوى نه داحديث نه دې اوريدلې؟ نو هغوى (يعني احمدبن حنبل رحمه الله) جواب وركړو چه نه.

## تراجم رجال

**علي بن عبدالله:** دا امير المؤمنين في الحديث امام ابوالحسن علي بن عبدالله بن جعفر بن نجيح سعدي نصري رحمه الله دې. دې دَ ابن المديني په نوم سره مشهور دې. دَدوى تفصيلي حالات كتاب العلم باب الفهم في العلم كښې تيرشوى دى.[1]

**سفيان:** دامشهور محدث سفيان بن عيينه بن ابي عمران هلالي كوفي رحمه الله دې. دَدوى تفصيلي حالات كتاب العلم باب قول المحدث حدثنا، اوأخبرنا وأنبأنا كښې تير شوې ده.[2]

**ابوحازم:** داسلمه بن الاشجعي الكوفي مولى عزة الاشجعية رحمه الله دې دَ دوى تفصيلي حالات كتاب العلم باب هل يجعل للنساء يوم على حدة في العلم كښې تيرشوى دى.[3]

---

من استوهب من أصحابه شيئا رقم الحديث: ٢٥٦٩ومسلم في صحيحه في المساجد باب جواز الخطوة والخطوتين في الصلاة رقم الحديث: ٥٤٤وأبوداؤد في سننه في الصلاة باب في اتخاذ المنبر رقم الحديث: ١٠٨٠والنسائي في سننه في المساجد باب الصلاة على المنبر رقم الحديث: ٧٤٠وابن ماجة في سننه في إقامة الصلوات باب ماجاء في بدء شأن المنبر رقم الحديث: ١٤١٦وفي جامع الأصول حرف الصاد الكتاب الأول في الصلاة القسم الأول في الفرائض الباب الثاني في صلاة الجماعة الفصل الرابع في في أحكام المأموم الفرع الثاني في الاقتداء النوع الرابع في ارتفاع مكان الإمام رقم الحديث: ٣٩٠١، ٦٣٤/٥

[1] كشف الباري: ٢٩٧/٣.

[2] كشف الباري: ٢٣٨/١، ١٠٢/٣.

[3] كشف الباري ١٠١/٤.

**سهل بن سعد الساعدي:** دا ابن سعد الساعدی ابوالعباس الانصاری الخزرجی رحمه الله دي. دَدوی حالات هم كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه كښې تيرشوی دی. (۱)

## شرح حديث

**قوله:: قال سألوا سهل بن سعد، من أي المنبر؟** ابوالحازم رحمه الله اووئيل چه خلقو دَحضرت سهل بن سعد رضي الله عنه نه سوال اوكړو چه دنبی اكرم ﷺ منبر دَ څه څيز نه جوړوو؟ دي نه مراد دادې چه دَرسول الله ﷺ منبر دكوم قسم لرګی نه جوړوو. او المنبر كښې الف لام عهدی دې اومراد دې نه منبر رسول دې. (۲)

دَ سنن ابی داؤد په روايت كښې دی چه خلق حضرت سهل رضي الله عنه له راغلل اودَ منبر رسول باره كښې دَخپل شك اظهار دَ سوال په توګه كولو سره معلومه كړه چه هغه دكوم لرګی جوړشوې وو؟ (۳)

**قوله:: فقال: ما بقي بالناس أعلم مني:** حضرت سهل رضي الله عنه جواب وركړو چه په دې باره كښې په خلقو كښې مانه زيات پيژندونكې څوك هم نشته دې. بالناس كښې باء دَ في په معنی كښې ده يعنې في الناس اودكشميهنی په روايت كښې هم في الناس دې. (۴)

حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائی (دَحضرت سهل رضي الله عنه قول) ((مابقي في الناس أعلم به مني)) په دې وجه هغه ټول صحابه چه هغه وخت موجود وو (كوم وخت چه منبر جوړكړې شوې وو) هغه دغه وخت وفات شوې وو بس هم زه ژوندې يم په دې وجه ماته زيات خبر دې. (۵)

ابن ملقن رحمه الله فرمائي چه يوعالم دَيو څيز په پيژندګلوكښې منفرد وی نوهغه هم داسې جمله استعمالولې شي دې دپاره چه خلق دَ دغه څيز علم محفوظ كولو طرف ته متوجه شی. (۶)

**قوله:: هومن أثل الغابة:** هغه (منبر) دَ غابه دَ غز نه جوړشوې وو.

**دَ اثل معنی:** دَ غز ونې ته أثل وائی (۷) دَ صحيحين په روايات كښې په دې باره كښې دوه شان الفاظ ملاويږی. ((من أثل الغابة)) او ((من طرفاء الغابة)) (۸). أثل او طرفاء معنی كښې څه فرق نشته دې يو ځنګلی ونه ده كوم ته چه غز وائی دابالكل نيغه او اوږده ونه وی دَدې لرګې ډير مضبوط او كلك وی. دَبعض خلقو وينا ده چه أثل په اوږدوالی كښې طرفاء نه لږ شان لوئی وی اودَ طرفاء مشابه وی. او بعض دا فرق

---

(۱) كشف البارى كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه.

(۲) التوضيح لابن ملقن: ۳۶۲/۵فتح البارى: ۶۳۱/۱ عمدة القارى: ۱۵۲/۴.

(۳) سنن أبي داؤد كتاب الصلاة باب فى اتخاذالمنبر رقم الحديث: ۱۰۸۰.

(۴) فتح البارى: ۶۳۱/۱عمدة القارى: ۱۵۲/۴إرشادالسارى: ۴۰/۲.

(۵) الكنز المتوارى: ۵۶/۴تقريربخارى شريف: ۱۳۳/۲.

(۶) التوضيح لابن ملقن: ۳۶۳/۵.

(۷) معجم الصحاح للجوهرى ص: ۲۸النهاية فى غريب الحديث والأثر: ۳۸/۱.

(۸) صحيح البخارى كتاب الصلاة باب الخطبة على المنبر رقم الحديث: ۹۱۷صحيح مسلم فى المساجد جواز الصلاة والخطوتين فى الصلاة رقم الحديث: ۵۴۴.

بیان کړي دي چه غز نه چه کوم مذکر وی هغې ته أثل او کوم چه مؤنث وی هغې ته طرفاء وائی.[1]

**دَ غابة معنی:** غابه دَ یوځنګل نوم دې. دادَ مدینې طیبې نه دَ شام دَملك طرف ته تلوسره دَ یومشهور خانی نوم دې چه دَ ۹ میله په فاصله باندې وو. دې خانی کښې به دَحضورپاك اوښان وو. هم دې خانی کښې دَ عرنیین قصه پیښه شوې وه. یاقوت غابه دَ مدینې نه په څلورمیله کښې خودلې ده او بکری وئیلی دی چه غابه نومې خاپونه دوه دی یو علیا او بل سفلی. جامع کښې دی چه چرته هم ګڼړې ونې وی هغه خانی ته غابه وائی.[2]

حضرت شیخ الحدیث رحمه الله لیکی چه دَ أثل معنی غز ده اوغابه دَ یوخانی نوم دې اومطلب دا چه هغه دَ غابه مقام دَ غز نه جوړشوې وو. او دویم قول أثل معنی خو هم غز دې اوغابه ښه ګڼ ته وائی په دې صورت کښې به مطلب دا شی چه دَ ګڼړې ونې غز وو مګر اضافت زیات واضح ړومبی صورت کښې کیږی زما په نیز هم دغه اولی دې.[3]

**قوله:: عَمِلَه فلانٌ مولی فلانةَ لرسول الله صلی الله علیه وسلم:** دَ فلانکې ښځې فلانکی غلام دا د رسول الله ﷺ دپاره جوړکړو.

**منبرچا جوړکړو؟:** حدیث پاك کښې خوصرف دومره راغلی دی چه دا منبر دَ فلانکې ښځې فلانکی غلام جوړکړې دې دَهغه دَ نوم په تعیین کښې شارحین حدیث دَ روایاتو او آثارو په رڼاکښې ډیر نومونه ذکرکړی دی. حافظ ابن حجر رحمه الله اووه نومونه ذکرکړی دی او په هغې کښې ترجیح میمون نومې نجار (ترکهان) ته ورکړې ده. اوزمونږ دَ دیوبنداکابر علماؤ نه حضرت شیخ الحدیث صاحب کاندهلوی رحمه الله هم دې ته ترجیح ورکړې ده.[4]

حافظ صاحب چه کوم نومونه اخستې دی هغه دادی: ① ابراهیم ② باقول ③ صباح ④ قبیصه یا قبیصه المخزومی ⑤ کلاب (دَحضرت عباس رضی الله عنه غلام) ⑥ تمیم داری رضی الله عنه ⑦ میناء دَ قبیله بنی سلمه یو انصاریه ښځې غلام. دَدې اووه نه علاوه یو قول دَمیمون هم دې دکوم باره کښې «أشبه الأقوال بالصواب» وئیلې شوې دې. حافظ صاحب رحمه الله وائی هم دَ یو سړی دامختلف نومونه دی. دا احتمال دَ ډیرې لرې درجې دې اوکه چرې دا اووئیلې شی چه دې ټولو په یوخائی جوړکړې دې نوداسې هم ممکن نه دی ځکه چه هغه وخت په مدینه کښې هم یو ترکهان وو. البته په یوه درجه کښې داخبره قرین قیاس معلومیږی چه اصل کار دَ یوکس وی او باقی دَ هغه امدادیان وی.[5]

مولی فلانة اوس داښځه څوك وه؟ دَدې تعیین هم په تعیین سره نه معلومیږی صرف دومره ده چه هغه انصاریه وه دَهغې دَنوم باره کښې یوقول علاثه دې او بل قول عائشة أنصاریه دې. دَدې ښځې دَ نوم

[1] التوضیح لابن ملقن: ۳۶۲/۵فتح الباری: ۵۱۳/۲عمدة القاری: ۱۵۲/۴إرشادالساری: ۴۰/۲فضل الباری : ۵۹/۳ سراج القاری: ۴۰۳/۲.

[2] معجم الصحاح للجوهری ص: ۷۹۰ النهایة فی غریب الحدیث والأثر: ۳۸/۱التوضیح لابن ملقن:۳۶۱/۵فیض الباری: ۲۸/۴عمدة القاری: ۱۵۴/۴فتح الباری کتاب الأطعمة باب الخطبة علی المنبر رقم الحدیث: ۹۱۷، ۵۱۲/۲.

[3] تقریر بخاری للکاندهلوی: ۱۳۳/۲الکنزالمتواری: ۵۶/۴.

[4] فتح الباری کتاب الصلاة فی الجمعة باب الخطبة علی المنبر رقم الحدیث: ۹۱۷، ۵۱۳/۲ تقریربخاری شریف: ۱۳۳/۲الکنز المتواری: ۵۷/۴-۵۶.

[5] التوضیح لابن ملقن: ۳۶۳/۵فتح الباری کتاب الجمعة الخطبة علی المنبر رقم ألحدیث: ۹۱۳۰، ۵۱۲/۲.

باره كښې «فكيهة بنت عبيد بن دليم»هم قول دې. ابوموسىٰ مدينه رحمة الله عليه فرمانى علاثة اصل كښې د خلافة تصحيف دې اوعائشة د علاثة تصحيف دې.[1]

**منبرپه كوم كال باندې جوړشوې؟**: دمنبر جوړيدو دكال باره كښې ابن سعد رحمة الله عليه په ٧هجرى باندې جزم نقل كړې دې ليكن حافظ صاحب رحمة الله عليه په دې باره كښې فرمائيلى دى چه په دې كښې نظر دې ځكه چه په دې واقعه كښې دحضرت عباس اوحضرت تميم دارى رضي الله عنهما عمل دخل نقل دې اوددې دواړو حضراتو نه حضرت عباس رضي الله عنه د اسلام قبلول ٨هجرى اودحضرت تميم دارى رضي الله عنه ٩ هجرى دې.[2]

د اتم كال نه وړاندې دهجرت په پنځم كال كښې هم دمنبر تذكره ملاويږي. اوګورئى په غزوة المريسيع كښې پيښه شوې واقعه افك په دې واقعه كښې په يوه موقع اوس اوخزرج دواړه قبيلې خپل مينځ كښې ديوبل مخې ته ولاړې وې. نو حضورپاك منبر ته اوختلو اوهغوى ته خطاب شروع كړو.[3] او دا غزوه په ٥هجرى كښې پيښه شوې ده،[4] ددې غزوه د وقوع په كال كښې نور اقوال هم دى مثلاً ۶كال او ۴ كال ليكن راجح هم پنځم كال دې.[5]

په دې باره كښې حضرت مولانا انورشاه كشميرى رحمة الله عليه ليكلى دى چه حافظ ابن حجر رحمة الله عليه اختياركړې دى چه منبر په ٩هجرى كښې جوړكړې شوې وو مګر زما په علم كښې داسې روايات دى دكوم نه چه منبر ددې نه ډير وړاندې معلوميږي. د اتم كال نه دويم كال پورې روايات موجود دى. دداسې يوې واقعه ذكر اوكړو او په هغې كښې د منبر ذكر هم راغلې دې اوچه هغه واقعه اوكتلې شوه نو د يو دوو كالو پورې وه.[6]

**دمنبر پاوړئى**: دنبى كريم صلى الله عليه وسلم دپاره چه داكوم منبر جوړكړې شوې دهغې درې درجې وې. دوه پاوړئى او دريم دكيناستو ځائى. دخلفاء راشدين رضي الله عنهم دزمانې پورې هم دغه منبر باقى وو بيا دحضرت امير معاويه رضي الله عنه په زمانه كښې مروان په دې منبر كښې شپږ درجې جوړې كړې. مروان هغه وخت د مدينې ګورنر وو. دهغې نه پس دا منبر هم دغه شان پاتې شو تردې چه په ۶۵۴هجرى كښې په مسجد نبوى كښې اور اولګيدو د كوم په وجه چه منبر اوسوزيدو. بيا د يمن بادشاه مظفر ۶۵۶هجرى كښې نوې منبر جوړكړو. ديوې زمانې پورې هم دغه منبر وو ددې نه پس ٨٢٠هجرى كښې ملك مؤيد دوباره نوې منبر جوړكړو كوم چه تراوسه پورې باقى دې.[7]

---

[1] شرح الكرمانى: ٤١/٤التوضيح لابن ملقن: ٢٦٣/٥فتح البارى كتاب الجمعة باب الخطبة على المنبر رقم الحديث : ٩١٣، ٥١٣/٢عمدة القارى: ١٥٣/٤.

[2] فتح البارى كتاب الجمعة باب الخطبة على المنبر رقم الحديث: ٩١٣، ٥١٣/٢الموسوعة الفقهية منبر: ٨٤/٣٩

[3] الجمع بين الصحيحين المتفق عليه من مسندأم المؤمنين عائشة بنت صديق رضي الله عنها رقم الحديث: ٣٢١١، ١٢٤/٤ مجموعة الفتاوى لشيخ الإسلام ابن تيميه رحمة الله عليه سورة النور قوله تعالى ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ الْغَافِلَاتِ ﴾. من قذف امرأة محصنة كلأمة والزبع: ٢١٢/١٥دارالوفاء والزبة للطباعة والنشر.

[4] الطبقات الكبرى لابن سعد غزوة رسول الله صلى الله عليه وسلم المريسيع: ٦٣/٢

[5] الجمع بين الصحيحين المتفق عليه من مسندأم المؤمنين عائشة بنت صديق رضي الله عنها رقم الحديث: ٣٦١١، ١٢٤/٤.

[6] أنوارالبارى: ١٤٣/١١.

[7] فتح البارى كتاب الجمعة باب الخطبة على المنبر رقم الحديث: ٩١٣، ٥١٣/٢الإعلام بفوائدالأحكام كتاب الصلاة حديث سهل بن سعد الساعدى وصلاة الرسول صلى الله عليه وسلم على المنبر لتعلم الناس صلاته معنى المنبر واستحباب اتخاذه: ١١٦/٤.

**قوله:: وقام عليه رسول الله صلى الله عليه وسلم حين عُمِلَ ووضِعَ:** كوم وخت چه منبر تيار شو او په جمات كښې كيخودلې شو نو حضورپاك په دې باندې اودريدو. عمِلَ او وضِعَ دواړه مجهول صيغې دى. [1]

**قوله:: فاستقبل القبلة، كبّر:** حضورپاك ﷺ خپل مخ قبلې طرف ته كړو (اوډ مونځ شروع كولو په غرض سره) تكبير تحريمه اووئيل. په دې جمله كښې لفظ كبّر ډ واؤ نه بغيردې. دا صيغه په اصل كښې ډ سوال جواب جوړيږى چه كله راوى اووئيل ((فاستقبل القبلة)) چه حضورپاك په منبر باندې اوختلو قبلې طرف ته ئې مخ كړو. نو په دې باندې سوال پيداشو چه بيا حضورپاك څه اوكړه؟ نو ددې جواب دا دې چه حضورپاك تكبير تحريمه اووئيله. هسې دا صيغه فكبر ډ فاء سره او وكبر ډ واؤ سره هم بعض نسخوكښې ذكر ده. [2]

**قوله:: وقام الناس خلفه فقرأ وركع وركع الناس خلفه، ثم رفع رأسه:** اوخلق ډحضورپاك (په اقتداء كولو سره) شاته (په زمكه) باندې اودريدل (يعنى امام منبر باندې وو اومقتديان په زمكه باندې) بياحضورپاك قراءت اوكړو اوبيائې ركوع اوكړه اوخلقو هم ډحضورپاك په اقتداء كښې ركوع اوكړه بيا حضورپاك ډ ركوع نه سر اوچت كړو.

**قوله:: ثم رجع القهقرى:** بيا رسول الله ﷺ شاته واپس شو. القهقرى اسم مقصور دې ډدې اصل قهقر مصدر دې. ددې معنى ده خپل شاته په اولټه خپو واپس تلل. دا لفظ ډداسې مصادر نه دې چه فعل سره په معنى كښې خو مطابقت لرى ليكن په اشتقاق كښې مطابقت نه لرى. لهذاډدې جملې معنى ((ثم نزل القهقرى)) ده. خكه چه واپس كيدل خوهغه وخت متحقق كيږى كله چه يو سړې په زمكه باندې وى اودلته رسول الله ﷺ په منبرباندې وو. نو رجع په معنى ډ نزل دې

بياډدې لفظ منصوب په وجود كښې درې احتمالات دى. رومبې قول دادې چه القهقرى ډ فعل محذوف ډ وجې نه منصوب دې يعنى(ثم رجع، قهقرى القهقرى)دويم قول دادې چه دا لفظ ډموصوف محذوف ډ پاره صفت دې اوبياموصوف اوصفت ملاويدوسره رجع فعل ډپاره مفعول مطلق دې يعنى(ثم رجع الرجعة القهقرى)اودريم قول دادې چه لفظ رجع ډ فعل مفعول مطلق دې اوډدې مفعول مطلق دوه قسمونه دى چه فعل سره په معنى كښې خو اشتراك لرى ليكن په لفظ كښې نه. بل ډرسول الله ﷺ دغه شان په اولټه خپو سره واپس كيدلو وجه دا وه چه ډ حضورپاك سينه مباركه ډ قبلې نه وانوړى [3]

**قوله:: فسجد على الأرض:** بيا (بنكته كوزيدوسره) حضورپاك په زمكه باندې سجده اوكړه. په دې مقام باندې على الأرض دې او ډ وړاندې افعال چه كومه جمله استعمال كړې شوې ده په هغې كښې

---

[1] عمدة القارى: ۱۵٤/۲ إرشاد السارى: ٤۱/۲.

[2] عمدة القارى: ۱۵٤/۲ إرشادالسارى: ٤۱/۲ تحفة البارى: ۲۹۹/۱.

[3] الإعلام بفوائدالأحكام كتاب الصلاة حديث سهل بن سعد الساعدى وصلاة الرسول صلى الله عليه وسلم على المنبر معنى القهقرى: ۱۱۹/٤ فتح البارى كتاب الجمعة باب الخطبة على المنبر رقم الحديث: ۹۱۳، ۵۱٤/۲ التوضيح لابن ملقن: ۳٦٤/۵ عمدة القارى: ۱۵٤/٤ إرشادالسارى: ٤۱/۲ الكوثر الجارى: ٦٤/۲ تحفة البارى: ۲۹۹/۱.

بالأرض لفظ دي.په دوارو كښې هيڅ تضاد نشته دې.بس په اول ذكرشوى كښې دَ استعلاء معنى خودلې شوې او دويم كښې إلصاق.(1)

**قوله::ثم عاد إلى المنبر، ثم ركع، ثم رفع رأسه، ثم رجع القهقري حتى سجد بالأرض**: بيا حضور پاك «سجده كولونه پس دوباره» په منبر تشريف يوړو بيانې ركوع اوكړه بيانې دركوع نه سر اوچت كړوبيا اولټه خپوسره لاندې كوزشو ترديې چه په زمكه باندې سجده اوكړه. په دې عبارت كښې دَ دويم ركعت بيان دې چه دَ سجدې نه علاوه ټول اركان په منبر باندې په ولاړه ادا كړل او دَ سجدې دپاره به زمكې ته راكوزيدو او په زمكه باندې به ئې سجده كوله.

**په مانځه كښې دګرځيدوحكم**: كه په مانځه كښې بغيردَ عذر نه تلل اوشي اوتلونكې يوشان اوډير لاړشي نومونځ به فاسدشي. كه دَهغه سينه دَ قبلې نه اوګرځى اوكه اونه ګرځى. اوكه كثير غير متوار تلل وى يعنى په مختلفو ركعاتو كښې ګډوډ لاړشي او په هر ركعت كښې كم تګ وى نودَ قبلې نه دَ سينې په نه اوړخوتوسره مونځ نه فاسد كيږي.

دَ كثير حد دَ مقتدې په حق كښې يو دم مسلسل دَ دوو صفونو په اندازه تګ دې دې نه كم تګ به قليل شميرلې كيږي.لهذا كه يو سړې په يوځل مسلسل دَ دوو صفو په اندازه لاړو نودَهغه مونځ به فاسدشي او دَ يوصف په اندازه تللو سره به مونځ نه فاسد كيږي.

اودكثير غير متواتر يا غير مسلسل تګ صورت دادې چه يو سړې دَ يوصف په اندازه لاړشي اودريږي او په اندازه دَ درې ځل سبحان الله ونيلو حصار شي بيا دَ يوصف په اندازه لاړشي او اودريږي نودې سره مونځ نه فاسد كيږي. كه چرې داسې ديرزيات تګ اوكړي بس شرط دادې چه مكان مصلى بدل نه شي يعنى كه په جمات كښې مونځ اداكيږي او دغه شان تګ سره دَ جمات دَ شرعى حدودنه بهر اونه خى. اوكه چرې په ميدان كښې مونځ اداكيږي اوبيا دَ مونځ ګذارو دصفونونه بهر اونه خى.

دَامام دپاره به دَ سجدې دَځائې نه بهر وتل كثير شميرلې كيږي او دې سره به مونځ فاسدشي اودَ خان له مونځ ګذار دپاره دَ سجدې دَ ځائې اعتباردې دَدې نه زيات تګ به مونځ فاسد كوى. اوكه چرې په مانځه كښې تګ دَعذر دوجې نه وى نو په دې سره مونځ په هيڅ صورت كښې نه ماتيږي كه دغه تګ قليل وى اوكه كثير، سينه دَقبلې نه واوړي او كه وانوړي يا دَ جمات نه بهر اوخى يا اونه خى. دَعذر مثال دادې چه په مانځه كښې دَحدث كيدو په صورت كښې دَ طهارت دپاره لاړشي يا صلاة خوف كښې اوخى وغيره.(2)

**ثم رجع القهقري سره متعلق دَحضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله تشريح**: حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله په دې مقام باندې ليكى: چونكه په سجده كښې ټول برابر وى څوك چاته نه ګورى په دې وجه لاندې راكوز شو. بل په هغه «منبر» باندې سجده مشكل وه. اوس دلته اشكال پيداشو چه عمل كثير اوشو اودا په اتفاق سره مفسدصلاة دې سره دَدې كه دَدې په جزئيات كښې اختلاف وى اودلته

---

(1) عمدة القارى: ۱۵٤/٤.

(2) حاشية ابن عابدين كتاب الصلاة باب مايفسد الصلاة وما يكره فيها. مطلب : فى المشى فى الصلاة: ۹٤-۹۸/٤دارالثقافة، بيروت. البحرالرائق كتاب الصلاة باب مايفسد الصلاة ومايكره فيها: ۱۳/۲فتاوى الهندية كتاب الصلاة الباب السابع فى ما يفسد الصلاة وما يكره فيها. الفصل الأول فى مايفسدها: ۱۰۸/۱دارالكتب العلمية. بدائع الصنائع كتاب الصلاة باب فى مايستحب ويكره فيها: ۸٦/۱

خو توالي حركات شوي دي بار بار د سجدې دپاره ختل كوزيدل. بل خطوات هم اوليدلې شو خكه چه شاته خو نيغ يودم واپس كيدې نه شي په مزه مزه به قدم كيخودو سره واپس كيږي اودا توالي حركات او خطوات په عمل كثير كښې داخل دي.

شراح دا جواب وركوي چه دا دهغه وخت واقعه ده كوم وخت چه په مانخه كښې عمل كثير جائز وو اوزما د والد صاحب رحمه الله رائې مباركه داه چه «رجوع إلى القهقرى» مطلب دانه دې چه بالكل نيغ شاته شي بلكه يو طرف ته لږ شان خيال كولوسره «رجوع إلى القهقرى» اوفرمانيلو. په دې صورت كښې هم په يوقدم كښې دننه رجوع اوشوه اوچه كوم توالي حركات وو هغه په اركان مختلفه كښې وو . او چه كوم توالي مفسد اوعمل كثير كښې داخل دي هغه دادې چه هم په يوركن كښې وي، لهذا د حديث متعلق دا وينا چه دا د عمل كثير د وخت كيدو روايت دې د دې ضرورت نشته دې.(١)

**دحضرت كشميري رحمه الله وضاحت:** حضرت كشميري رحمه الله فرماني دا دمنبر نه كوزيدل په حالت دمونځ كښې صرف دوه قدمه كوزيدل وو (په دويمه درجه باندې به وى په يوقدم ني په ښكته پاؤړني باندې كيخودو اودويم به نى د سجدې په ځائې كيخودې وى) اوابن امير الحاج ليكلي دي چه كه تګ زيات وى او په حصاريدو سره وى اومتوالي اومسلسل نه وى نوهغه هم مفسد صلاة نه دې.

درمختار كښې دي كه دامام اراده قوم ته د مونځ خودلو وى نوهغه په اوچت ځائې باندې اودريدې شي. علامه نووى رحمه الله هم دې ته جائز بلكه د ضرورت په وخت مستحب ليكلي دى. ليكن زما په نيز په دې مسئله كښې اوس توسع كولوسره جائز ګرځول مناسب نه دى ځكه چه د داسې ضرورت لحاظ صرف د صاحب تشريح دپاره وو. دموجوده وخت امام د مانځه نه وړاندې يا پس د مانځه طريقه خودلې شي اوهم دومره كافي ده.

**په حافظ ابن حزم رحمه الله باندې حيرانتيا:** وني فرمانيل ډيره حيرانتياده چه موصوف داحديث دنفل مونځ ګرځولې دې او بيانى ددې نه دنفل مونځ په جمع باندې د جواز استدلال كړې دې اوددې نه انكار كونكو باندې په سختنى سره ردكړې دې. حالانكه صحيح بخاري كښې د دغه مونځ د جمعه د مونځ كيدو صراحت موجود دې.

**دمقتدي دقراءت ذكر نشته دې:** حضرت رحمه الله اوفرمانيل دحديث الباب په يوروايت كښې داذكر نشته دې چه حضورپاك قراءت اوكړو اوحضورپاك سره مقتديانوهم قراءت اوكړو. ددې وجه داده چه په جهرى مونځ كښې به نى امام سره قراءت نه كولو اوددې حكم دامام شافعي رحمه الله كتاب الام كښې هم نشته دې. صرف مزني رحمه الله په واسطه د ربيع امام شافعي رحمه الله نه په جهرى مونځ كښې د مقتدي دقراءت روايت نقل كړې دې. داخبره د ياد ساتلو اواهم ده.(٢)

علامه عيني رحمه الله حافظ ابن ملقن رحمه الله علامه خطابي رحمه الله علامه قسطلاني رحمه الله علامه كرماني رحمه الله او علامه زكريا انصاري رحمه الله هم دا تفصيل ذكر كړې دې (٣)

---

(١) تقرير بخاري شريف: ٣٤٩/٢ الكنزالمتوارى: ٦١/٤ سراج القارى: ٤٠٢/٢.

(٢) أنورالبارى: ١٤٣/١١ فيض القدير: ٢٩/٢-٢٨، ٤٣٤/٢ كتاب الخطبة على المنبر رقم الحديث: ٩١٧٠ وكذا فى عمدة القارى: ١٥٤/٤.

(٣) عمدة القارى: ١٥٤/٤ التوضيح لابن ملقن: ٣٦٤/٥ إعلام الحديث للخطابى: ٣٦٠ إرشادالسارى: ٤١/٢ الكوثر الجارى: ٦٥/٢ تحفة البارى: ٢٩٩/١ الإعلام بفوائد الأحكام كتاب الصلاة حديث سهل بن سعدالساعدى: ١١٩/٤.

**په مانځه کښې دَ امام اومقتدی مکان جداکيدو حکم**: په دې مقام باندې دَنبی کريم ﷺ په منبر باندې دَختو په حالت کښې دَ مونځ اداکولوسره يوه مسئله باندې بحث راځی چه په مانځه کښې دَامام او مقتديانو مکان يو نه وی نوداقتداء څه حکم دې؟ په دې باره کښې تفصيل ذکرکولې شی:

**دَاحناف مذهب**: که چرې امام ځان له په يوه چونتره باندې ولاړ وی او ټول مقتديان دَهغه نه شاته ولاړ وی اوداسې کول بغيردَ څه عذر نه وی نودَ حديث په رڼا کښې مکروه دی. په ظاهره داکراهت تحريمی دې سره دَدې چه بعض تنزيهی هم وئيلې دی. اوکه په دونکاچه باندې څه مقتديان هم امام سره وی نو اصح دادی چه داسې کول مکروه نه دی بعض وئيلی دی چه دا حکم دَهغه دونکاچې دې چه دَ سړی دَ سر برابر اوچته وی اوکه دَدې نه دکم اوچتوالی وی نو بيا څه حرج نشته دې. اوبعض وئيلی دی چه دَ دونکاچې اوچتوالې دومره معتبر دې چه په کوم سره امتياز اوفرق اوشی او هم دا قول ظاهرالروايت دې. اود حديث په اطلاق سره هم دا مناسب معلوميږی. بعض وئيلی دی چه يو ذراع (يعنی يو لاس چه دَ سترې دَ اوږدوالی برابر وی) اعتبار به کولې شی. دا قول معتمد ګرځولې شوې دې اوهم دغه جميع دې او فتوئ هم په دې ده. که چرې اوچتوالې دې نه کم وی نو کراهت تنزيهی دې.

اوکه چرې دَ مذکوره صورت برعکس معامله وی چه امام لاندې ځانله ولاړ دې اوټول مقتديان په اوچت ځائی باندې وی نو بيا هم دَ صحيح قول په رڼا کښې مکروه اودَسنت خلاف دی خکه چه په دې صورت کښې دَ امام مقام دَ مقتديانو دَمقام نه په کمه درجه کښې شو ليکن دا کراهت تنزيهی دې خکه چه په حديث شريف کښې دَدې نهی نه ده راغلې.

او په مذکوره دواړو صورتونوکښې (که امام په دونکاچه وی او مقتديان لاندې وی اوکه امام لاندې وی اومقتديان پاس) نوکه چرې څه مقتديان امام سره ولاړ وی نوبيا کراهت نه دې. په موجوده دورکښې اکثر دَ ښاريو جماتونوکښې دَدې خبرې عام رواج شوې دې چه دَ تنګوالی دَ لاسه امام په محراب کښې يا په اوچت ځائی باندې ولاړوی نوهغه سره يو دوه مقتديان هم اودريږی اوکه دَ ځائی دَ تنګوالی دَ وجې نه امام سره څوک مقتدی هم نه وی نوبيا هم دَعذر دَ وجې نه څه کراهت نشته دې. دغه شان که دَتعليم دَپاره امام ځانله په اوچت ځائی اودريږی چه مقتديان دَهغه افعال کتو سره مونځ زده کړی يا ځان له مقتدی په اوچت ځائی باندې اودريږی چه هغه مکبر وی (يعنی په اوچت آواز سره الله اکبر اووائی) نومکروه نه دې. [1]

**مذهب شوافع وحنابله**: دشوافع اوحنابله په نيز هم مسئله داسې ده خوبغيردَ عذرنه داسې کول کراهت دې. اوبه عذر کښې هم دا شرط ضروری دې چه دَامام ټول انتقالات دَمقتدی په مخکښې وی. [2]

---

[1] حاشيةابن عابدين كتاب الصلاة باب مايفسدالصلاة ومايكره فيها.مطلب:مكروهات الصلاة: ١٦٠-١٦١/٤دارالثقافة، دمشق. فتح القدير كتاب الصلاة فصل مايكره فيها: ٣٦٠/١ البحرالرائق كتاب الصلاة باب ما يفسد الصلاة:٢٨/٢ . بدائع الصنائع كتاب الصلاة باب فصل فى بيان مايستحب فيها ومايكره: ٢١٦/١فتاوى التاتر خانية كتاب الصلاة الفصل الرابع فى بيان مايكره للمصلي: ٥٦٧/١.

[2] الحاوى الكبير كتاب الصلاة باب موقف صلاة المأموم مع الإمام: ٣٤٤/٢العزيز كتاب الصلاة بالجماعة الفصل الثالث الشرط الثانى: ١٧٦/٢-١٧٥المجموع شرح المهذب كتاب الصلاة باب صلاة الجماعة باب موقف الإمام: ١٨٦/٤المغنى لابن قدامة كتاب الصلاة باب الإمامة رقم المسئلة: ٢٥٧، ٤٤/٣كشاف القضاع عن متن الإقناع كتاب الصلاة باب الجمعة: ٤٦٧/١شرح منهى الإرادات كتاب الصلاة باب صلاة الجماعة وأحكامها فصل فى الإقتداء: ٥٨٢/١.

**مذهب مالكيه:** امام مالك رحمه الله په نيز دامام د اودريدو ځائي چه لږ شان اوچت وي نوممنوع به كيږي او كه چرې زيات اوچت وي نو منع به نه كيږي. دامام احمد رحمه الله يوه رائې ددې موافق هم ده.[1]

**قوله:: فهذا شأنه** د حضورپاك دمنبر قصه ده (كومه چه پورته تيره شوه).

**قال أبوعبدالله: قال علي بن عبدالله: سألني أحمد بن حنبل رحمه الله عن هذا الحديث، قال: فإنما أردت أن النبي صلى الله عليه وسلم كان أعلى من الناس، فلا بأس أن يكون الإمام أعلى من الناس بهذا الحديث، قال: فقلت: إن سفيان بن عيينة كان يسأل عن هذا كثيرا، فلم تسمعه منه، قال: لا.** ابوعبدالله (امام بخارى رحمه الله) اوفرمائيل چه ماته علي بن عبدالله (المديني) رحمه الله اووئيل چه (امام) احمدبن حنبل رحمه الله ددې حديث (مدلول) باره كښې مانه تپوس اوكړو او وئې وئيل زما مطلب دادې چه جناب رسول الله ﷺ (موښځ وركولوسره) دخلقو په مقابله كښې اوچت (پاس ځائي باندې) وو. لهذا ددې حديث په رڼاكښې كه امام د خلقو (يعنې مقتديانو) نه اوچت وي نو څه حرج نشته دې. هغوى (علي بن عبدالله المديني رحمه الله) اووئيل چه ما اووئيل چه حضرت سفيان بن عيينه رحمه الله نه به ددې حديث اكثر پوښتنه كيدله آيا تاسو دهغوى نه داحديث نه دې اوريدلې؟ نوهغوى (يعنې احمدبن حنبل رحمه الله) جواب وركړو نه.

## تشريح

**قوله:: قال ابوعبدالله** :په دې باب كښې داول حديث ذكر كيدلونه پس امام بخارى رحمه الله د خپل استاذعلي بن المديني رحمه الله اوامام احمدبن حنبل رحمه الله هم ددې حديث مصداق اومدلول كښې دكيدو مكالمه ذكركوى. ددې قول په ابتداء كښې لفظ د ابوعبدالله نه مراد پخپله هم امام بخارى رحمه الله دې دې نه پس راتلونكې عبارت ((قال: فإنما أردت))كښې موجود ضمائر مراجع باره كښې دشارحين مختلف اقوال دى. دلته داكابرين امت يوځو تشريحى اقول ذكركولې شى.

**دحضرت شيخ الحديث رحمه الله رائې:** ((قال: فإنما أردت أن النبي صلى الله عليه وسلم))ذكركولونه پس حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائې: دلته په دې كربنوكښې د قال فاعل شيخ الاسلام رحمه الله په حواله سره علي بن عبدالله المديني ليكلې دې مگر زما ذوق دا وائي چه د قال فاعل احمدبن حنبل رحمه الله دې. ځكه چه هغه امام الفقه دې اومسئله هم دعلم فقه راروانه ده. لهذا اوس به مطلب داشى چه امام احمد رحمه الله علي بن المديني رحمه الله ته اووئيل چه ما ددې حديث نه دا مسئله استنباط كړې ده . ((فلا بأس أن يكون الإمام أعلى من الناس)) په دې وجه چه كله حضورپاك دخلقو نه اوچت وو اوحضورپاك امام وو. نو معلومه شوه چه دامام د خلقو نه پورته كيدل جائز دى.

اوس په دې كښې اختلاف دې چه څومره به اوچت وى؟ داحناف اوشوافع په نيز كه چرته يو ذراع نه كم اوچت وى نوڅه حرج نشته دې اوددې نه زيات كښې روايات مختلف دى اومالكيه د پورته كيدو نه منع كوى. ((قال: فقلت)) ددې قال فاعل علي بن المديني رحمه الله دې او دا جدا دې دماقبل سره ددې هيڅ تعلق نشته دې.

---

[1] المدونة الكبرى كتاب الصلاة الإمام يصلي بالناس على أرفع مماعليه أصحابه: ۸۱/۲مواهب الجليل شرحمختصر خليل كتاب الصلاة فصل فى صلاة الجماعة: ۴۵۲/۲-۴۵۰الذخيرة الباب السابع فى الإمامة الفصل الرابع فى تبعية الإمام فى المكان وفيه فروع أربعة النوع الأول قال فى الكتاب إذا صلى بقوم على ظهر المسجد وهم أسفل: ۲۵۷/۲.

**قوله: أن سفيان بن عيينه:** مطلب دادې چه علي بن المديني رحمه الله حضرت امام احمد رحمه الله ته اوفرمائيل چه ستاسو د استاذ سفيان بن عيينه رحمه الله نه دا دې حديث متعلق په كثرت سره سوال كيدلو تا دهغه نه څه اوريدلې دى؟ حضرت امام احمد رحمه الله په نفى كښې جواب وركړو.

دلته حافظ ابن حجر رحمه الله فتح البارى كښې يواشكال كړې دې چه مسنداحمد كښې هم دغه روايت امام احمد رحمه الله د سفيان بن عيينه په واسطه سره نقل كړې دې، بيا دلته دنفى څه مطلب دې؟ د دې يوجواب كوم چه حافظ صاحب رحمه الله وركړې دې هغه دادې چه د امام بخارى رحمه الله روايت مفصل دې او هغه خودوى د ابن عيينه رحمه الله نه نه دې اوريدلې اود مسنداحمد روايت كوم چه مختصر دې هغه دابن عيينه رحمه الله نه اوريدلې دې.

خوزما په نيز د دې نه ښه جواب دادې چه ممكن دى اول ئې د سفيان بن عيينه رحمه الله نه نه وى اوريدلې اود علي بن المديني رحمه الله نه ئې اوريدلې وى اوبيائې د سفيان بن عيينه رحمه الله نه اوريدلې وى اوبيائې د هغوى په واسطه سره نقل كړې. اوكه چرې دا ثابته شى چه امام احمد رحمه الله دا سوال د علي بن المديني رحمه الله نه د حضرت سفيان بن عيينه رحمه الله د انتقال نه پس كړې وى نوبيا داجواب نه چليږى مګر د دې دپاره د ثبوت ضرورت دې. الكنز المتوارى: ۴/۶۲-۶۱.

**دعلامه عثمانى رحمه الله رائې:** **قوله: قال: وإنما أردت.** د دې قال فاعل كه چرې علي بن المديني رحمه الله وى نو أردت به په صيغه د متكلم، اوكه چرې فاعل احمدبن حنبل رحمه الله وى نو أردت به په صيغهٔ حاضر وى.

**قوله: قال: لا،** د دې نه معلومه شوه چه امام احمد رحمه الله داحديث د سفيان بن عيينه نه نه دې اوريدلې ليكن په مسنداحمد كښې دسفيان بن عيينه رحمه الله نه داحديث موجود دې. البته صرف د شروع حصه ده چه «دحضورپاك منبر(أثل الغابة)» نه جوړشوې وو. داخير ټكړه يعنى «په كوم كښې چه ذكر دى چه» حضورپاك په دې باندې مونځ اوكړو. دانى سفيان بن عيينه رحمه الله نه نه وو اوريدلې «او قال: لا» نه هم دغه مراد دې چه داخير والاحصه ئې د هغه نه نه ده اوريدلې دامقصد نه دې چه ټول حديث ئې نه دې اوريدلې.(۱)

**دحضرت كشميرى رحمه الله رائې:** حضرت مولانا محمدانور شاه صاحب كشميرى رحمه الله فرمائى دامام بخارى رحمه الله د دې عبارت په شرح كښې يوڅو اقوال دى: ① د قال فاعل اوقائل كه امام احمد وى او أردت صيغهٔ متكلم وى يعنى امام احمد رحمه الله علي بن المديني رحمه الله ته اووئيل چه ما ستادا روايت كړې شوې حديث د سفيان بن عيينه رحمه الله نه نه دې اوريدلې چه نبى كريم ﷺ د خلقو دپاسه كيدو سره مونځ وركړو لهذا دامام په اوچت ځائى باندې كيدل جائز دى. شيخ رحمه الله په دې ځائى باندې اووئيل آيا تا پخپله داحديث د سفيان بن عيينه رحمه الله نه نه دې اوريدلې حالانكه دهغوى نه خو به اكثر په دې مسئله كښې تپوسونه كيدل اوهغوى به هم دغه حديث روايت كولو. امام احمد رحمه الله اووئيل چه نه يعنى په دې تفصيل سر مې ه نه دې اوريدلې. حضرت شيخ الحديث رحمه الله هم دا شرح خوښه كړې ده او دې ته ئې د شيخ الاسلام رحمه الله په شرح باندې ترجيح وركړې ده.

② أردت، كه دخطاب صيغه وى نو امام احمد رحمه الله خپل شيخ ته اووئيل چه تاسو په ظاهر د دې حديث د سفيان رحمه الله نه هم دغه ګڼرلى دى چه دامام په اوچت ځائى باندې كيدو كښې څه مضائقه نشته دې

---

(۱) فضل البارى: ۳/۶۰.

الخ، داشرح علامه سندهي رحمه الله اختيار كړې ده.

④ که دَ قال فاعل اوقائل علي بن المديني رحمه الله وي يعني زما مقصد دَدې روايت نه هم دغه دې چه حضورپاك په اوچت ځائې باندې اودريدو سره امامت كړې دې. لهذا په دې كښې هيڅ حرج نشته دې اوامام احمد رحمه الله ته ئې ونيلي دي چه آيا تاد سفيان رحمه الله نه داحديث نه دې اوريدلې سره ددې چه تاد هغوى نه روايات هم كړې دي. اودهغوى نه به اكثر په دې مسئله كښې سوال هم كيدلو. دا شرح دَشيخ الاسلام (حضرت شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله نمسي) خپله شرح دَبخارى (تيسير القاري) كښې اختيار كړې ده اومطبوعه بخارى (قديمي وغيره) بين السطور كښې هم درج ده.[1]

**دَحديث مبارك ترجمة الباب سره مناسبت:** دَمذكوره حديث شريف ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې چه په روايت كښې دَ نبى كريم ﷺ په منبر باندې مونځ كول مذكوره دى كوم چه دَ لرګى نه جوړشوې وو اوترجمة الباب كښې هم په لرګى باندې دَمونځ كولوذكر وو.[2]

## الحديث الثاني

[٣٧٨] - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ الطَّوِيلُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَقَطَ عَنْ فَرَسِهِ فَجُحِشَتْ سَاقُهُ - أَوْ كَتِفُهُ - وَآلَى مِنْ نِسَائِهِ شَهْرًا، فَجَلَسَ فِي مَشْرُبَةٍ لَهُ دَرَجَتُهَا مِنْ جُذُوعٍ، فَأَتَاهُ أَصْحَابُهُ يَعُودُونَهُ، فَصَلَّى بِهِمْ جَالِسًا وَهُمْ قِيَامٌ، فَلَمَّا سَلَّمَ قَالَ: «إِنَّمَا جُعِلَ الإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ، فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا، وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا، وَإِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوا، وَإِنْ صَلَّى قَائِمًا فَصَلُّوا قِيَامًا» وَنَزَلَ لِتِسْعٍ وَعِشْرِينَ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّكَ آلَيْتَ شَهْرًا، فَقَالَ: «إِنَّ الشَّهْرَ تِسْعٌ وَعِشْرُونَ»[3]

[٦٥٧، ٦٩٩، ٧٠٠، ٧٢٢، ١٠٦٣، ١٨١٢، ٢٣٣٧، ٤٩٠٥، ٤٩٨٣، ٦٣٠٦]

---

[1] أنوار الباري: ١١/١٤٤-١٤٣فيض الباري: ٢٩/٤.

[2] عمدة القاري: ١٥١/٤.

[3] أخرجه البخاري في صحيحه في كتاب الأذان باب إنما جعل الإمام ليؤتم به رقم الحديث ٦٧٩ وباب إيجاب التكبير وافتتاح الصلاة رقم الحديث: ٧٣٣-٧٣٢ وباب يهوى بالتكبير حين يسجد رقم الحديث: ٨٠٥ وفي كتاب التقصير باب صلاة القاعد، رقم الحديث: ١١١٤وفي كتاب الصوم باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: إذا رأيتم الهلال فصوموا، وإذا رأيتموه فأفطروا رقم الحديث: ١٩١١وفي كتاب المظالم باب الغرفة والعلية المشرفة وغير المشرفة في السطوح وغيرها رقم الحديث: ٢٤٦٩وفي كتاب النكاح باب قول الله عزوجل: ﴿الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ﴾رقم الحديث:٥٢٠١وفي كتاب الطلاق باب قول الله عزوجل: ﴿لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِن نِّسَائِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ﴾ رقم الحديث: ٥٢٨٩وفي كتاب الأيمان والنذور باب من حلف أن لا يدخل على أهله شهراً وكان الشهر تسعاً وعشرين رقم الحديث: ٦٦٨٤وأخرجه الترمذي في سننه كتاب الصوم باب ماجاء أن الشهر يكون تسعاً وعشرين رقم الحديث ٦٩٠ وأخرجه النسائي في سننه كتاب الطلاق باب الأيلاء رقم الحديث: ٣٤٨٦وفي جامع الأصول حرف الهمزة الكتاب السابع في الإيلاء رقم الحديث: ١٣٧، ٣٥٢/١.

**ترجمه**: دَ حضرت انس بن مالك رضی الله عنه نه روايت دي چه (يوخل) رسول الله ﷺ دَ اس نه راپريوتلو دَ څه دَ وجې نه چه دَحضورپاك خپه يا اوره اووتله (هغه وخت) حضورپاك دَ يوې مياشتې ايلا كړې وه (يعنى دَ خپلو بيبيانو نه دَ يوې مياشتې پورې دَ جدا اوسيدو قسم ئې كړې وو) چنانچه حضورپاك (دَخپل كور په يو) بالا خانه كښې تشريف فرما شودكومې پاؤړنى چه دكهجورو دَ لرګى وې. (يوه ورځ) دَ حضور پاك صحابه كرام دَ حضورپاك دَ تپوس دَپاره راغلل نو حضورپاك (دَمانځه په وخت كښې) هغوى ته په داسې حال كښې مونځ وركړو چه حضورپاك په ناسته باندې مونځ كولو اوصحابه كرام په ولاړه باندې اقتداء كوله. بيا چه كله حضورپاك سلام اوګرځولو نو ارشاد ئې اوفرمائيلو چه امام ددې دپاره مقرركړې شوې دې چه دهغه اقتداء اوكړې شى. چه كله هغه تكبير (تحريمه) اووائى نوتاسو هم تكبير وايئى اوكله چه هغه ركوع اوكړى نو تاسو هم ركوع كوئى اوكله چه هغه سجده اوكړى نو تاسو هم سجده كوئى اوكله چه هغه اودريږى مونځ وائى نوتاسو هم په ولاړه باندې مونځ كوئى.
او رسول الله ﷺ په ۲۹ تاريخ (خپل قسم پوره كولوسره دبالاخانې نه) ښكته راكوز شو نوصحابه كرام رضی الله عنهم عرض اوكړو يارسول الله! تاسو خو دَيوې مياشتې ايلا كړې وه (بيا په ۲۹ تاريخ يعنى دَمياشتې ختميدو نه يوه ورځ وړاندې دَ بالاخانې نه لاندې څنګه تشريف راوړو؟) نو حضورپاك جواب وركړو دې خل مياشت دَ ۲۹ ورځو ده.

## تراجم رجال

**محمدبن عبدالرحيم**: دا حافظ ابويحيى محمدبن عبدالرحيم بن ابى زهير العدوى البر زاز الصاعقه دې. دَدوى حالات كشف البارى: كتاب الوضوء باب غسل الوجه باليدين من غرفة واحدة كښې تيرشوى دى [1].

**يزيدبن هارون**: دا ابوخالد يزيدبن هارون بن زاذان السلمى رحمه الله دې. دَدوى حالات هم كشف البارى كتاب الوضوء باب التبرز فى البيوت دَدويم حديث لاندې تيرشوى دى. [2]

**حميدالطويل**: داابوعبيده حميد بن ابى حميد الطويل الخزاعى البصرى رحمه الله دې.دَدوى تفصيلى حالات كتاب الايمان باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهولا يشعر دَدويم حديث لاندې تيرشوى دى. [3]

**انس بن مالك رضي الله عنه**: دامشهورصحابى رسول حضرت انس بن مالك بن نضر الخزرجى الانصارى رضی الله عنه دې.دَ دوى تفصيلى حالات كتاب الايمان باب من الايمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه كښې تير شوى دي. [4]

## شرح حديث

**قوله: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم سقط عن فرسه** (حضرت انس بن مالك رضی الله عنه فرمائى چه) نبى كريم ﷺ (يوخل) دَ خپل اس نه پريوتلو په دې روايت كښې دَ سقط الفاظ دى خوهم دَ

[1] كشف البارى: كتاب الوضوء باب غسل الوجه باليدين من غرفة واحدة.
[2] كشف البارى كتاب الوضوء باب التبرز فى البيوت.
[3] كشف البارى: ۵۷۱/۲.
[4] كشف البارى: ۴/۲.

صحيح بخارى په يو روايت كښې خر لفظ دې[1] اوسنن ابى داؤد په روايت كښې فَصُرِعَ لفظ دې معنى دَ ټولو سقط والاده يعنى پريوتل[2] دَ اس نه دَ پريوتلو واقعه دَهجرت په پنځم كال پيښه شوې (٣)

**قوله:: فَجُحِشَتْ ساقه أو كتفه** نو دَ (پريوتو دَوجې نه) دَحضورپاك خپه يااوږه مبارك (اوګريدلو سره) اوخوليدله. جحش د ماضى مجهول صيغه ده ددې معنى په څرمن باندې ګربښې راتلل او څوليدل البته په نسبت دَخدش جحشس كښې دَ څوليدله اوګريدلو معنى زياته ښكارى. يعنى ژور اوخوليدلو معمولى نه، تردې چه نبى كريم ﷺ دَ دغه زخم دَ وجې نه په ولاړه مونځ كولونه عاجز شو په دې وجه نى په ناسته مونځ اداكړو. (٤)

**قوله:: أو كتفه.** كلمه دَ أو دَ راوى شك ښكاره كوى چه دَ راوى دَ استاذ نه نقل كړې شوې خبره كښې شك دې چه هغه ساق لفظ وئيلې كه دكتف لفظ، هغه ته پوره توګه باندې دغه خبره ياده نه ده. داخبره ده چه زخم ساق ياكتف باندې راغلې او دې (راوى) ته ددې تعيين نشته دې. (٥)

په دې باره كښې په رواياتوكښې نور مختلف الفاظ هم نقل دى مثلاً صحيح بخارى سنن ابى داؤد په روايت كښې دى شقه الأيمن. (٦) هم دَ صحيح بخارى په يو بل روايت كښې ساقه الأيمن دې. (٧) او په يو روايت كښې انفكت رجله دې (٨) ددې نه علاوه صحيح بخارى اوسنن ابى داؤد په روايت كښې انفكت قدمه الفاظ هم ملاويږى. (٩) أنفكت قدمه رجله معنى اوختل بريخيدل يعنى دَ حضورپاك خپه واوختله.

په دې رواياتوكښې راتلونكي مختلف الفاظو باره كښې حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلى دى چه دا ټول الفاظ دَ يوبل منافى نه دى. دَټولو معانو احتمال موجود دې. په يو ګذار كښې مختلف ځايونوكښې هم زخم راتلې شى اوختل او زخمى كيدل وغيره جمع كيدې شى. دَ بعض زخمونو رايوځانى كيدل ممكن دى اوددې مختلفو الفاظونه بعض دَ بعضو تفسيرهم جوړيدې شى. (١٠)

علامه عينى رحمه الله فرمانى دا واقعه ذى الحجه ٥هجرى كښې پيښه شوې (به مطابق مئى ٦٢٧ء) حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمانى محدث ابن حبان دكال ٥هجرى واقعه خودلې ده. حضورپاك عليه السلام په

---

[1] صحيح البخارى كتاب الأذان باب إيجاب التكبير وافتتاح الصلاة رقم الحديث: ٧٣٣.

[2] سنن أبى داؤدكتاب الصلاة باب الإمام يصلى من قعود رقم الحديث: ٦٠١.

[3] التوضيح لابن ملقن: ٣٦٥/٥ ثقات لابن حبان السنة الخامسة من الهجرة سرية عبدالله أنيس: ٢٧٩/١فتح البارى كتاب الأذان باب أنما جعل الإمام ليوتم به، رقم الحديث: ٦٧٩، ٢٣١/٢.

[4] النهاية فى غريب الحديث والأثر: ٢٣٧/١-٢٣٦معجم الصحاح للجوهرى ص: ١٥٤إعلام الحديث للخطابى: ٣٦٢/١فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ٨٣/٢ التوضيح لابن ملقن: ٣٦٥/٥فتح البارى: ٦٣٢/١

[5] فتح البارى: ٥٢٣/١عمدة القارى: ١٥٦/٤تقرير بخارى شريف: ١٣٤/٢.

[6] صحيح بخارى كتاب الأذان وباب يهوى بالتكبير وافتتاح الصلاة رقم الحديث: ٨٠٥سنن ابى داؤد كتاب الصلاة باب الإمام يصلى من قعود رقم الحديث: ٦٠١.

[7] صحيح بخارى كتاب الأذان وباب يهوى بالتكبير وافتتاح الصلاة رقم الحديث: ٨٠٥

[8] صحيح البخارى كتاب الصوم باب إذا رأيتم الهلال فصوموا رقم الحديث: ١٩١١.

[9] صحيح البخارى كتاب المظالم باب الغرفة ولعلية رقم الحديث: ٢٤٦٩.

[10] فتح البارى كتاب الأذان باب أنما جعل الإمام ليوتم به، رقم الحديث: ٦٧٩، ٢٣١/٢.

اس باندې سورېدوسره غابه ته تلل غوښتل. اس د كهجورې ډونې په يوه جړړه باندې پرېوتلو په كوم سره چه دحضورپاك په خپه مباركه كښې موچ راغلو او اړخ ئې هم اوګرېدلو او حضورپاك په بالاخانه كښې قيام كولو. دمعذورتياد وجې نه جمات كښې مونځ نه شو كولې.

**داس نه د پرېوتلوواقعه:** حضرت علامه محمدانور شاه كشميرى رحمه الله فرمائى سيرة محمدى تاليف مولوى كرامت على صاحب تلميذ حضرت شاه عبدالعزيز صاحب رحمه الله كښې حالات ډېر په وسعت او تفصيل سره وركړې شوى دى ليكن په دې كښې دا واقعه نه ليدلې. دا يوښه كتاب دې مګر د بې پرواهئى نه خراب او غلط چهاپ شوې. راقم الحروف عرض كوى چه احقر نور متداوله د سيرت كتابونوكښې هم دا واقعه نه ده ليكلې حالانكه په احاديث صحاح كښې دذې ذكر راخى اود زمانې هغه تعين داحقر په نيز داسې دې:

غزوه خندق شوال ۵هجرى (مطابق فرورى ومارچ ۶۲۷ء كښې شوې. ددې نه په واپسئى باندې حضور پاك ذى قعده ۵هجرى (اپريل ۶۲۷ء) كښې دغزوه بنى قريظه دپاره تشريف يوړو. ددې نه فارغيدو سره حضورپاك ۵مياشتې په مدينه منوره كښې قيام اوكړويعنى ذى القعده ۵هجرى محرم ۶هجرى صفر ربيع الاول (مطابق مئى، جون، جولائى، اګست او ستمبر ۶۲۷ء). هم په دې دوران كښې دمدينې طيبې قيام كښې حادثه پېښه شوه حضورپاك د څه ضرورت دپاره د غابه ځنګل ته تلل غوښتل.

داس د سورلئى چونكه لوئى فضيلت دې خاص كر د جهاد دپاره دتيارئى وغيره په سلسله كښې او حضورپاك ته په قدرتې توګه د دې سورلئى شوق وو دهغوى ډېره خوښه وه. چنانچه يوځل مدينه منوره كښې د باهر نه د يوغنيم د حملې خطره محسوس كړې شوه نوحضورپاك دابوطلحه رضى الله عنه اس مندوب نومې د سورلئى دپاره واخستلو او په بربنډه شاه باندې د ښار نه بهر ترلرې پورې كتلو ته راغلو او وئى فرمائيل دخطرې هيڅ خبره نشته. مونږ دا اس بحر په شان اوكتلو (يعنى د درياب په شان روان چه د اودريدو نوم نه اخلى) دغه وخت صحابه رضى الله عنهم هم وتلى وو چه دحضورپاك په واپسئى كښې ملاؤ شو او وئى كتل چه حضورپاك د اس په بربنډه شاه باندې سور دې او په سټ مبارك كښې توره زورنده ده.

محقق عينى رحمه الله ليكلى دى چه په دې سره دحضورپاك د تواضع او عاجزئى حال معلوم شو اود شهسوارئى فن ښه راتلل پكار دى دې دپاره چه د ضرورت په وخت بې تامل ميدان ته تلې شى اوتوره وغيره وسله دې هم مخې ته كېږدى دې دپاره چه د ضرورت په وخت دهغه امدادى وى.

حضورپاك دمدينې طيبې نه بهر د اسونو زغلولو ميدان هم جوړكړې وو په كوم كښې چه د ۷ميلو اوږدوالې وو او بل د يو ميل يا څه زيات وو. د اس په زغلولو كښې يوطرف ته ګټه اوبيلات يو اس لحيف نومې وو چه ډېر تيز رفتار وواوښكلې وو. دې ته به ئى هم په دې وجه ونيل چه په منډه كښې لكه چه زمكه راغونډه وى. بل حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه كوم سړې د الله په لاركښې د جهاد دپاره اس اوساتى دقيامت په ورځ به دهغه په ميزان كښې دهغه اس واښه دانه خراشنه اومتيازې وغيره وزن كولې شى. نور فرمائى چه داس په تندى كښې الله ﷻ د قيامت پورې خير اوفلاح د دواړو جهانوليكلى ده. يعنى اجر اوغنيمت (دا ټول احاديث بخارى شريف كتاب الجهادكښې دى) او مسنداحمد اوبيهقى كښې دى چه حضورپاك خپل يواس سبحه نومې وو كوم چه حضورپاك په بازئى كښې زغلولې وو نوهغه بازى اوګټله او حضورپاك خوشحاله شو (بيهقى ۲۰/۲۱)، ممكن ده چه دغه صبارفتار اس وى په كوم سره چه دپرېوتلو اتفاقى حادثه پېښه شوه چونكه هغه ډېرزيات تيز وو اوهم په دې وجه ئى د نورو ښكلې اسونو په مقابله كښې بازى هم ګټلې وه. د داسې براق صفت اس باره كښې كوم شهسوار دعوىٰ كولې شى چه هغه كوم يو وخت په اتفاقى توګه دهغه د شانه نه شى

پریوتلي. لهذا داخیال مه کوئی چه کله حضورپاك دومره لوئی شهسوار وو نودَ اس نه څنګه پریوتلو؟ ځکه چه دَ برق رفتار عربی اسونونه پریوتل هم دَ لویو شهسوارانو شان کیدې شی نور خلق خو په هغې باندې دَ سوریدو هم جراءت نه شی کولې. واضحه دی وی چه هسې هم دَعربي النسل اسونو ښکلې والې تیز رفتارې وغیره کښې دَ تیولې دنیا دَ اسونونه بهتر دی. دَدې واقعه نه دَحضورپاك دَ بهادرئی اومجاهدانه شان ډیر زلانده معلومیږی اودا تعلیم ملاویږی چه مسلمانانو له هم داسې ژوند تیرول پکاردی. والله الموفق.

ممکن ده چه ډیر اهل سیر دا واقعه دَ سقوط دَدې دَپاره نه ده ذکرکړې چه په دې به خلق شك کوی. لیکن دَ داسې خیالاتو دَ وجې نه دَ صحیح او قوی السند واقعاتو ذکرنه کول په هیڅ شان سره صحیح نه شی ګرځولې. (١)

**قوله: وآلى من نسآئه شهراً:** اونبی کریم ﷺ قسم اوکړو چه هغه به دَ یوې میاشتې پورې خپلو بیبیانوله ورنه شی. په مذکوره حدیث کښې دادویمه مسئله بیان کړې شوې ده چه حضورپاك دَ یوې میاشتې ایلاء اوکړه دَایلاء مراد شرعي ایلاء نه ده بلکه ایلاء لغوی مراد ده. یعنی دَ شرعی ایلاء دَ مودې نه دَ کمې مودې قسم ئی اوکړو. (٢) شرعی ایلاء څلور میاشتې بی بی ته دَ نه ورتلوقسم خوړلو نوم دې. (٣)

من نسائه کښې لفظ من تعلیلي کیدې شی که چرې دَ من اصل دَ شروع دَپاره وی نودَمن تعلیلیه په صورت کښې آلى من نسائه معنى: آلى بسبب نسائه، أي: من أجلهن به شی. (٤)

**قوله: فجلس في مشربة له:** بیا حضورپاك په خپله بالاخانه کښې کیناستو (یعنی هلته ئی قیام اوفرمائیلو) مشربة: دَ میم فتحه سره دَ شین سکون سره او راء فتحه اوضمه دواړو سره استعمالیږی دکور دَپاسه جوړې شوې کمرې ته مشربة ونیلی شی. (٥)

**قوله: درجتها من جذوع:** دَدې بالاخانې پاؤړئی دکهجورو دَ ښاخونو(دَلرګی) وې. جذوع جمع دَ جذع ده. دجیم کسره او ذال سکون سره دَجذع جمع جذوع او أجذاع راځی. دکهجورې جذع ته ونیلی شی (٦)، دې ځائی کښې جذوع تنوین سره بغیردَ اضافت دې لیکن دَ کشمیهنی په روایت کښې اضافت سره دې. یعنی جذوع النخل (٧)

---

(١) أنوارالباری: ١١/١٤٦-١٤٥فیض الباری: ٢/٢٩.

(٢) التوضیح لابن ملقن: ٥/٣٦٥فتح الباری: ١/٦٣٢إرشادالساری: ٢/٤٢الکوثرالجاری: ٢/٦٥فیض الباری: ٤/٣٠.

(٣) المبسوط للسرخسی کتاب الطلاق باب الإیلاء: ٧/٢٤ردالمحتار کتاب الصلاة باب الإیلاء: ٢/٥٩١رشیدیة البحرالرائق کتاب الطلاق باب الإیلاء: ٤/١٠٠.

(٤) عمدة القاری: ٤/١٥٦.

(٥) معجم الصحاح للجوهری ص: ٥٤٠الفائق فی غریب الحدیث: ٣/١٣٣النهایة فی غریب الحدیث والأثر: ١/٨٥٢التوضیح لابن ملقن: ٥/٣٦٥.

(٦) معجم الصحاح للجوهری ص: ١٦٢ المعجم الوسیط ص: ١١٣.

(٧) فتح الباری: ١/٦٣٢تحفة الباری: ١/٢٩٩.

**قوله: فأتاه أصحابه يعودونه: فصلى بهم جالساً وهم قيام:** نو اصحاب رسول ﷺ د حضورپاك دبيمارئى تپوس دپاره حاضرشو (په دې دوران كښې دمونځ وخت شو) نورسول الله ﷺ هغوى ته مونځ وركړو په داسې حال كښې چه حضورپاك ناست وو اوصحابه ﷺ (د حضورپاك په اقتداء كښې) په ولاړه مونځ كولو.

**قوله: جالساً:** حال دې فصلى كښې موجود ضمير هو نه كوم چه د حضورپاك طرف ته راګرځى او وهم قيام جمله اسميه حال دې د بهم د هم ضمير نه كوم چه صحابه كرام ﷺ طرف ته راګرځى. قيام مصدر دې د اسم فاعل په معنى كښې يعنى قائمون. (۱)

**قوله: فلما سلم، قال: إنما جعل الإمام ليؤتم به:** بياچه كله رسول الله ﷺ (مونځ پوره كولو سره) سلام اوګرځولو نو حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه امام خو ددې دپاره امام جوړولې شى چه د هغه اقتداء اوكړې شى.

**قوله: إنما:** داكلمه دحصر ده د خپلې خبرې اهتمام او په هغې كښې دمبالغې معنى بيدارولودپاره استعمالولې شى.

**قوله: جُعِل:** ددوو مفعولوتقاضا كوى دلته يو مفعول (قائم مقام فاعل) خو موجود دې ليكن دويم محذوف دې اوهغه دې إماماً يعنى ((إنما جُعِل الإمام إماماً)).

**قوله: ليُؤتَمَّ به:** ددې معنى ده ليقتدى به يعنى چه دامام په افعال كښې دامام تابعدارى اوكړې شى.

**د مقتدى امام سره د متابعت حكم:** دحديث مبارك د مذكوره جملې نه دا خبره ثابتيږى چه په مقتدى باندې دمانځه په افعالوكښې د امام متابعت يعنى تابعدارى كول واجب دى ترديې چه د اودريدو خائى او نيت پورې متابعت ضرورى دې. دامام اومقتدى په مينځ كښې د نيت اختلاف مضر دې دې سره به مونځ او اقتداء باطل شى. دامام ابوحنيفه رحمه الله او امام مالك رحمه الله هم دغه مسلك دې (۲) ليكن امام شافعى رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نيز په افعال كښې متابعت خو لازم دې ليكن په نيت كښې ضرورى نه دې يعنى په نيت كښې دامام او مقتدى اختلاف د مانځه د صحت دپاره مضر نه دې (۳) دا دواړه حضرات مذكوره حديث د ظاهرې افعال سره مخصوص منى په خلاف د امام ابوحنيفه رحمه الله او امام مالك چه دادواړه حضرات دنيت اختلاف د حديث مذكوردحصر لاندې داخل منى. (۱)

---

(۱) عمدة القاري: ۱۵۷/۴ إرشادالساري: ۴۲/۲ الكوثرالجاري: ۶۶/۲ تحفة الباري: ۲۹۹/۱.

(۲) بدائع الصنائع كتاب الصلاة فصل وأما شرائط الأركان: ۱۳۸/۱ شرح فتح القدير كتاب الصلاة فصل فى قيام رمضان فصل منه: ۴۹۰/۱ ردالمحتار شرح الدرالمختار كتاب الصلاة باب الإمامة شروط الاقتداء: ۴۹۶/۳ البحرالرائق كتاب الصلاة باب الإمامة: ۳۸۲/۱ نورالإيضاح كتاب الصلاة باب الإمامة: ص: ۱۳۲ بداية المجتهد كتاب الصلاة الباب الثامن فى معرفة النية وكيفية: ۱۲۰/۱ الاستذكار كتاب الصلاة صلاة الجماعة باب صلاة الإمام وهو جالس: ۳۸۹/۵-۳۸۶ حاشية الدسوقى كتاب الصلاة باب الوقت المختار صلاة الجماعة: ۳۲۵/۱.

(۳) الأم للشافعى كتاب الصلاة اختلاف نية الإمام والمأموم: ۳۵۰/۲-۳۴۶ الحاوى الكبير فى فقه مذهب الإمام الشافعى كتاب الصلاة باب اختلاف نية الإمام والمأموم وغير ذلك: ۳۱۶/۲ المغنى لابن قدامة كتاب الصلاة باب

**قوله:: فإذا كبر فكبروا، وإذا ركع فاركعوا، وإذا سجد فاسجدوا وإن صلى قائما، فصلوا قياما**
نو چه كله امام تكبير اووائى تاسو هم تكبير وايئى كله چه هغه ركوع كوى تاسوهم ركوع اوكړئى كله چه هغه سجده كوى نوتاسو هم سجده اوكړئى اوكه چرې هغه په ولاړه باندې مونځ وركوى نوتاسو هم په ولاړه مونځ كوئى.

**قوله:: فإذا كبر فكبروا** كله چه امام تكبير اووائى نو تاسو هم تكبير اووايئى. دَ فكبروا فاء دَامام ابو حنيفه په نيز دحال دپاره ده يعنى دَ امام دَتكبير ونيلو په حالت كښې يا په وخت كښې تاسو هم تكبير وايئى. دَامام صاحب دَ قول حاصل داشو چه دَ مقتدى تكبير ونيل دَ امام تكبير سره متصل كيدل پكار دى نه چه دَ امام دَتكبير نه وړاندې اونه روستو.صاحبين رحمهما الله فرمائى چه افضل دادى چه دَامام دَ تكبير ونيلونه پس مقتدى تكبير اووائى ځكه چه په فكبروا كښې فاء دَتعقيب دَپاره ده.
دَامام صاحب رحمه الله دَ قول حكمت دادې چه دَمقارنت والا په قول كښې دَعبادت طرف ته تيزنى سره راتلل دى كوم چه مطلوب دې بل دې كښې مشقت دې دكوم په وجه چه مقارنت افضل دې. اودَ صاحبين رحمهما الله دَ قول حكمت دادې چه په تعقيب كښې دَاشتباه بالكليه ختميدل دى.
دَدوارو اقوالو په صحت كښې څه اختلاف نشته افضليت كښې اختلاف دې. خو فتوى هم دَ صاحبين رحمهما الله په قول ده. دَ شيخ الاسلام خواهرزاده رحمه الله قول دې چه دَامام صاحب رحمه الله قول أدق او أجود دې اودَ صاحبينو قول أرفق او أحوط دې.([2])

**قوله:: فاركعوا فاسجدوا** دې دوارو الفاظوكښې فاء دَتعقيب دَپاره ده دَدې نه دلالت دې چه دمقتدى دپاره جائزنه دى چه هغه په دې افعالوكښې دَ امام نه وړاندې شى تردې كه مقتدى ركوع يا سجده اوكړه او امام په دې افعالوكښې مقتدى سره شريك نه شو نومونځ به ئى فاسدشى ([3])

**قوله:: فإن صلى قائما فصلوا قياما** بياكه چرته امام اودريږى اومونځ كوى نوتاسو هم اودريږئى اومونځ كوئى. ددې جملې مفهوم مخالف "كه چرې امام كينى او په ناسته مونځ كوى نوتاسوهم كينئى او په ناسته مونځ كوئى" باندې عمل كول جائزنه دى. ځكه چه داحكم منسوخ دې اوناسخ دَحضورپاك دَژوند مبارك آخرى مونځ دې. په كوم كښې چه حضورپاك په ناسته باندې مونځ وركړو او صحابه كرام رضي الله عنهم په ولاړه مونځ اوكړو.
علامه عينى رحمه الله فرمائى كه په دې خانى كښې څوك اعتراض اوكړى چه په دويم روايت كښې دا الفاظ په صراحت سره نقل دى (فإن صلى قاعدا فصلوا قعودا) نوزه به جواب وركړم چه (فصلوقعودا) معنى داده

---

الإمامة فصل فى صلاة المفترض خلف المتنفل: ۶۷/۳كشاف القناع كتاب الصلاة باب النية: ۲۹۸/۱شرح منتهى الارادات كتاب الصلاة باب النية فصل النية فى الجماعة: ۲۶۵/۰.

[1]) عمدة القارى: ۱۵۹/٤.

[2]) حلبى كبير كتاب الصلاة فرائض الصلاة الأول تكبيرة الافتتاح ص: ۲۶۱ بدائع الصنائع كتاب الصلاة فصل فى بيان شرائط الصلاة: ۶۱۳/۱الفتاوى الهندية كتاب الصلاة الباب الرابع فى صفة الصلاة الفصل الأول فى فرائض الصلاة: ۶۸/۱عمدة القارى: ۱۵۹/٤.

[3]) عمدة القارى: ۱۵۹/٤شرح الكرمانى: ٤۳/٤الفتاوى الهندية كتاب الصلاة الباب الرابع فى صفة الصلاة الفصل الأول فى فرائض الصلاة: ۶۹/۱-۶۸.

چه کوم امام دَقیام نه عاجزشی په ناسته مونځ ورکوی که چرې دغه شان تاسو هم دولاړې نه عاجز شئ نوتاسو هم کیننئ مونځ اوکړئ. نودا به د تخصیص دَ قبیل نه شی.(۱)

**دَحضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله تحقیق** شیخ الحدیث صاحب رحمه الله فرمائی دَحنابله مذهب دادې که چرې امام راتب دَځه عذر دَوجې نه په ناسته مونځ ورکړې نومقتدیانوله بغیرد عذر نه په ناسته مونځ کول پکاردی. اودائمه ثلاثه په نیزد مقتدیانو بغیرد عذر نه په ناسته مونځ کول جائزنه دی امام بخاری رحمه الله به په دې باندې مستقل باب ترلوسره په حنابله باندې ردکوی.

شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی چه دا حدیث دامام احمد رحمه الله مستدل دې په دې مسئله باندې که چرې امام راتب وی نوداسې کول جائز دی لیکن ائمه ثلاثه دَدې نه انکارکوی او وائی چه مقتدیانوله قیاماً اقتداء کول پکاردی لکه څنګه چه نبی اکرم ﷺ په خپل آخری ژوندکښې په ناسته مونځ وکړو او حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه مکبر په حیثیت سره په ولاړه باندې خلقو ته تکبیرات رسول اوهغه وخت ټول صحابه کرام ولاړوو مونځ ئې کولو اودا فعل به دَحضورپاك دَ سابقه ټولو افعالو دپاره ناسخ وی. حنابله دَدې قسم روایاتو تاویل کوی چه حضورپاك امام نه وو بلکه هلته هم حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه امام وو.(۲)

**دَحضرت کشمیری رحمه الله رائې:** حضرت مولانا محمدانورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی دَ ولاړ اقتداء دَعذر دَ وجې نه په ناسته مونځ ورکولو امام پسې جائز دې. دَحنفیه اوشافعیه هم دغه مسلك دې. دَ امام مالك رحمه الله په نیز بالکل جائزنه دې. دَامام احمد رحمه الله په نیز دلته تفصیل دې که چرې امام ته عذر هم دَ مونځ په مینځ کښې پیداشی نومقتدیان په ولاړه باندې مونځ کولې شی اوکه چرې عذر هم دَشروع نه وو نودوی له هم په ناسته باندې مونځ کول پکاردی.

حنفیه اوشافعیه حدیث الباب منسوخ ګرځولې دې اوهم دَدې طرف ته امام بخاری رحمه الله هم تلې دې. چنانچه دَدې صراحت په صحیح بخاری شریف کښې دوو ځایونوکښې دې. راقم الحروف عرض کوی چه هغه دواړه ځایونه دادی:

۱-باب"إنما جعل الإمام ليؤتم به" کښې قال أبوعبدالله.....الخ امام بخاری رحمه الله دَ شیخ حمیدی رحمه الله نه نقل کړې دی چه قوله علیه السلام : وإذا صلى جالساً فصلوا جلوساً داد حضورپاك ارشاد مرض قدیم (دَاس نه دَ پریوتلو واقعه) کښې وو. بیا حضورپاك دَدې نه پس (مرض وفات کښې) په ناسته باندې مونځ کړې اوصحابه کرام په ولاړه اقتداء کړې ده. هغه وخت حضورپاك هغوی ته دَناستې حکم نه دې کړې اودحضورپاك دَ آخر نه آخر فعل معمول به جوړولې شی.

۲-باب"إذا عاد مريضاً" کښې امام بخاری رحمه الله لیکلی دی چه شیخ حمیدی رحمه الله وائی دا حدیث منسوخ دې. زه وایم چه په دې وجه نبی کریم ﷺ په ناسته باندې مونځ ورکړې دې په کوم کښې چه خلق حضورپاك پسې شاته ولاړوو.

حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی زما جواب دادې چه حاصل حدیث مشاکلت امام ومأموم استحباب خودل دی چه امام هم دَ اقتداء دپاره دې دلته دَ قیام اوقعود دَ جواز تفاصیل خودل مقصودنه دی. دَدې دپاره به دَشریعت نور اصول او قواعد کتلې شی. دکوم حاصل چه دَ اقتداء قاعد غیرمطلوب کیدل راوځی لیکن چه دَ اقتداء نوبت راشی نو مطلوب مشاکلت دې څومره هم چه کیدې شی نودا د

---

(۱) عمدة القاري: ٤/١٥٩.

(۲) تقریر بخاری شریف: ۲/۳٥۰-۳٥۱الکنزالمتواری: ٤/٦٤

حديث قولي منشاء ده باقي هغه واقعه جزئيه کومه چه ابوداؤد کښې نقل ده دهغې جواب دادې چه هغه حضرات حضورپاك پسې شاته اقتداء کونکو نفل مونځ کولو ځکه چه ظاهره هم دغه ده چه هغوی دَ ماسپښين فرض مونځ په جماعت کښې په جمع سره کړې وی. اودا ډیر مستبعدامر دې چه دَ حضور پاك دَ بيمارئی په حالت کښې ټولې ورځې دَ جماعت دَجمع نه معطل پاتې وی. لهذا خپل فرض مونځ اداکولونه پس چه کله دَحضورپاك دَ بيمارئی تپوس له راغلل او حضورپاك ئی اوليدلو چه مونځ ئی کولو نوهغوی هم دَحضورپاك سره دَبرکت حاصلولودَپاره لکه څنګه چه دَهغوی عادت وو شريك شو په رمضان شريف کښې ئی هم داسې کړې وو چه حضورپاك پسې شاته اقتداء اوکړه بيا حضور پاك په دويم يا دريمه ورځ دَتراويح دَ فرض کيدو دَ ويرې تشريف رانوړو. غرض دَ صحابه کرامو ﷺ دا مونځ صرف دَ برکت دَحاصلولو او فضيلت په خيال سره وو دَ فرض مونځ اداکول نه وو بعض خلقو دا فرض اوګڼړل کوم چه غلط دې. نور تفصيل به په خپله موقع راځي. انشاء الله.

حضرت شاه صاحب رحمه الله نور فرمائی چه که چرې اوونيلې شی چه حديث صلاة مرض الوفات کښې اضطراب دې. بعض راويانو حضورپاك امام خودلې او بعض حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په دې وجه هغه دَناسخ کيدو صلاحيت نه لرى. دَدې جواب دادې چه داخبره دَهغه خلقو خلاف کيدې شی چه دَحضورپاك صرف په يوخل دَمرض په حالت کښې دَبهر تشريف راوړلو قائل دى زما په نيز دا ثابت دى چه حضورپاك په څلورو مونځونوکښې تشريف راوړې دې. بعض کښې امام وو اوبعض کښې مقتدى.حافظ ابن حجر ليکلى دى چه دَحضرت عائشه رضي الله عنها دَ ډيرو زياتو رواياتو سره داخبره يقين ته رسيدلې ده چه په دغه مونځ کښې هم حضورپاك امام وو. دويم داچه حنابله دکوم حديث نه استدلال کوی په هغې کښې هم اضطراب دې ځکه چه هم هغه حديث دانس رضي الله عنه په مسلم شريف کښې داسې دې چه حضورپاك مونږ ته په ناسته باندې مونځ راکړو اومونږ هم په ناسته باندې اقتداء اوکړه لهذا په حديث سقوط کښې هم اضطراب پيداشو سره ددې چه دَتاويل ګنجائش هرځائی راوتلې شی (۱)

**قوله: ونزل لتسع وعشرين فقالوا يارسول الله! إنك آليت شهرا، فقال: إن الشهر تسع وعشرون:** اوحضورپاك ۲۹ تاريخ باندې (بالاخانې نه) ښکته راکوز شو نوصحابه کرام رضي الله عنهم عرض اوکړو يا رسول الله ! تاسو خود يوې مياشتې ايلاء کړې وه؟ نوحضورپاك په جواب کښې ارشاد اوفرمائيلو چه (او خبره هم دغه شان ده ليکن) دې ځل مياشت دَ ۲۹ ورځو ده.

**دَمذکوره ايلاء سبب:** حضورپاك خپل ازواج مطهرات نه يوې مياشت پورې دَ جدا اوسيدو قسم کړې وو. دَدې وجه يا سبب څه وو؟ په دې باره کښې دَ روايت نه درې وجوهات معلوميږى: ① دَ شاتو والا قصه کومه چه په صحيح بخارى کښې موجود ده.(۲)

② دَ ازواج مطهرات دَ طرف نه دَ زياتى نفقې مطالبه کول (۳)

---

(۱) أنوارالبارى: ۱۱/۱۵۱-۱۵۰فيض البارى: ۱/۳۱-۳۰وکتاب الأذان باب إنما جعل الإمام ليؤتم به رقم الحديث: ۶۸۹، ۱/۲۷۵-۲۷۳وکتاب الأذان باب إيجاب التكبير وافتتاح الصلاة رقم الحديث:؟ ۷۳۲، ۱/۳۱۵-۳۰۹.

(۲) صحيح البخارى كتاب الطلاق باب لم تحرم ما أحل الله لک رقم الحديث: ٤۹۶۷صحيح مسلم كتاب الطلاق باب وجوب الكفارة على من حرم إمراته ولم ينوالطلاق رقم الحديث: ۱٤۷٤.

(۳) صحيح مسلم كتاب الطلاق باب بيان أن تخيير امرأته لا يكون طلاقاً إلا بالنية رقم الحديث: ۱٤۷۸مسندأبی عوانه كتاب الطلاق بيان الخبر الدال على إيجاب النفقة النساء رقم الحديث: ٤۵۸۶.

④ دَحضرت ماریه قبطیه رضی الله عنها قصه. (۱)
په قصه دَ شاتو او قصه دَماریه قبطیه رضی الله عنها والا روایاتوکښې دایلاء ذکرنشته دې مګردَ نورو روایاتو نه معلومیږی چه حضورپاك په خپل خان باندې څه څیز حرام ګرځولې وو روستو دَ الله ﷻ دَ طرف نه عتاب اوشو اودا آیت نازل شو: ﴿ يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ ﴾ (۲) هم په دې واقعه کښې حضورپاك په خپلو بیبیانوباندې غصه کیدو سره دَهغوی نه ایلاء کړې وه. دغه شان تحریم حلال په واقعه کښې مآلاً ایلاء اودَ ازواج مطهرات نه جدا کیدلو قصه پیښه شوه لکه څنګه چه دَبخاری شریف په یوروایت کښې دَحضرت عمر رضی الله عنه په قول سره معلومیږی اوګورئی: صحیح البخاري رقم الحدیث: ۲۳۳۶.(۳)

**په مذکوره حدیث کښې دَ راوی یووهم:** په مذکوره حدیث کښې دَدوو واقعاتو ذکر دې. یودَ نبی کریم ﷺ دَ سورلئی نه دَ پریوتلو او دا دَ پنځم هجري واقعه ده او دویم دَ ایلاء. یعنی دَحضورپاك خپل ازواج مطهرات ته نه تللو قسم کولو واقعه اودا دَنهم هجری واقعه ده. په دې باندې اشکال دادې چه کله په دې دوارو واقعاتوکښې دَ څلورو کالو فاصله ده اودا دواړه جدا جدا واقعات دی نو بیا راوی دواړه ولې رایوځائې کړې؟

شیخ الحدیث رحمه الله دَدې په جواب کښې فرمائی بعض خلقو وئیلی دی چه دادَ راوی وهم دې خوزما په نیز بهتر جواب دا دې چه حضورپاك په دې دوارو مواقع باندې مشربه کښې قیام فرمائیلې وو. په دې وجه راوی چه کله دَ سورلئی نه دَ پریوتلو او مشربه کښې دَحضورپاك دَ قیام کولو بیان اوکړو نوتبعاً ئې دَ ایلاء قصه هم ذکرکړه چه حضوپاك علیه السلام په دې موقع باندې هم مشربه کښې قیام فرمائیلې وو (۴) دې نه علاوه دوارو قصوکښې دَ اشتراك وجه دا هم ده چه دواړه ځل قیام موده ۲۹ ورځې وه. بل په نوعیت دَقیام کښې هم فرق وو. مثلاً واقعه دَ سقوط کښې نشته انفکاك قدم دَ وجې نه جمات نه تشریف نه شو اوړلې هم په بالاخانه کښې به ئې مونځ کولو په خلاف دَ ایلاء والاواقعه کښې چه په دې کښې به حضورپاك هم په جمات کښې مونځ کولو. او په واقعه دَایلاء کښې ازواج مطهرات او متعلقین کښې کوم بې آرامی او اضطراب وو هغه په واقعه دَسقوط کښې نه، دوارو کښې هم دغه مغایرت کافی دې.

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله مسامحت:** حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی حافظ صاحب رحمه الله دواړه واقعات هم په یوکال کښې ګرځولې دی کوم چه قطعاً غلط دی او حیرانتیاده چه دَحافظ صاحب غوندې کس نه دا دومره لویه غلطی څنګه اوشوه؟ دا غلطی هغوی نه دَ بعض رواة دَتعبیرپه سبب شوې ده چه هغوی قصه دَ سقوط اوقصه ایلاء یوځائې ذکر کړه. حضرت رحمه الله فرمائی چه دَ رواة تعبیر ی غلطئی طرف ته حافظ زیلعی رحمه الله هم تنبیه کړې ده.راقم الحروف عرض کوی چه امام مسلم رحمه الله په ډیرو طریقوسره دَحضرت انس رضی الله عنه نه دَ انفکاك قدم مبارك روایت کړې دې مګر دَ هیڅ ایلاء ذکر ئې نه دې کړې.اوهم دغه صورت دَحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها اوحضرت جابر رضی الله عنه دَحدیث دې. په مسلم کښې دَ

---

(۱) سنن النسائی کتاب عشرة النسآء باب الغیرة رقم الحدیث: ۳۹۵۹.

(۲) سورت التحریم آیت: ۱.

(۳) صحیح البخاری کتاب المظالم باب الغرفة والعلیة المشرفة فی السطوح وغیرها رقم الحدیث: ۲۳۳۶.

(۴) الکنزالمتواری: ۶۲/۴تقریر بخاری شریف: ۱۳۴/۲سراج القاری: ۴۰۷/۲.

حضرت انس رضي الله عنه نه روايت كونكى څلورواړه احاديثو كښې امام زهرى رحمه الله دې چاچه د ايلاء هيڅ ذكر نه دې كړې.

او په بخارى شريف كښې هم ((باب إنما جعل الإمام ليؤتم به)) كښې چه كوم روايت د زهرى عن انس دې په هغې كښې د ايلاء ذكرنشته دې ليكن دلته (حديث الباب كښې چونكه روايت په واسطه د حميد الطويل رحمه الله دې. په واسطه د ابن شهاب زهرى نه دې) په دې وجه په دې ټولو كښې د ايلاء ذكر هم شامل كړې شوې دې. اوداد شاملولووجه د راوى په ذهن كښې صرف دا اشتراك دې چه واقعه سقوط ۵هجرى او واقعه د ايلاء ۹هجرى دواړو كښې حضور عليه السلام بالاخانه كښې قيام فرمائيلې وو. د دې امر خيال ئې اونه كړو چه دواړه جداجدا واقعات دى په كوم كښې چه د څو كالو فاصله ده. ليكن د حافظ غوندې محقق مدقق نه دا امر ډير مستبعد دې چه هغه صرف د يو راوى د دغه مذكوره تعبير په وجه دا فيصله اوكړه چه هم د ايلاء دوران كښې د سقوط واقعه هم پېښه شوې ده اوهم په دې باندې حضرت شاه صاحب رحمه الله هم د حيرانتيا اظهاركړې دې.([1])

**شرح الزرقاني اوسيرة النبي ﷺ كښې تسامح:** المواهب اللدنية اوپه شرح كښې هم علامه قسطلانى رحمه الله شارح بخارى اوعلامه زرقانى رحمه الله (مالكى شارح موطا امام مالك رحمه الله) د دواړو نه تسامح شوې دې چه د حافظ ابن حجر رحمه الله په شان ۹ هجرى كښې ايلاء او سقوط دواړه منلى دى.بيا د علامه زرقانى رحمه الله نه نور زيات مسامحت دا اوشو چه په حواله د روايت شيخين وغيرهما عن انس رضي الله عنه سقوط او ايلاء يوځائې نقل كړل حالانكه مونږ پورته نقل كړى دى چه صرف بخارى كښې په واسطه د حميد الطويل عن انس رضي الله عنه سقوط سره د ايلاء ذكر مروى دې. باقى په مسلم شريف وغيره كښې نه د حميد الطويل په واسطه سره روايت اخستې شوې دې اونه د هغه په روايت كښې د ايلاء ذكر د سقوط والا واقعې سره كړې شوې دې. هغه ټول د امام زهرى رحمه الله په واسطه سره د حضرت انس رضي الله عنه روايت نقل كوى. په كوم كښې چه د ايلاء ذكرنشته دې اوبخپله بخارى شريف كښې هم چه كوم روايت ابن شهاب عن انس رضي الله عنه دې په هغې كښې د ايلاء ذكرنشته دې. غرض په دې معامله كښې داسې اكابر محدثين حضراتو ته هم مغالطه لګيدلې ده اوحسب ايماء حضرت شاه صاحب رحمه الله صرف د محدث زيلعى په دې تفرد باندې متنبه شوې دې. محقق عينى رحمه الله سره د دې چه دواړه واقعات يوځائې او په يوكال كښې خو نه دى يادكړى مګر د نورو حضراتو په غلطئ باندې ئې متنبه هم نه ده كړې.

بيا د اردو سيرت نګار هم په دې غلطئ باندې متنبه نه شو چنانچه سيرت النبى ﷺ كښې د ايلاء ذكركولوسره ليكلى دى اتفاق دادې چه په هغه زمانه كښې حضورپاك د اس نه راپريوتلو اوپټون مبارك باندې زخم راغلو.... الخ. نور ئې ليكلى دى ۹ هجرى كښې حضورپاك ايلاء كړې وه او بل د اس نه پريوتلوسره زخمى شوې وو نوديوې مياشتې پورې هم په دغه (بالاخانه) كښې قيام كړې وو.([2])

**د مذكوره حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** په ترجمة الباب كښې د مونځ ذكر دې اوحديث مبارك كښې هم ذكر دې چه حضورپاك صحابه كرامو رضي الله عنهم ته په بالاخانه كښې مونځ وركړو هغه بالاخانه او د هغې پاوړنى د لرګى وه دا خبره د علامه ابن بطال رحمه الله ده.

په دې باندې علامه كرمانى رحمه الله اعتراض كړې دې چه په دې حديث كښې داسې هيڅ خبره نشته دې چه په دې خبره باندې دلالت اوكړى چه حضورپاك په لرګى باندې مونځ اداكړو څكه چه دا خبره خو

---

[1] أنوار البارى: ۱۱/۱۴۵-۱۴۳.

[2] أنوار البارى:۱۱/۱۴۸.

معلومه شوې ده چه د بالاخانې پاؤړئي د كهجورو د بناخونوو ليكن پخپله دغه بالاخانه څه څيز وه؟ په دې باندې څه دلالت نه كوي. بل داكيدې شي چه دامام بخاري رحمه الله غرض په چت باندې د بيانولودلالت وی هغه ټيك دې دغه شان چه د بالاخانې زمكي ته مجازاً چت ونيل صحيح دی.(١)

په دې باندې علامه عيني رحمه الله فرمائي چه په ظاهره خو هم دغه معلوميږي چه بالاخانه دلرګي وه صرف د پاؤړئي د لرګي ذكر كيدو سره لازم نه راځي چه باقي بالاخانه د څه بل څه څيز وي. نوهغه احتمال كوم چه علامه كرماني رحمه الله ذكر كړې دې دهغه احتمال نه زيات قوى نه دې كوم چه مونږ ذكر كړې دې.(٢)

**مسئله د اقتداء القائم خلف الجالس**:(٣)اولاً دې كښې اختلاف دې چه دقائم دپاره د جالس امام جوړيدل (يعني كوم سړې چه په څه وجه اودريدو سره دمونځ كولو قدرت نه لرى اوپه ناسته باندې مونځ كوي دهغه دداسې سړي دپاره امام جوړيدل چه په قيام باندې قادر وي) صحيح دى كه نه؟

**دامام مالك رحمه الله اوامام محمدرحمه الله مسلك**: د امام مالك رحمه الله اوامام محمد رحمه الله مذهب دادې چه دقائم دپاره د جالس امامت صحيح نۀ دې (٤) (لهذا د قادر على القيام دپاره دداسې سړي اقتداء كول جائزنه دى چه د قيام نه عاجز وي) او په دې باندې دمرض الوفات د واقعه نه كوم اشكال كيږي چه حضور عليه السلام په ناسته باندې امامت اوكړو اوخلقو په ولاړه اقتداء اوكړه ددې جواب دادې چه) د حضور پاك فعل د رسول الله صلى الله عليه وسلم خصوصيت منى (٥) هغوى د خصوصيت په دليل كښې يو حديث هم پيش كړې دې په كوم كښې چه حضور عليه السلام اوفرمائيل ((لا يؤمن أحد بعدي جالساً))(٦) (يعني زما نه پس دې څوك په ناسته باندې امامت نه كوي) كه چرې داحديث صحيح وې نوددې مسئلې دپاره فيصل كونكې وو. مګر افسوس دې چه ددې راوى جعفر جعفى دې كوم چه سخت مجروح دې.(٧)

---

(١) شرح ابن بطال: ٤٧/٢شرح الكرماني: ٤٣/٤.

(٢) عمدة القاري: ٤/١٥٦-١٥٥.

(٣) داقتداء القائم خلف الجالس په موضوع باندې حضرت مولانا علامه شبير احمد عثماني رحمه الله تقرير فضل الباري كښې په ډير تفصيلي بحث موجود وو. حضرت شيخ الحديث صاحب زيد مجده العالى سره مشاورت اودهغوى په اجازت سره دلته دهغې حواشي سره بعينه نقل كولې شي.

(٤) المدونة الكبرى: ١٧٤/١تسهيل المسالك إلى هداية السالك إلى مذهب الإمام مالك: ٤٩٦/٢بداية المجتهد: ٣٦٨/١ مؤطا إمام محمد ص: ١١٧-١١٦شرح معاني الأثار: ١/٢٧٣ عمدة القاري: ٣/٣٣٢.

(٥) قال الطحاوى فى شرح معانى الأثار وكان محمدبن الحسن يقول: لا يجوز لصحيح أن يأتم بمريض يصلى قاعداً، وإن كان يركع ويسجد. ويذهب إلى ماكان من صلاة رسول الله صلى الله عليه وسلم قاعداً فى مرضه بالناس وهم قيام : مخصوص. لأنه قدفعل فيها مالا يجوز لأحد بعده أن يفعله... إلخ. (شرح معانى الأثار: ٢٧٣/١) نور اوګورئي: المحلى لابن حزم: ٤٥/٣.

(٦)أخرجه محمدفى المؤطا(ص:١١٧) والبيهقى فى سننه الكبرى:٨٠/٣قال محمد:حدثناأحمد أخبرنا إسرائيل بن يونس بن أبى إسحاق السبيعى عن جابر بن يزيد الجعفى عن عامر الشعبى قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لايؤمن من الناس أحد بعدى جالساً.

(٧) قال البيهقى فى سننه الكبرى:٨٠/١قال على بن عمر: لم يروه غير جابر الجعفى وهومتروك والحديث مرسل، لا تقوم به حجة......قال الشافعى: قد علم الذى احتج بهذا أن ليست فيه حجة وأنه لا يثبت، لأنه مرسل، ولأنه عن رجل يرغب الناس عن الرواية عنه. (وانظر أيضاً فتح البارى كتاب الأذان باب إنما جعل الإمام ليؤتم به: ٢/١٧٥).

تردي چه دَامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله په شان دَ احتياط كونكى ذات نه نقل دى چه ,,مارأيت أكذب من جابر الجعفى,,[1] اوبعض ائمه دَهغه توثيق كړې دې خو اكثر ائمه دَده په جرح باندې متفق دى [2]، دې نه علاوه دا روايت مرسل هم دې.

قاضى ابوبكر بن العربى رحمه الله دَخصوصيت په تاكيدكښې ليكلى دى چه كله كله دَحال اوواقعه نوعيت پخپله دَتخصيص وجه جوړيږى اودلته هم داسې دى ځكه چه رسول الله ﷺ سيدالمخلوقات اوامام ائمه دې دَحضورپاك عوض اوبدل هيڅوك نشته دې دَ رسول الله ﷺ مثال څوك سړې نه شى راوستې لهذادَحضورپاك موجود كيدو سره دَ حضورپاك بدل اوقائم مقام (اوامام) دويم څوك جوړيدې نه شى په دې وجه حضور عليه السلام په حق كښې په حالت دَ امامت دَ جلوس تحمل اوكړې شو [3]

دَدې جواب دا وركړې شو چه[4] عبدالرحمن بن عوف رضى الله عنه پسې شاته حضورپاك پخپله مونځ كړې دې [5]، په دې وجه داسې وېناكول چه دَحضورپاك په موجودګئى كښې بل څوك امام نه شى جوړيدې صحيح نه ده. دَدې په جواب كښې هغه خلق وائى چه عبدالرحمن بن عوف رضى الله عنه دَحضور عليه السلام په غير موجودګئ كښې امام جوړشوې وو. حضورپاك روستو راغلو په مانځه كښې شامل شو غرض رسول الله ﷺ مسبوق وو خوزمونږ دعوى داده چه دَحضورپاك په موجودګئى كښې دَ شروع نه څوك دَهغوى عوض نه شى جوړيدې.

**دَ جمهورو مذهب:** دَ جمهور ائمه مسلك دادې چه دَجالس امامت (قادر على القيام دَپاره) جائزدې [6]،

**په مذكوره مسئله كښې دويم اختلاف:** بيا اختلاف په دې كښې دې چه داسې حالت كښې (كله چه امام په ناسته باندې مونځ وركوى) مقتدى به څه كوى؟ (آيا هغه به هم دَامام په اقتداء كښې مونځ په ناسته كوى يا په ولاړه دَ قادر كيدو دَ وجې نه به اودريدو سره مونځ كوى)

---

[1]) الكامل فى ضعفاء الرجال: ۳۲۸/۲تهذيب الكمال: ۳۰۶/۳.

[2])الجرح والتعديل: ٤۹۷/۲الكامل فى ضعفاء الرجال: ۳۲۷/۲تهذيب الكمال: ۳۰٤/۳ميزان الاعتدال: ۳۷۹/۱ الكاشف فى معرفة من له الرواية فى الكتب الستة: ۱۳۱/۱تقريب التهذيب: ۸٥/۱قال الذهبى فى الكاشف: وثقه شعبة فشذ، وتركه الحفاظ.

[3]) دَابوبكربن العربى رحمه الله اصل عبارت عارضة الإخوذى كتاب الصلاة باب إذا صلى الإمام قاعداً فصلوا قعوداً: ۱٦۰/۲-۱٥۹ كښې اوګورئى.

[4]) كماأجاب به الحافظ فى الفتح: ۱۷٥/۲.

[5]) اخرجه مسلم فى صحيحه: ۱۸۰/۱من طريق عباد بن زياد عن عروة بن المغيرة بن شعبة أن المغيرة بن شعبة أخبره: أنه غزامع رسول الله صلى الله عليه وسلم تبوک فتبرز رسول الله صلى الله عليه وسلم قبل الغائط. فحملت معه إداوة قبل صلاة الفجر فلما رجع رسول الله صلى الله عليه وسلم إلى أخذت أهريق على يديه من الإداوة، وغسل يديه ثلاث مرات...... ثم توضأعلى خفيه، ثم أقبله. قال المغيرة: فأقبلت معه، حتى وجد الناس قد قدموا عبدالرحمن بن عوف، فصلى لهم، فأدرک رسول الله صلى الله عليه وسلم إحدى الركعتين، فصلى مع الناس الركعة الآخرة، فلما سلم عبدالرحمن بن عوف قام رسول الله صلى الله عليه وسلم يتم صلاته.

[6]) المحلى لابن حزم: ٥۰/۳فتح البارى: ۱۷٥/۲عمدة القارى: ۳۳۲/۳.

**دَاکثرو فقهاوُ مسلک اودَهغوی دلیل**: دَامام ابوحنيفه رحمه الله او امام شافعي رحمه الله او اکثر علماء اوفقهاء په نيز (داسې حالت کښې) دَمقتدي دَپاره کيناستل جائزنه دي[۱] ځکه چه (په مانځه کښې) قيام په قرآني نص سره فرض دي (چنانچه په قرآن کريم کښې دي (﴿ وَقُوْمُوْالِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ ﴾ [۲] چه بغيردَ عذر نه ساقط کيدې نه شي اودلته خو امام بيشکه معذور دې مگر دَمقتديانودَپاره هيڅ عذر نشته دې نودَهغوي نه ځنگه قيام ساقط شو.

**دَ ظاهريه قول**: ظاهريه وائي چه مقتديانوله هم په دې صورت کښې په ناسته مونځ کول پکاردي. دَهغوي په نيز په دې صورت کښې په مقتديانوباندې کيناستل واجب دي[۳] امام ابن حزم رحمه الله په دې کښې دومره تخصيص کړې دې چه که يو مقتدي مکبر ومسمع تکبير (يعنې دَامام تکبير نورو ته رسونکې) وي نوهغه مستثنٰى دې هغه په ولاړه مونځ کولې شي. [۴]

امام ابن حزم چه دا کومه استثنٰى اوکړه دَدې دليل دَمرض الموت واقعه ده ځکه چه په هغې کښې تصريح ده چه ((كان أبوبكر يسمعنا التكبير قياماً)) [۵] (رسول الله صلى الله عليه وسلم په ناسته مونځ کولو او ابوبکر صديق رضي الله عنه په ولاړه نورو ته تکبير رسولو).

اصل مسئله (يعنې دَامام دَ جالس کيدو په صورت کښې په مقتديانوباندې کيناستل واجب کيدو مسئله) کښې دَ ظاهريه دليل هم دغه حديث الباب دې يعنې سقوط عن الفرس واقعه ده. په دې کښې حضورپاك په ناسته باندې مونځ کولو او صحابه کرامو رضي الله عنهم په ولاړه باندې اقتداء اوکړه نو حضورپاك هغوي ته په اشاره سره دَ کيناستو حکم وزکړو او قولاً ئې صفا اوفرمائيل چه ((وإذا صلى جالساً فصلوا جلوساً)) [۶] اودائې په ضابطه دَ اتمام باندې متفرع کړه (يعنې په مذکوره حديث کښې يوه ضابطه بيان کړې ده هغه دا چه دَامام اقتداء کول لازم دي. هم په دې ضابطه باندې تفريع کولوسره حضورپاك اوفرمائيل چه دَامام په اقتداء کښې داخبره هم شامل ده چه کله هغه مونځ کوي کيني نومقتدي دې هم په ناسته باندې مونځ اوکړي).

---

[۱] شرح معاني لأثار: ۱/۲۷۳عمدة القاري: ۳/۳۳۲كتاب الأم: ۱/۱۷۱المجموع: ۴/۲۳۱شرح صحيح مسلم للنووي: ۱/۱۷۷.

[۲] سورة البقرة: ۲۳۸.

[۳] المحلى لابن حزم: ۳/۴۴نيل الأوطار للشوكاني: ۳/۱۷۰.

[۴] اوکه چرې غواړې نو په ناسته باندې هم کولې شي يعنې هغه ته دَ دواړو خبرو اختياردې (اوګورئې المحلى: ۳/۴۴).

[۵] أخرجه البخاري في صحيحه: ۱/۹۹من طريق أبي معاوية عن الأعمش عن إبراهيم عن الأسود عن عائشة قالت: لما ثقل النبي صلى الله عليه وسلم... إلخ الحديث وفيه فجاء النبي صلى الله عليه وسلم حتى جلس عن يسار أبي بكر، فكان أبوبكر يصلي قائماً وكان رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلي قاعداً. يقتدي أبوبكر بصلاة رسول الله صلى الله عليه وسلم والناس مقتدون بصلاة أبي بكر،وأخرجه أيضاً من طريق عبدالله بن داؤد عن الأعمش به . وفيه: فتأخر أبو بكر. وقعد النبي صلى الله عليه وسلم إلى جنبه، وأبوبكر يسمع الناس التكبير.(وانظر صحيح مسلم: ۱/۱۷۹-۱۷۸ وشرح معاني الآثار:۱/۲۷۲).

[۶] دلته بخاري رحمه الله چه کوم حديث ذکر کړې دې په هغې کښې دَحضورپاك داعمل او مذکوره الفاظو ذکرنشته دې. په اصل کښې بخاري رحمه الله حديث مختصراً ذکر کړې دې ګنې نفس حديث کښې مذکوره عمل او الفاظ هم ذکر دي.

**دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله مسلک:** دَامام احمدبن حنبل رحمه الله مسلک دادې چه که امام دَمونځ په شروع کښې په ولاړه سره شروع اوکړه اومقتديان هم ولاړ وو بيا په مانځه کښې امام ته څه عذر پيښ شو اوهغه کيناستو نو په دې صورت کښې دې مقتديان ولاړوی، دَامام دَ کيناستو دَ وجې نه دې مقتديان نه کينی. اوکه دَ شروع نه امام په مانځه کښې کيناستو مونځ نی شروع کړونو په دې صورت کښې دې مقتديان هم په ناسته سره مونځ اداکړی.[1]

واضحه دې وی چه دَحنابله په نيز هم دَجالس قادرعلی القيام دَپاره امام جوړيدل هغه وخت صحيح دی کله چه هغه دَ جمات امام راتب وی بل دَهغه عذر داسې وی چه دَهغه دَ زوال اميد وی گنی دَ جالس امامت دَ قادرعلی القيام دَپاره بالکل صحيح نه دې.[2] لکه چه هغه عذر بادی (يعنی دَ شروع نه عذر وو) اوعذر طاری (چه دمانځه دَ شروع په وخت خونه وو بلکه روستو شروع شو) کښې فرق اوکړو (چه دَعذر بادی په صورت کښې دې مقتدی کيناستوسره مونځ اداکړی او عذرطاری په صورت کښې په ولاړه).

په دويم صورت کښې دَهغوی دليل هم دغه سقوط عن الفرس حديث دې (څکه چه حضورپاک هم په شروع کښې په ناسته مونځ شروع کړې وو اوکله چه صحابه کرامو رضی الله عنهم رسول الله صلی الله عليه وسلم پسې شاته په ولاړه مونځ شروع کړو نو حضورپاک هغوی ته په اشاره سره دکيناستو حکم اوکړو).

او په صورت اولی کښې دَهغوی دليل دَمرض الموت واقعه ده.[3] چه هلته ابوبکر په شروع کښې (دَ امام په حيثيت) مونځ په ولاړه شروع کړې وو بيا هم دَ مانځه په وخت حضورپاک تشريف راوړو (دَحضرت ابوبکر رضی الله عنه په ځائی امام جوړشو). چونکه حضورپاک بيمار وو په دې وجه نی په ناسته باندې مونځ ورکړو. اوس چونکه دَ حضورپاک عليه السلام امامت دَ عذر په حالت دَمونځ په شروع کښې پيښ شو او په شروع کښې ابوبکر رضی الله عنه امام وو چه په ولاړه ئې مونځ ورکولو نولکه چه داسې صورت شو چه يو امام په ولاړه مونځ شروع کړو او په اثناء نماز کښې عذر پيښيدو دَ وجې نه کيناستو لهذا مقتديان ټول هم ولاړ پاتې شو.

دَحنابله دَ استدلال دا تقرير پخپله هغوی کړې دې.[4] مګر شيخ ابن الهمام رحمه الله دَهغوی دَ دې دليل تقرير په يوبل طرز باندې کړې دې[1]، هغه دا چه دَ فقه قاعده ده چه معذور په کوم يورکن کښې

---

[1]) عمدة الفقه لابن قدامة ص:۲۶المغنی: ۲/۲۲۳-۲۲۰فتح الباری: ۲/۱۷۶نيل الأوطار: ۳/۱۷۱.

[2]) المغنی:ج۲ ص ۲۲۳.

[3]) أخرجه البخاری فی صحيحه: ۱/۹۹ومسلم فی صحيحه: ۱/۱۷۸واللفظ للبخاری من حديث عائشة قالت: لما ثقل رسول الله صلی الله عليه وسلم جاء بلال يؤذنه بالصلاة فقال: مروا أبابكر أن يصلی بالناس. فقلت: يارسول الله صلی الله عليه وسلم، إن أبابكر رجل أسيف، وإنه متی ما يقم مقامک لا يسمع الناس، فلو أمرت عمر، فقال: مروا أبابكر يصلی بالناس، فقلت الحفصة: قولی له: إن أبابكر رجل أسيف، وإنه متی يقم مقامک لا يسمع الناس، فلو أمرت عمر، قال: إنكن صواحب يوسف، مروا أبابكر أن يصلی بالناس. فلما دخل فی الصلاة وجد رسول الله صلی الله عليه وسلم فی نفسه خفة، فقام يهادی بين رجلين ورجلاه تخطان فی الأرض حتی دخل المسجد. فلما سمع أبوبكر حسه، ذهب أبوبكر يتأخر. فأوما إليه رسول الله صلی الله عليه وسلم، فجاء رسول الله صلی الله عليه وسلم حتی جلس عن يسار أبی بكر، فكان أبوبكر يصلی قائماً وكان رسول الله صلی الله عليه وسلم يصلی قاعداً. يقتدی أبوبكر بصلاة رسول الله صلی الله عليه وسلم والناس مقتدون بصلاة أبی بكر.

[4]) المغنی لابن قدامة: ج۲ ص ۲۲۳.

اودریدو سره اداکولې شی هغه هم په ولاړه باندې اداکول فرض دی لهذا لکه چه په روایتونوکښې تصریح راغلله مګر ددې قاعدې تقاضا داده چه حضور پاك تشریف راوړلوسره په ولاړه باندې به تکبیرتحریمه اداکړې وی (خکه چه په دې باندې حضورپاك هغه وخت قادر وو) بیا به ناست وی نودحضورپاك مونځ هم په ولاړه سره شروع شوې بیا قعود شروع شوې. لهذا د ابوبکر رضی الله عنه امامت (په استدلال کښې) د ملاوولو ضرورت نشته دې.

په هرتقدیر د حنابله دلیل دادې چه په دې واقعه کښې دامام مونځ قیاماً شروع شو که هغه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د امامت په اعتبارسره وی لکه څنګه چه حنابله تقریر کړې دې یا پخپله دحضورپاك د امامت په اِعتبار سره لکه څنګه امام ابن الهمام رحمه الله ونیلی دی.

**په مذکوره مسئله کښې د جمهورو یوبل دلیل:** (په دې مسئله کښې د نص قرآنی نه علاوه) دجمهورو (یوبل) دلیل واقعهٔ مرض الموت دې. (د استدلال وجه دا ده چه) په دې کښې حضورپاك علیه السلام امام وو جالساً. اومقتدیان ټول ولاړ وو.

**حدیث د سقوط عن الفرس اوجمهور:** باقی د سقوط عن الفرس حدیث د هغوی د طرف نه مشهور جواب کوم چه امام بخاری رحمه الله هم اختیارکړې دې چه داحدیث منسوخ دې د مرض الموت په حدیث سره څکه چه دمرض الموت واقعه دحضورپاك د ژوند مبارك آخری واقعه ده. په دې وجه امام بخاری رحمه الله په دوو ځایونوکښې تصریح کوی. ((قال أبوعبدالله: إنما يؤخذ بالآخر، فالآخر من فعل رسول الله صلى الله عليه وسلم.....الخ))(۲)امام ابن حبان لیکلی دی چه مرض سقوط عن الفرس ۵هجری کښې شوې وه (۳)

**دمرض الموت دحدیث نه دجمهورو په استدلال باندې دامام ابن حزم رحمه الله نکته چینی کول:** لیکن امام ابن حزم ظاهری رحمه الله دلته (حدیث مرض الموت کښې) یوعجیبه بحث راپیدا کړو(۴) چه صحابه کرام رضی الله عنهم دمرض الموت په واقعه کښې دحضورپاك شاته ولاړوو. ددې تصریح کوم ځائی ده؟ په صحاح کښې ددې تصریح چرته نشته دې. صرف د حضرت ابوبکر رضی الله عنه متعلق قیاماً تصریح راغلې ده (۵) او (نور په هغه باندې قیاس کول صحیح نه دی څکه چه) هغه په وجه د مسمع تکبیر (اومکبر) کیدو مستثنی دې. لکه چه موقف (او په مانځه کښې د مصلی په مقام) په اعتبارسره هغه مستثنی اوساتلې شو څکه چه (حضور علیه السلام تشریف راوړونه پس) حضرت ابوبکر رضی الله عنه مقتدی شوې وو اودمقتدی موقف امام پسې شاته په صفوف مقتدین کښې کیږی. حالانکه په روایتونوکښې مصرح

---

(۱) فتح القدیر ج۱/۳۲۲.

(۲) د صفا تصریح بخاری کښې صرف یو ځائی: (۹۶/۱ قبیل باب متی یسجد من خلف الإمام) راغلې دې او دویم ځائی: ۹۵/۱ باب إنما جعل الإمام لیؤتم به. امام بخاری دنسخ طرف ته په دې الفاظوسره اشاره کړې ده: وصلی النبی صلی الله علیه وسلم فی مرضه الذی وفی فیه، بالناس وهوجالس. حافظ ابن حجر رحمه الله فتح الباری کښې: ۲۰۴/۲ تشریح اوتعلیق کولوسره لیکلی دی: أی: والناس خلفه قیاماً، ولم یأمر هم بالجلوس، کما سیأتی فدل علی دخول التخصیص فی عموم قوله: إنما جعل الإمام لیؤتم به.

(۳) صحیح ابن حبان: ۲۸۱/۳ کتاب الصلاة باب فرض متابعة الإمام.

(۴) المحلی: ۴۷/۳.

(۵) انظر التعلیق: ۱۰۷.

دي چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه دحضورپاک ﷺ په يوطرف کښېنې اودرېدو،[۱] دا خکه وو چه مکبر جوړېدو سره جمع دَ امام دَ انتقالاتونه خبروی دغه شان مونږ وايو چه دهغوی په ولاړه مونځ کول هم ددې مقصد دپاره وی.

امام ابن حزم رحمه الله هم دا دعوی کړې ده چه ښکاره هم دغه دی چه (مرض الموت په واقعه کښې) باقی ټول صحابه کرام به ناست وی خکه چه قصه سقوط عن الفرس کښې چه کله تاکنائې ووچه حضورپاک شاته په ولاړه اقتداء کونکودَ وجې هغوی ته دَ کيناستو حکم ورکړې شو) او ((إذا صلى الإمام جالساً، فصلوا جلوساً)) دا صريح امر اوريدلې وو نوبيا بعيد بلکه ناممکن ده چه ټول صحابه ددې خلاف عمل اوکړی اودمرض الموت په واقعه کښې بيا په دغه منهی اوممنوع باندې عمل کول اوساتی اوحضورپاک پسې شاته په ولاړه اقتداء کوی خکه چه: ((إذا صلى الإمام جالساً، فصلوا جلوساً))خلاف دَ رسول الله ﷺ نه نور څه څيز ثابت شوې نه وو. دکوم دَ وجې نه چه صحابه کرام رضي الله عنهم ددې مرض الموت په واقعه کښې دهغې خلاف عمل جاری اوساتی (پس ښکاره خوهم دغه دی چه نورو ټولو صحابه کرامو په دې واقعه کښې په ناسته باندې مونځ اوکړو نه چه په ولاړه).

دامام ابن حزم رحمه الله دې دعوی دَجمهورو په استدلال کښې يوه زلزله اچولې ده خکه چه دَ جمهورو سرمايه په دې مسئله کښې هم دغه مرض الموت قصه ده. هم داد نورو احاديثودپاره (په کوم کښې چه دامام جالس کيدو صورت کښې مقتديانو ته هم جلوساً دمونځ کولوامر اوکړې شو) هغه ناسخ جوړوی اوهم په دې باندې داقتداء قائم خلف الجالس دَ ثبوت انحصار دې (خو) امام ابن حزم وائی چه په مذکوره قصه کښې دَ صحابهٔ کرامو قياماً دَ اقتداء دَ سره هډو ثبوت نشته دې بلکه ظاهر حال ددې خلاف دې. کما مر آنفاً.

**دحافظ ابن حجر رحمه الله دَ جمهورو دَ طرف نه دَ دفاع کوشش:** دَ امام ابن حزم رحمه الله ددې دعوی خلاف خاتمة الحفاظ ابن حجر رحمه الله غوندې وسيع النظر شخصيت ډيرزياد جدوکد دَ ډيرې خوارنی او بليغ کوشش نه پس يومنقطع حديث کومو چه امام شافعی رحمه الله دَ ابراهيم نخعی رحمه الله نه روايت کړې دې پيش کړې په کوم کښې چه تصريح ده چه صحابه کرامو رضي الله عنهم حضورپاک پسې په ولاړه باندې مونځ اوکړو.[۲]

بيا دحضرت عطاء بن رباح رحمه الله مرسل هم ددې موافق پيش کړې دې [۳] خکه چه دهغوی په نيز (يعنی دَ شافعيه په نيز) علي الانفراد نه منقطع حجت دې نه مرسل[۴] مګر دَ يوبه بل سره تائيد اوشو په دې وجه قابل دَ استدلال شو. خير دَ حافظ ابن حجر رحمه الله په خبره خو مونږ قناعت کولې شو ليکن دابن حزم رحمه الله په شان سخت مزاج په چا کښې چه دومره تاز دې چه يود لونی نه لونی سرې نه پريږدی چنانچه

---

[۱]) كما أخرجه مسلم في صحيحه: ۱۷۹/۱من طريق عيسى: فجلس رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلي بالناس، وأبوبكر إلى جنبه. (وانظر التعليق: رقم: ۱۰۷).

[۲]) فتح الباري: ۱۷۷/۲كتاب الصلاة باب إنما جعل الإمام ليؤتم به.

[۳]) أخرجه عبدالرزاق في مصنفه: ۴۵۸/۲عن ابن جريج عن عطاء قال:......فذكر الحديث وفيه: فصلى النبي صلى الله عليه وسلم للناس قاعداً، وجعل أبابكر بينه وبين الناس، وصلى الناس وراءه قياماً، فقال النبي صلى الله عله وسلم: لو استقبلت من أمري ما استدبرت، ما صليتم إلا قعوداً...... ما كان يصلي قائماً فصلوا وإن صلى قاعداً فصلوا قعوداً.

[۴]) مقدمه ابن الصلاح ص: ۲۰۷شرح تحفة الفكر ص: ۵۱-۵۰.

مشهوره ده چه دَ حجاج توره اود ابن حزم رحمه الله قلم برابر دي داسي سړي په دي منقطع او مرسل باندي قناعت او سکون څنګه کولي شی؟ خصوصاً دَ داسي حديث دَ نسخ دپاره کوم چه متفق عليه دي يعني دَ سقوط عن الفرس حديث، بيا چه دکوم مرسل حواله ورکړي شوي ده هغه دَ عطاء بن ابی رباح رحمه الله مرسل دي چه په اتفاق سره په مراسيل کښي ديرزيات ضعيف ګڼړلي شي.(۱)

**دَ امام ابن حزم رحمه الله نوره دعوى:** دې نه پس امام ابن حزم رحمه الله يو ډيره لويه مؤثره خبره ليکلي ده .(۲) چه په دې مسئله کښي دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم تعامل ترکومي پوري مونږ ته ملاويږي دَ لټون نه پس صرف دَ څلورو صحابه کرامو رضي الله عنهم عمل ملاؤشوي دې. حضرت جابر بن عبدالله، حضرت ابوهريره، حضرت اسيد بن حضير اوحضرت قيس بن قهد رضي الله عنهم په دوی کښي دَ دوو دريو واقعه دحضورپاک دَ وصال نه پس ده اود دغه څلورو عمل هم دغه نقل دې چه هغوی دَ عذر دَ وجې نه په ناسته باندي مونځ اوکړو اودوی پسي شاته ټولو مقتديانو په ناسته باندي مونځ اوکړو.(۳)

دې ليکلو سره امام ابن حزم رحمه الله دعوى کوی چه دَدې خلاف دَ يوصحابى عمل يا دَهغوی په دې عمل باندي دَ يو صحابى انکار په صحيح سند سره خوڅه چه په ضعيف سندسره نی هم ثابت کړنی.(۴) يقين دې چه تاسو داسي نه شئی ثابتولي حالانکه دَهغوی دا عمل چرته دَ يوکور په يوګوټ کښي نه دې شوي چه چاته خبر نه دې شوي دَ جمع په مانځه کښي واقع شوي په کومه کښي چه څومره صحابه او تابعين رحمهم الله به شريك شوي وی ليکن په دې باندي چا انکارنه دې کړي نودا په منزله دَ اجماع سکوتی شوه.(۵)

دَ ابن حزم رحمه الله دَ ټولو دلائلو اودعوى جواب ماسره موجود دې. مګر دا آخری خبره کومه چه هغه کړي يعنی تعامل صحابه، ترننه پوري ماته دَدې متعلق څه تسلی ورکونکي جواب ملاؤ نه شو دَحضرت

---

(۱) شرح علل الترمذى ص: ۱۷۲، ۱۷٤، ۱۹۰وتهذيب الكمال: ۵۳/۱۳(ترجمة عطاب ابى رباح).

(۲) المحلى لابن حزم: ۳/۵۰-٤۹. علامه ابن حزم رحمه الله متوفی ٤۵٦هجری نه ډير وړاندې حافظ ابن حبان رحمه الله متوفی ۳۵٤هجری تقريباً هم دغه خبره ليکلي ده چنانچه هغه په خپل صحيح ۳/۲۷۲کښي ليکلى دى: فى هذا الخبر واضح أن صلاة المامومين قعوداً إذا صلى إمامهم قاعداً من طاعة الله جل وعلا...... وهو عندى ضرب من الإجماع الذى أجمعوا على إجازته. لأن من أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم أربعة أفتوا به: جابر بن عبدالله، وأبو هريرة، وأسيدبن حضير،وقيس بن قهد.والإجماع عندنا إجماع الصحابة......ولم يروعن أحد من الصحابة خلاف لهؤلاء الأربعة، لا بإسناد متصل منقطع، فكأن الصحابة أجمعوا على أن الإمام أذا صلى قاعداً كان على المامومين أن يصلوا وقعوداً......

(۳)علامه ابن حزم رحمه الله دَ حضرت جابر رضي الله عنه او حضرت اسيد بن حضير رضي الله عنه عمل خو نقل کړو مګر دَ ابوهريره رضي الله عنه عمل ئې نقل نه کړو بلکه قول يعنی دَهغه فتوی ئې نقل کړي ده. بل دَ قيس بن قهد رضي الله عنه خپل عمل نه دې دَهغه په روايت سره دَهغه دَمحلې دَ يوامام عمل ئې نقل کړي دې. (اوګورئی المحلى)، وقال الحافظ فى الفتح: ۲/۱۷٦كتاب الصلاة باب إنما جعل الإمام ليؤتم به:...... روى عبدالرزاق فى مصنفه: ۲/٤٦۲بإسناد صحيح عن قيس بن قهد: أن إماما لهم اشتكى على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: فكان يؤمنا وهوجالس ونحن جالس. وروى ابن منذر بإسناد صحيح وابن أبى شيبة فى مصنفه: ۲/۲۲۵عن أسيد بن حضير: أنه كان يؤم قومه، فاشتكى، فخرج اليهم بعدشكواه فصلى بهم قاعداً وهم قعود...وروى ابن شيبة فى مصنفه: ۲/۲۲٤بإسناد صحيح عن جابر: أنه اشتكى، فحضر ت الصلاة، فصلى بهم جالساً وصلوا معه جلوساً. وعن أبى هريرة أنه أفتى بذلك، وإسناد صحيح أيضاً.

(۴) داخبره دَابن حزم رحمه الله په کلام کښي نه ده ملاؤشوي البته حافظ ابن حبان رحمه الله داسي دعوى کړي ده: انظر التعليق: ۱۲۲.

(۵) دا دَآخير حصه دَ شيخ الاسلام رحمه الله اضافه ده دَابن حزم رحمه الله کلام نه دي.

انورشاه کشمیری رحمه الله په ژوند کښې ما څوخله دهغوی نه دَدې متعلق تپوس اوکړو مګر دهغوی په شان وسیع النظر شخصیت هم لکه چه دَعلومو روانه کتب خانه ورته ونیلی شی دَدې خلاف هیڅ نقل پیش نه کړې شو.[1] بهرحال دا څیز واقعی دَ خلجان موجب دې

باقی دَاامام ابن حزم رحمه الله رومبې مطالبه چه مرض الموت کښې صحابه کرامو حضورپاك پسې شاته په ولاړه مونځ کړې وو دَ دې تصریح چرته ده؟ نودَمودو پورې ما لټول جاری اوساتل چه یومتصل روایت دَ احتجاج قابل دَدې متعلق ملاؤ شی خوماته ملاؤنه شو هم په دې حالت کښې ما په فتح الملهم کښې په دې مقام لیکلی وو چه تردغه وخته پورې دَ هغې دَ چهاپ نوبت نه وو رَاغلې چه مَا دَ امام شافعی رحمه الله الرساله اوکتله کومه چه په اصول فقه کښې ده او دَ امام شافعی رحمه الله کتاب الأم سره په مصرکښې چهاپ شوې ده. په هغې کښې هغه هم دغه دَمرض الموت حدیث نقل کړې دې [2]په دې کښې امام رحمه الله په خپل اسناد سره موصولاً روایت کړې دې چه صحابه کرامو قیاماً دَحضورپاك اقتداء اوکړه.[3]

دَدې روایت رجال ثقات دی او اسناد مستقیم دی. البته په دې کښې یوه خبره ډیره مستبعد معلومیدله چه دا موصول روایت رسالهٔ امام شافعی رحمه الله کښې موجود دې. لیکن حافظ رحمه الله ته دَدې خبر اونه شو داډیره لرې خبره ده. مګر چه په کومه چهاپه خانه کښې دا رساله چهاپ شوې ده هغوی دَ دغه استبعاد ازاله اوکړه چه ناشر په حاشیه باندې اولیکل چه بعض نسخوکښې دا روایت ساقط شوې دې نواوس دَ استبعاد څه خبره باقی پاتې نه شوه ځکه چه کیدې شی حافظ رحمه الله ته هم هغه نسخه ملاؤ شوې وی په کومه کښې چه دا روایت موجود نه وو.[4]

[1] حافظ ابن حجر رحمه الله هم دَ ابن حبان رحمه الله او ابن حزم رحمه الله دا دعوی اومنله دانی رد نه کړې شوه. اوګورئی فتح الباری: ۱۷۷/۲.

[2] انظر الرساله ص: ۲۵۳-۲۵۲.

[3] الرسالة په روایت کښې خودَصحابه کرامو رضي الله عنهم قیاماًداَقتداء تصریح خورشته دې لیکن په دې کښې دا روایت متصل نه دې بلکه معلق دې. چنانچه دَامام شافعی رحمه الله عبارت داسې دې:"... وذكر إبراهيم النخعي عن الأسود بن يزيد عن عائشة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم وأبي بكر مثل معنى حديث عروة: أن النبي صلى الله عليه وسلم قاعداً . وابوبكر قيامًا يصلي بصلاة، وهم وراءه قياماً. نودا روایت امام شافعی رحمه الله دَ ابراهیم نخعی رحمه الله نه تعلیقاً ذکرکړې دی، دَ الرسالة بعض نسخوکښې دا روایت سند متصل سره مروی دې چه: قال الشافعي رحمه الله: أخبرنا يحيى بن حسان عن حماد بن سلمة عن هشام بن عروة عن أبيه عن عائشة رضي الله عنها، مثل حديث مالك، وبين فيه أن قال: صلى النبي صلى الله عليه وسلم قاعداً، وابوبكر خلفه قائماً، والناس خلف ابي بكرقيامًا. حاشية الرسالة ص: ۲۵٤. خود بعض نخسو ددې جز باره کښې دَ الرسالة نوموړې محقق محدث کبیر علامه احمدشاکر رحمه الله لیکی: وهذه الزيادة ليس لها أصل في كتاب الرسالة، فلا توجدفي أصل الربيع، ولم تذكرفي النسخة المقروءة على ابن جماعة، ولا في غيرها.....

[4] لکه څنګه چه پورته تیرشو په صحیح نسخوکښې دا روایت موصولاً موجودنه دې

دَدې نه پس ما نصب الرایه اوکتله نوهغوی هم دا روایت په متعدد طرق سره موصولاً روایت کړې دې (١) اوسندنې مستقیم دې. بیا دَ امام حازمی رحمه الله په کتاب الناسخ والمنسوخ کښې هم دا روایت موجود دې.(٢)

بهرحال اوس خودا تسلی اوشوه چه دَ مرض الموت په واقعه کښې صحابه کرام رضی الله عنهم دَ حضورپاك شاته په ولاړه مونځ اوکړو په دې وجه دَامام بخاری رحمه الله په شان وسیع النظر امام مکرر تصریح کړې ده: «إنما يؤخذ بالآخر فالآخر» معلومیږی چه دَهغوی په نیز داخبره بالکل محقق وه چه صحابه کرامو رضی الله عنهم په دې واقعه کښې هم په ولاړه باندې مونځ کړې دې.

**دَ جمهورو په مسلک باندې یو څو اشکالات:** ① دَ «إذا صلى الإمام جالساً فصلوا جلوساً» قائلین وائی چه په واقعه دَ مرض الموت کښې نه دَحضورپاك دَ طرف نه «قیاماً» مونځ کولو څه تلقین شته نه څه بل قول. او «په خلاف دَدې» په سقوط عن الفرس قصه کښې «إذا صلى الإمام جالساً فصلوا جلوساً» «په ذریعه» یوکلی قانون او عام ضابطه بیان شوې ده. اوعموماً علماء، خصوصاً حنفیه دَ قول اوکلی قانون رعایت او تحفظ زیات کوی په نسبت دَ واقعاتو جزئیه. نو «دلته» ضابطه اوکلی قانون او قول خو «إذا صلى الإمام جالساً فصلوا جلوساً» دې اودَدې په مقابله کښې چه کوم څیز پیش کولې شی «یعنی دَ مرض الموت قصه» هغه څه قانون او قول نه دې صرف یو واقعه جزئیه ده په کوم کښې چه دَ خصوصیت وغیره احتمال قائم دې. لهذا دَعام ضابطې په ځائې ساتلو سره دَ مرض الموت په واقعه کښې تاویل اوکړنې یا دا په خصوصیت باندې محمول کړنې.

اوداخبره دَخصوصیت تائید کوی چه په دې واقعه کښې بعض عمل داسې شوې چه په اتفاق سره به په خصوصیت باندې محمول کولې شی.(٣) هغه دا چه استخلاف امام «یعنی دَامام هم په مانځه کښې دویم سړې خپل خلیفه جوړول» یا خودَ حدث دَ وجې نه کیږی یا مقدار مایجوز به الصلاة کولونه وړاندې حصر «یعنی دَقراءت نه عاجز» کیدودَ وجې نه، بغیردَ څه عذرنه استخلاف په یو مشهور مذهب

---

(١) نصب الرایه کښې نفس حدیث مرض الموت په موصول طرق سره موجود دې مګر په هغې کښې قیام ماموین تصریح نشته دې. دَ قیام ماموین دَ تصریح والا روایت صرف دَ بیهقی معرفة السنن والآثار په حواله سره راغلې دې مګر امام زیلعی رحمه الله دَدې سند نه دې ذکرکړې. اوګورئی: نصب الرایة: باب الإمامة. الحدیث الحادی والسبعون ٢/٤٦-٤١.

(٢) دامام حازمی رحمه الله په روایت کښې صرف دَ قیام ابی بکر رضی الله عنه تصریح ده چنانچه دَهغې الفاظ دادی: .... فجاء رسول الله صلى الله عليه وسلم، حتى جلس عن يسار أبي بكر. قالت: عائشة :فكان رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلي بالناس جالساً، وأبوبكر قائم. يقتدي أبوبكر بصلاة رسول الله ﷺ والناس تقتدون بصلاة أبي بكر. قال الحازمي رحمه الله: هذا حديث صحيح ثابت. الاعتبار في الناسخ والمنسوخ للحازمي: ١/٤١٦.

(٣) كمال قال الطحاوي في شرح معاني الآثار: ١/٢٧٣:.....ويذهب محمدبن الحسن إلى أن ماكان من صلاة رسول الله صلى الله عليه وسلم قاعداً في مرضه بالناس وهو قيام: مخصوص. لأنه قد فعل فيها ما لا يجوز لأحد بعده أن يفعله من: أخذه في القراءة من حيث انتهى أبوبكر. وخروج أبي بكر من الإمامة إلى أن صار مأموماً في صلاة واحدة. وهذا لا يجوز لأحد من بعده باتفاق المسلمين جميعًا. فدل ذلك على أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قد كان خص في صلاته تلك بما منع غيره.

كښې جائز نه دي. چنانچه درمختار[1] کښې چه چرته د استخلاف مسئله بيان کړه چونکه دا واقعه (د مرض الموت) د قواعد خلاف وه په دې وجه هغوی دا تاويل اوکړو چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته به حصر شوې وی (په دې وجه د حضورپاک د هغه په ځائې امام جوړشو) مګر دا ځيز د روايت نه چرته نه ثابتيږي لهذا لامحاله په دې واقعه کښې استخلاف بغير د عذر نه به په خصوصيت باندې محمول کولې شی. دغه شان فاتحه کوم چه رکن يا واجب ده د دې ټوله يا څه حصه د حضورپاک نه فوت شوې وه ځکه چه حضورپاک خونه د ابوبکر رضي الله عنه اقتداء اوکړه چه د هغه قراءت حکماً د حضورپاک په حق کښې قراءت اوګنړلې شی بلکه حضورپاک راتلو سره پخپله امام جوړشو اونه پخپله حضورپاک هغه فوت شوې فاتحه اولوستله بلکه چه د کوم ځائې نه ابوبکر رضي الله عنه قراءت پريخودې وو هم د هغه ځائې نه رسول الله صلی الله علیه وسلم شروع کړو لکه چه د رواياتونه ثابته ده.[2] نو لامحاله به داهم په خصوصيت باندې محمول کولې شي. ياحضرت ابوبکر رضي الله عنه چه د حضورپاک طرف ته ولاړ وو.[3] داهم څه د خصوصيت شان لرې ګنې ده له د مقتديانو په صف کښې اودريدل وو.

په دې ټولو خبرو باندې د غور کولونه دا ځيزواضح کيږي چه (د مرض الموت واقعه کښې) غالباً د صديق اکبر رضي الله عنه امامت بالکليه نه دې نظر اندازکړې شوې بلکه په يوه درجه کښې د څه وجې نه د هغې رعايت هم پاتې دې. لکه داسې ګنړل پکاردی چه اصل امام خو هم حضورپاک وو مګر د حضرت ابوبکر رضي الله عنه امامت هم بالکليه نظر انداز نه کړې شو بلکه د صديق اکبر رضي الله عنه امامت د حضورپاک امامت يو بل کښې مندمج شوې وو. هم په دې وجه حضرت ابوبکر رضي الله عنه د مقتديانو د صف نه وړاندې په موقف امام کښې پاتې شو. اوکله چه د هغوی د امامت څه رعايت پاتې شو نو د هغه د قراءت هم اعتبار پاتې شو. په دې تقدير باندې د حضورپاک نه فاتحه ټوله يا څه جز فوت کيدل هم لازم نه راځی ځکه چه د صديق اکبر رضي الله عنه قراءت حکماً د حضورپاک قراءت شو.

الغرض د صديق اکبر رضي الله عنه امامت ترپوحده پورې مرعی (اومعتبر) پاتې شوبالکليه غير معتبر اونه ګرځولې شو. چنانچه د رواياتو الفاظ هم دې طرف ته څه اشاره کوی مثلاً صحابه کرام رضي الله عنهم فرماتی «والناس يصلون بصلاة أبي بكر رضي الله عنه»[4] «يقتدي الناس بصلاة أبي بكر رضي الله عنه. رواه مسلم»[5] لکه چه دې الفاظو کښې تاويل اوکړې شو چه مراد دادې خلقو به د ابوبکر رضي الله عنه تکبيرات اوريدو سره انتقالات کول.[6] مګر ظاهر لفظ خوهم دې طرف ته اشاره کوی چه د ابوبکر رضي الله عنه امام د قوم په حق کښې من وجه اخير پورې قائم پاتې شو اودا د حضورپاک خصوصيت وو چه حضورپاک راغلو د هغوی

---

[1] ۶۰۴/۱.
[2] أخرجه احمدفي مسنده: ۲۰۹/۱ من طريق أرقم بن شرحبيل عن ابن عباس، عن عباس بن عبدالمطلب: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: في مرضه: مروا أبابكر يصلي بالناس..... الحديث، وفيه: ثم جلس رسول الله صلى الله عليه وسلم إلى جنب أبي بكر، فاقترأ من المكان الذى بلغ أبوبكر رضى الله عنه من السورة (قال محققوالكتاب: صحيح لغيره) وأخرجه أبويعلي الموصلي في مسنده رقم الحديث: ۶۶۷۴، ۶/۶ والدارقطني في سننه : ۳۸۲/۱ كتاب الصلاة باب صلاة المريض جالساً بالمأمومين وأخرجه ابن ماجة في سننه ص:۸۷ مطولاً، من حديث ابن عباس به
[3] انظر التعليق رقم: ۱۰۷، ۱۱۷.
[4] أخرجه مسلم في صحيحه: ۱۷۸/۱.
[5] ۱۷۹/۱.
[6] فتح الباري: ۱۵۶/۱ كتاب الأذان باب حدالمريض أن يشهد الجماعة، المسوى شرح الموطا: ۱۷۳/۱.

امام جوړشو. اوس چه د خلقو په حق کښې د صديق اکبر رضي الله عنه امامت يوشان سره اومنلې شو نو وينا کونکې ونيلې شى چه ابوبکر رضي الله عنه خو مونځ شروع کړې هم وو په ولاړه په دې وجه باقى مقتديانوله هم په ولاړه پاتې کيدل پکاروو. (لهذا د دې حديث نه استدلال چه دامام جالس کيدو په صورت کښې مقتدى به هم په ولاړه مونځ کوى صحيح پاتې نه شو) يوه خبره خوداده.

② دويمه خبره داده چه شيخ ابوالحسن سندهى رحمه الله وائى(١) چه «إذا صلى الإمام جالساً، فصلوا جلوساً» دا څه مستقل قاعده اومستقل مسئله نه ده بيان کړې بلکه دانى په يو بله ضابطه باندې متفرع کړې ده: يعنى: «إنما جعل الإمام ليؤتم به» دا معنى اتمام (اوحکم د اقتداء) باندې فاء تفريعيه سره يوڅو څيزونه متفرع کړل. دغه ټولونه يو دادې چه «فإذا صلى الإمام جالساً، فصلوا جلوساً» نوچه کله هغه علت متفرع عليها يعنى د امامت وظيفه اوائتمام اوس هم موجود دې نو په دې باندې متفرع کيدونکې څيز هم باقى پاتې کيدل پکاردى ګنى د دې هيڅ معنى نشته چه علت خو دې هم هغه شان باقى پاتې شى اودهغې اثر دې په هغې باندې متفرع نه وى.(٢)

③ دريمه خبره داده چه سقوط عن الفرس په واقعه کښې کله چه خلقو په ولاړه اقتداء کړې وه نو د مانځه نه پس حضور پاك اوفرمائيل: «إن كدتم آنفاً تفعلون فعل فارس والروم»(٣).

يعنى ستاسو په دې فعل کښې تشبه ده د فارس او روم (والو) د عمل سره (ځکه چه دهغوى بادشاه ناست وى او خلقو دهغوى په مخکښې ولاړ وى) نو (د امام په ناسته باندې دمونځ کولو په وخت د مقتديانو په ولاړه باندې دمونځ کولو په صورت کښې) دا تشبه اوس هم باقى ده لهذا هغه ممانعت هم هغه وخت باقى پاتې کيدل پکاردى.

**ددې اشکال دشاه ولى الله رحمه الله دطرف نه جواب** دَدې آخرى خبرې باره کښې شاه ولى الله رحمه الله ليکلى دى چه کوم وخت اسلامى اصول پوره واضح او مستقر شوى نه وو نوترهغه وخته پورې د دغه تشبه نه دبچ کيدلو دپاره رسول الله صلى الله عليه وسلم دا فرمائيلى ووچه «فإذا صلى الإمام جالساً، فصلوا جلوساً» اوس چه اسلامى اصول بالکل مستقر مستحکم او واضح شوى نو چه په مانځه کښې کوم اصل حکم وو (يعنى) ﴿ وَقُومُوا

---

(١) ولفظه : ثم لا يخفى أنه صلى الله عليه وسلم جعل القعود الإمام من جملة الاقتداء به حكم ثابت غير منسوخ بالاتفاق، فينبغي أن يكون القعودعند قعود الإمام كذلك، وأيضاً قد أشار صلى الله عليه وسلم إلى علة تحريم القيام عند قعود الأمة بأنه يشبه تعظيم الائمة في الصلاة كتعظيم فارس والروم ملوكهم، والصلاة ليست محلاً لتعظيم غير الله، ولا شك أن هذه العلة دائمة، فينبغي أن يدوم معلولها، إذالأصل دوام المعلول عند دوام العلة، والله تعالى أعلم: حاشية السندي على صحيح مسلم: ١٨١/١-١٨٠.

(٢) مطلب دادې چه حضورپاك يو عام ضابطه اواصول بيان کړل چه دامام اقتداء ضرورى ده. ددې اصل نى يوڅو فروعات بيان کړل دکوم نه چه يو دادې چه دامام په ناسته باندې دمونځ کولو په صورت کښې دې مقتديان هم په ناسته باندې مونځ اوکړى ځکه چه مذکوره اصل يعنى د امام اقتداء هم په دې صورت کښې ده اودا اصل اود اقتداء حکم د امام اوس هم موجود دې چه د ټولو په نيز دامام اقتداء ضرورى ده لهذا ددې دا فرع ((إذا صلى الإمام جالساً، فصلوا جلوساً)) هم موجود کيدل ضرورى دى ګنى لازم به راځى چه اصل خو دې خوموجود وى اوددې فرع دې نه وى.

(٣) رواه مسلم في صحيحه: ١٧٧/١.

لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ۝﴾ (البقرة: ٢٣٩) هم هغه واپس راوګرځيدو او دهغه تشبه نه اغماض اوتسامح اوكړې شو ځكه چه اسلامى امور د نورو امورو نه بالكل واضح اومتميز شوى دى (١).

مګر اول خو په دې كښې هم دغه كلام دې چه مسئله دتشبه اوس هم باقى ده بالكليه ختمه شوې نه ده. اوكه چرې دا اومنلې شى چه اسلامى اصول مستحكم كيدو نه پس دتشبه په مسئله كښې څه اغماض كړې شوې يا هغه معتبر پاتې نه شو لهذا اوس ﴿وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ۝﴾ باندې عمل كول پكار دى نو په دې كښې كلام دادې چه د ﴿وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ۝﴾ (حكم) اوس هم دعذر د وجې نه په اتفاق سره ساقط كيږى (چنانچه د معذور دپاره په ناسته مونځ كول جائزدى) اوپه مسئله مانحن فيه كښې چه مونږ د مقتديانونه قيام ته ساقط وايو داهم دعذر دوجې نه دى. په دې ځانې كښې عذر دادې چه امام ناست دې مونځ كوى اوحديث شريف دې مشاكلت صورى ته (يعنى د مقتديانو د ناست امام مشابهت اختيارونكى ته) دامامت وظيفه اوانتمام (اومقتضاء اقتداء) نه ګرځوو چه (اوفرمانيلې شو) ((فإذا صلى الإمام جالساً فصلوا جلوساً)) نولكه چه يوخارجى سبب دسقوط قيام دپاره نه دې مګر دمعنى انتمام او وظيفه داقتداء پوره كولودپاره مقتديانوله كيناستل پكار دى (٢).

چنانچه دا اوګورنى چه دامام سهو موجب وى په مقتديانو باندې د سجده سهودپاره. حالانكه دمقتديانونه هيڅ سهو نه وى شوې. اوكه چرې ځان له دمقتديانونه سهو هم اوشى بيا هم په هغوى باندې سجده سهو (واجب) نه وى. دا ټول وظيفه انتمام (اوداقتداء تقاضې) پوره كولو د پاره وى. دغه شان كه چرې مسئله مانحن فيه كښې بغير د څه خارجى سبب نه محض وظيفه د انتمام (او مقتضاء د اقتداء) پوره كولودپاره دمقتديانونه نه قيام ساقط اومنلې شى په وجه ددې حديث (سقوط عن الفرس) نوڅه استبعاد دې؟

دې نه علاوه يوبل څيز دادې چه نص كښې خو ﴿وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ۝﴾ مطلقًا راغلې دې بيا آيا په نفل كښې هم قيام فرض دې؟ (ښكاره خبره ده چه فرض نه دې) حالانكه په (نفل كښې هم) باقى ټول اركان بحالها باقى دى. نودا امر منصوص ((قوموا)) عام مخصوص منه البعض شو اجماعًا، نو اوس دوباره په خبر واحد سره ددې (نور) تخصيص كيدې شى اوهغه خبر هم دغه حديث (سقوط عن الفرس) دې (ددې په وجه دامام د جالس كيدو په وخت به دمقتديانونه د قيام تخصيص كوى اووانى به چه په دې حالت كښې دخبرواحد د وجې نه قيام ساقط دې لهذا ددې نص قرآنى نه د جمهورو استدلال صحيح نه دې).

**د دلائلو په رڼاكښې د ابن حزم رحمه الله د مسلك قوت:** غرض داكه د دلائلو په اعتبارسره په انصاف باندې غوراوكړې شى نود امام ابن حزم رحمه الله مسلك قوى معلوميږى (٣) ځكه چه هغوى دا خبره

---

(١) حجة الله البالغة ٢٧/٢.

(٢) أشار إلى هذا الإمام ابن دقيق العيدفى إحكام الأحكام: ٢٠٤/١بقوله: قوله وإذا صلى جالسًا فصلوا جلوساً. أخذ به قوم، فأجازوا الجلوس خلف الإمام القاعد للضرورة مع قدرة المأمومين على القيام، وكأنهم جعلوا متابعة الإمام عذراً فى إسقاط القيام

(٣) ابن حزم رحمه الله اول هم دنورو ډيرو علماؤ مثلاً حافظ عبدالرزاق حافظ ابن خزيمه امام ابن المنذر حافظ ابن حبان رحمهم الله وغيره هم ددې قول طرف ته تلى دى. اوګورنى مصنف عبدالرزاق: ٤٦٣/٢صحيح ابن خزيمه:٣/٥٧-٥٣ صحيح ابن حبان: ٢٦٩،٢٨٤/٣فتح البارى:٢/١٧٧-١٧٦. وقال عبدالرزاق:ت:٢١١فى مصنفه: مارأيت الناس إلا على أن الإمام إذا صلى قاعداً صلى من خلفه قعوداً، وهى سنة من

وراندي کړي ده چه په تعامل د صحابه کرامو ﷺ صرف د څلورو صحابه کرامو عمل په دې مسئله کښې ملاويږي او د څلورو وارو عمل هم دغه نقل دې چه (هغوی) «فإذا صلی الإمام جالساً، فصلوا جلوساً» باندې عمل کړې. د دې خلاف د يوصحابی هم عمل نقل نه دې ګنی د دغه څلورو وارو په عمل باندې به چرته د يوصحابی انکار هم نقل نه دې. لهٰذا دا يوقسم اجماع شوه. تردې چه د امام ابن حزم رحمه الله دعوی بالکل صحيح معلوميږي ځکه چه مونږ ته ترننه پورې د دې خلاف څه يو نقل هم ملاؤ نه شو. نودا يوڅيز دې چه زړه ته لګيدونکې دې. بلکه امام ابن حزم رحمه الله خو وړاندې تلو سره د تابعينو «فإذا صلی الإمام جالساً، فصلوا جلوساً» باندې د اجماع دعوی کړې ده اوليکلی دی چه د ټولو نه اول چا د «فإذا صلی الإمام جالساً، فصلوا جلوساً» خلاف فتوی ورکړې ده هغه مغيره بن مقسم رحمه الله وو په کوفه کښې هم د دې نه دا مسئله حماد بن سليمان رحمه الله واخسته او د حماد رحمه الله نه امام ابوحنيفه رحمه الله واخسته. (١)

ليکن داخبره (چه د ټولو نه اول دا فتوی مغيره ورکړه)، د ابن حزم غلو ده ځکه چه (که چرې هم دغه خبره ده نو) په حجاز کښې امام شافعی ته (دامسئله) بيا د کوم ځائی نه ملاؤشوه؟ بلکه روستو اکثر علماء هم د دې قائل شو چه (د امام جالس کيدو په صورت کښې) دې مقتدی په ولاړه باندې مونځ کوی.

الحاصل د ابن حزم رحمه الله غلو پريخودو سره د هغوی رومبی خبره ډيره قوي زور داره او مؤثر ده چه صرف د څلورو صحابه کرامو عمل ملاؤ شو. (٢) او د څلورو وارو عمل بغيرد خلاف اوبغيرد نکير هم دغه نقل دې؟ (چه هغوی پسې شاته مقتديانو په ناسته مونځ اوکړو)، حالانکه دامعامله د جمع وه اوپه هغې کښې د دوو دريو واقعه د حضورپاك نه د پس ده.

**پدې مسئله کښې د حافظ ابن حجر رحمه الله مسلک اودهغه دليل:** چنانچه حافظ چه په دې مسئله باندې بحث کړې دې (٣) هلته د ډيراوږدو خبرو اترونه پس په آخره کښې عاجزکيدو سره پخپله د يو داسې قول قائل شوې دې چه د يومذهب هم نه دې. هغوی فرمائی چه (د امام جالس کيدو په صورت کښې) د مقتدی قيام کول جائز دی اوجلوس مستحب دې اوونی ونيل چه په دې سره به په ټولو احاديثو کښې تطبيق اوشی.پداسې توګه چه مرض الموت واقعه د جواز د بيان د پاره (قيام مقتدی مع جلوس الامام) باندې محمول دې او «فإذاصلی الإمام جالساً، فصلوا جلوساً» امر د استحباب د پاره دې. اود دې د پاره حافظ صاحب يو تائيد هم پيش کړې دې هم دغه د عطاء (بن ابی رباح) مرسل، کوم چه واقعه د مرض الموت سره متعلق دې اود کوم تذکره چه اول هم يوځل راغلې ده (٤) په دغه مرسل کښې دا جز هم دې چه د مانځه نه پس حضورپاك اوفرمائيل (لواستقبلت من أمري ما استدبرت ما صليتم إلا قعوداً)، يعنی ما چه روستو کومه خبره اوکتله که چرې دغه خبره ماته اول معلومه شوې وه نوتاسو به هم په ناست باندې مونځ

---

غير واحد. اوعلامه ابن الهمام رحمه الله فتح القدير کښې: ١/٣٢١مسلك احمدبن حنبل رحمه الله ته أنهض من جهة الدليل ونيلې دې.

(١) دا دعوی ابن حزم رحمه الله په کلام کښې ملاؤ نه شوه البته حافظ ابن حبان رحمه الله په خپل صحيح کښې ٢/٢٧٣ کښې داخبرې ليکلی دی.

(٢) انظر التعليق: رقم : ١٢٣.

(٣) فتح الباری: ١٧٧/٢کتاب باب أنما جعل الإمام ليؤتم به.

(٤) مقدمه ابن الصلاح ص: ٢٠٧شرح نخة الفکر: ٥١-٥٠

كولو. بيا فرمائي «فإذا صلى الإمام جالساً، فصلوا جلوساً» نو (دې جزئه) اوس يوه بله خبره راوځي چه حضور پاك ﷺ مرض الموت كښې هم د مقتديانو په حق كښې قيام ناخوښه كړو او جلوس ته ئې ترغيب وركړو

حافظ صاحب رحمه الله د دې نه د خپل قول تائيد داسې راواخستو چه حضور پاك ﷺ (د مانځه) د راكړځولو حكم ورنه كړو. كه چرې (د امام د جلوس په وخت په مقتديانو باندې) جلوس واجب وې نو خامخا به ئې د مونځ راګرځولو حكم وركولو صرف دومره ئې اوفرمائيل چه «فإذا صلى الإمام جالساً، فصلوا جلوساً» نو كم نه كم (د امام د ناستې په صورت كښې د مقتدي كيناستل) مستحب كيدل ضرور پكار دي

**د مذكوره دليل جواب:** ليكن اول دا مرسل د (عطاء بن رباح رحمه الله) دې او بخپله حافظ صاحب رحمه الله تهذيب التهذيب كښې د عطاء مرسل ته د ټولو مراسيل نه ضعيف وئيلي دي.[1] بل (فرض كړه كه دا تسليم هم كړې شي نو بيا هم) غالب ګمان دا دې چه دا جمله «لو استقبلت من أمري ما استدبرت ما صليتم إلا قعوداً» به ئې هم د سقوط عن الفرس په واقعه كښې فرمائيلې وي ځكه چه دې واقعه كښې اوله ورځ صحابه كرامو په نفل كښې په ولاړه اقتداء كړې وه. هغه وخت حضور پاك څه نه وو فرمائيلي. بيا په دويمه ورځ فرضو كښې هم صحابه ولاړوو حضور پاك منع كړل.[2] حضور پاك به فرمائيلي وي چه روستو ما ته كله د تشبه وغيره خيال پيدا شو كه چرې دغه خيال اول راغلې وې نو تاسو به په اوله ورځ هم مونځ په ناست كولو يعنې هم په هغه ورځ به مې د اودريدو نه منع كولې. نو دا مجموعه د كلام «لو استقبلت من أمري ما استدبرت ما صليتم إلا قعوداً» «فإذا صلى الإمام جالساً، فصلوا جلوساً» حضور پاك هم دغه د سقوط عن الفرس په قصه كښې اوفرمائيل ليكن حضرت عطاء رحمه الله ته كيدې شي په دې كښې اختلاف شوې وي چه دا كلام ئې د مرض الموت په واقعه كښې بيان كړو.

واقعه د سقوط عن الفرس او واقعه د مرض الموت دې دواړو كښې د خلقونه داسې ګډوډوالې شوې دي. چنانچه مسلم: په يو روايت كښې حضرت ابو الزبير رضي الله عنه په واقعه د سقوط عن الفرس كښې دا جمله وئيلې ده چه «وأبو بكر يسمعنا» په ظاهر دلته هغوى ته اختلاط اوشو چه د مرض الموت د واقعې خبره ئې د سقوط عن الفرس په واقعه كښې اولګوله په ظاهره په دې واقعه كښې «وأبو بكر يسمعنا» نه دې شوې (بلكه د مرض الموت په واقعه كښې شوې) ځكه چه د مرض الموت په واقعه كښې د جمات قصه بيان شوې ده چرته چه ډير سړي وو او د مرض د ضعف د وجې نه د رسول الله ﷺ آواز په مزه وو په دې وجه د مسمع تكبير ضرورت پيښ شو په خلاف د واقعې سقوط عن الفرس. هلته سړي كم وو ځكه چه (دا واقعه بالاخانه كښې پيښه شوې او) بالاخانه كښې به څومره سړي راځي؟ او ښكاره خبره ده چه د ټپوس د پاره يو ځائې كيدل په ډير شمير كښې كسان نه راځي بيا هغه وخت د حضور پاك ﷺ آواز په مزه شوې هم نه وو ځكه چه هغه وخت د رسول الله ﷺ په خپه مبارك كښې تكليف وو نور خو

---

[1] دا حافظ رحمه الله د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه نقل كړې دى اوګورئ تهذيب التهذيب: ٥٦٩/٥ ترجمه عطاء.

[2] انظر التعليق رقم: ٩١.

حضورپاك صحيح اوتندرست وو (لهذا په دې واقعه كښې دَ مكبر ضرورت نه وو). اصل خبره دا ده چه راوى ته په دواړو واقعاتوكښې اختلاط شوى. (١)

بهرحال حافظ ابن حجر رحمه الله دَ امام ابن حزم رحمه الله دَ دلائلونه ويريدوسره په احاديثوكښې دَ تطبيق وركولوپاره دا مسلك اختياركړو مګر په ائمه حضراتوكښې دَ چاهم دامسلك نه دې. امام مالك رحمه الله اوامام محمد رحمه الله خودَ دې قسم خبرو ته كتلوسره بس دَ بحث جرړه پرې كړه چه دَ جالس امامت هډو صحيح نه دې اودَ حضورپاك عمل ئې په خصوصيت باندې محمول كړو.

**دَ حنابله په مذهب باندې دَ حافظ ابن سيدالناس رحمه الله تنقيد**: حنابله خوشحاله دى چه مونږ يو داسې مسلك اختياركړې چه په احاديثوكښې نه څه تعارض پاتې شو اونه يوحديث ترك كول اوشو مونږ دَ امام جلوس بادى اوطارى كښې فرق اوكړو. پس دَ مرض الموت په واقعه كښې دَ امام كيناستل شروع وو لمامر، په دې وجه مقتديان ټول ولاړ پاتې شو اودَ سقوط عن الفرس په واقعه كښې جلوس امام بادى وو په دې وجه مقتديانوته هم دَ جلوس حكم اوشو. بس «دې تفصيل سره» ټول روايتونه منطبق شو او حنابله ډير خوشحاله شو.

دَ هغوى په دې خوشحالنى باندې حافظ ابوالفتح ابن سيدالناس يعمرى رحمه الله اوونيل چه بيشكه دَحنابله كوم مسلك دې په هغې سره په احاديثوكښې تطبيق كيږى مګر مجتهد له صرف په دومره خبره باندې اكتفاء نه دى كول پكار بلكه په مجتهد باندې دا هم ضرورى دى چه دَ فرق وجه هم بيان كړى. دلته چه كوم په عذر طارى او بادوى كښې فرق كولې شى آخر دَدغه فرق مدار او بنياد څه دې؟ په كومه بنا باندې تاسو دا فرق كوئى؟ ښكاره خبره خوداده چه په طارى اوبادى كښې هيڅ فرق اونه شى دَ جلوس طارى په صورت كښې هم «دَ جلوس بادى په شان» دې مقتدى كينى ځكه چه په مقتديانو باندې په هرحال كښې دَ امام متابعت ضرورى دې او دَ دغه ټولو نه دَ امام دَ اتباع په حديث كښې دا هم بيان كړو چه «وإذا صلى الإمام جالساً فصلوا جلوساً» اودائى هم په هغه معنى دَ ائتمام متفرع كړه. نو پكار دى چه څنګه دَ عذر بادى په صورت كښې مقتدى كينى دغه شان په عذر طارى كښې هم دې امام سره كينې (ځكه چه) مناط حكم يعنى دَ امامت وظيفه او ائتمام دواړه ځايه بحاله موجود دى نو په حكم كښې دَ فرق څه وجه ده؟

**دَحديث سقوط عن الفرس باره كښې دَحضرت شاه صاحب رحمه الله توجيه** انور شاه صاحب كشميرى رحمه الله دلته يوه بله طريقه اختياركړې. (٢) هغوى وائى چه داكوم حديث دې «إنما جعل الإمام ليؤتم به....... إلى قوله: وإذا صلى الإمام جالساً، فصلوا جلوساً» دَدې اصل مقصد دانه دې چه دَ امام په ناسته باندې دَ مونځ كولو په صورت كښې، په هرحال كښې دې مقتدى هم امام سره كينى (مونځ) دې اوكړى بلكه مقصود اصلى دې سره دومره خودل دى چه شرعاً تركومې پورې مساغ (اوګنجائش) وى مقتديانوسره دَامام مشاكلت (اومشابهت) مطلوب دې. باقى دَدې تفصيل چه په كوم صورت كښې امام سره كينى او په كوم صورت كښې دې نه كينى، هغه دلته مذكورنه دى بلكه دا دَ نورو قواعدو او دلائلو نه اخذ كول

---

(١) اختلاط به هغه وخت ثابتيږى كله چه دَ ابوالزبير رضي الله عنه روايت سقوط عن الفرس واقعې سره متعلق وى، خودَ حافظ ابن حبان رحمه الله دعوى داده چه دا روايت دَ مرض الموت واقعې سره متعلق دې.

(٢) فيض البارى: ١/٢٤٨-٢٤٢.. ٤٠٥-٤٠٢ العرف الشذى على حامع الترمذى: ١/٨٦

پكاردي چه چرته شريعت بغيرد عذر او اضطرار نه د كيناستو گنجائش كيخودې دې (اوچرته بغيرد عذر نه د كيناستو اجازت نه دې وركړې چنانچه) چرته چه شريعت مقتديانو ته بغيرد عذر او اضطرار د كيناستو اجازت وركړې وى هلته به داحكم وى چه دامام مشاكلت (او مشابهت) دپاره تاسو هم كيننى سره ددې چه تاسو پخپله معذوره نه ئى. خو بياهم د «إنما جعل الإمام ليؤتم به» موافق د امام اتباع اوكرنى. مثلاً كه چرې مقتدى متنفل وى اود يو امام جالس شاته اقتداء اوكړى نوشريعت ده ته اجازت وركوى لهذا (د امام) مشاكلت دپاره كيناستل دهغه په حق كښې به افضل وى سره ددې چه هغه پخپله معذور نه وى. چنانچه زمونږ فقهاؤ هم ليكلى دى[1] كه چرې په تراويح كښې امام جالس وى نومقتديانودپاره افضل او اولى هم دغه ده چه هغوى دې هم كينى سره ددې چه هغوى معذوره نه وى. ځكه چه د نفل مونځ كيدو د وجې نه هغوى ته شرعاً مساغ شته لهذا كيناستل پكاردى دې دپاره چه مشاكلت قائم شى. اوكه چرې مقتدى مفترض وى نوهلته دا نه شى كيدې ځكه چه هلته ده ته شرعاً د كيناستو مساغ نشته.

**په دې توجيه او تقرير باندې اشكال**: (مگر مذكوره تقرير د يوڅو وجوهاتو په وجه محل نظر دې):

(الف): ددې تقرير په وجه (حديث: **إذا صلى الإمام جالساً، فصلوا جلوساً**) كښې به يوخو قيد لګولې كيږى چه «**فصلوا جلوساً أي: مهما أمكن شرعاً**» (يعنى چه يوطرف ته د نورو دلائلو په بنيادباندې شرعاً اجازت وى نوهلته دې په ناسته مونځ كوى حالانكه ددې قيد دپاره دليل پكاردې كوم چه دلته مفقود دې).

(ب): دويم دا چه (ددې توجيه مطابق) د «**فصلوا جلوساً**» امر به د استحباب د پاره اخستلې كيږى لكه چه حافظ ابن حجر رحمه الله ونيلى وو ځكه چه د احنافو په نيز د جلوس وجوب خو په يوصورت كښې نشته دې اوفقهاؤ د تنفل په صورت كښې د مقتدى جلوس ته (كوم وخت چه امام جالس وى) اولى او افضل ونيلى دى كمامر. (او امر په استحباب باندې محمول كولو دپاره قرينه پكار ده اوهغه چرته ده؟).

(ج): خير ددې دوارو مونږ تحمل كوو مگر په دې كښې د يوڅيز د ثبوت ضرورت دې هغه دا چه (سقوط عن الفرس په واقعه كښې) په دويمه ورځ چه كوم مونځ اوكړې شو په كوم ورځ چه حضورپاك دا اوفرمائيل (چه **إنما جعل الإمام ليؤتم به**..... إلخ) په هغه مونځ كښې رسول الله ﷺ يقيناً مفترض وو او صحابه څه وو مفترض يا متنفل؟ كه چرې صحابه كرام هم مفترض وو نوبيا دا ټول مطلب (كوم چه شاه صاحب بيان كړې دې) بيكاره دې اوكه چرې ثابته كړې شى چه صحابه متنفل وو نوبيا د دې مطلب گنجائش شته مگر ددې دپاره څه تشفى بخش ثبوت نشته دې.

شاه صاحب رحمه الله په دې باندې (چه صحابه كرام رضي الله عنهم متنفل وو) يوه قرينه بيان كړې ده چه په ظاهره معلوميږى چه هغه خلقو به دماسپښين مونځ په جماعت كښې اداكولوسره راغلى وى بيا چه كله دلته راغلل اوحضورپاك نى په مونځ كولو سره اوليدلونود بركت د پاره نى نفلى اقتداء اوكړه. گنى نه نى ده كړې (يعنى كه چرې دا اوونيلې شى چه صحابه كرامو رضي الله عنهم مونځ په جماعت كښې نه دې كړې) هم دلته په راتلوسره نى اوكړو نود جماعت تعطل (اودهغوى د جمع نه خالى پاتې كيدل) به لازم راشى.

ليكن دا قرينه څه قوى نه ده ځكه چه د جماعت تعطل هله لازم راځى چه ټول صحابه كرام په يوځل راجمع شى حضورپاك له راشى په جماعت كښې مونځ كونكې هيڅوك پاتې نه شى اودا عادةً بعيده ده

[1] فتاوى قاضي خان على هامش الهندية: ۱/۲٤٤-۲٤۳ باب التراويح فصل في أداء التراويح قاعداً.

چه ټول خلق راجمع شي او د تپوس دپاره راشي (لهذا ښكاره خبره هم دغه ده چه څه صحابه كرام رضي الله عنهم مونځ په جمات كښې اداكړو اودتپوس د پاره راتلونكي صحابه كرامو دَماسپښين مونځ دلته اداكړو، شاه صاحب رحمه الله د امام مالك رحمه الله يو شاګرد د ابن قاسم رحمه الله يوقول نقل كړي دي چه صحابه كرام متنفل وو[1] ليكن صرف دَهغه قول چرته حجت كيدې شي تركومې چه د هغې څه ماخوذ معلوم نه وي؟ په دې وجه شاه صاحب رحمه الله مذكوره تقرير زړه ته څه ښه نه لګي.

**د بحث خلاصه**: لنډه دا چه ما په دې مسئله كښې ډير غور اوكړو اود خپل وس موافق ډير كوشش تفتيش او لټون اوكړو ليكن زمونږ بلكه د جمهور علماؤ په مذهب كښې ماته پوره تسلي او شرح صدر حاصل نه شو. اولكه چه مونږ مقلد كيدو د وجې نه به هم په خپل مذهب باندې فتوى وركوو اود مسلك ائمه نه خروج نه شو كولې ځكه چه زمونږ په شان د خلقو څه هستي ده چه د مجتهدينو خلاف اوكړو.مګردخپل علم موافق د دلائلو په اعتبارسره دَامام ابن حزم رحمه الله قول په دې مسئله كښې قوي ښكارى.

**د مرض الموت واقعه كښې صحابه كرامو قياماً اقتداء ولې اونه كړه؟** بيا په زړه كښې دې څيزلږ شان شك اچولو چه اوس د رواياتونه په تسلي سره ثابته شوه چه دَمرض الموت په واقعه كښې صحابه كرام رضي الله عنهم رسول الله صلى الله عليه وسلم پسې په ولاړه مونځ كولو. اوس په دې كښې دا شك پيښيږي چه كله صحابه كرامو اول ځل (سقوط عن الفرس په واقعه كښې) عملاً هم اوقولاً هم د «**وإذا صلى الإمام جالساً، فصلوا جلوساً**»امر صريح اوريدلې وو نوبيا په دغه واقعه دَمرض الموت كښې دحضورپاك امام جالس جوړيدو نه پس دوى ولې ولاړ پاتې شو؟ دا خو ناممكن خبره ده چه صحابه كرام رضي الله عنهم د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه يوحكم واؤرى اوبيا يو نه دوه نه ټوله جمع په جمع په دَهغې خلاف عمل اوكړي.

دَدې (اشكال جواب) سره متعلق زما په ذهن كښې يوه خبره راځي دكومې طرف ته چه لږه شان اشاره ما وړاندې هم كړې ده. او هغه دا چه په دې قصه (مرض الموت) كښې بعض امور يقيناً داسې واقع كيږي كوم چه لامحاله ټول خلق هم په خصوصيت باندې محمول كوي. چنانچه د ټولو نه لوئى يوسبب خو هم دغه دې چه بغير د څه عذر مبيح د استخلاف امام ارتكاب اوكړې شو. بعض چه كوم تاويل كړې دې چه كيدې شي د حضرت ابوبكر رضي الله عنه د قراءت نه حصر شوې وو دا صرف اټكلي خبره ده، په كوم چه تر ننه پورې هيڅ څه نقل پيش نه كړې شو. بيا استخلاف هم داسې چه يوداسې هستي خليفه جوړ كړې شو چه د سره په مانځه كښې شامل نه وو ځكه چه حضورپاك راتلوسره دحضرت صديق اكبر رضي الله عنه په ځائې امام جوړشو دې نه وړاندې حضور عليه السلام په مانځه كښې شامل نه وو،

دويم څيز په يوه درجه كښې داهم دې چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه د مقتديانو صفونوته هم راننغلو قاعده خو هم د دغه مقتضي وه چه خپل موقف نې پريخودې وې په صف كښې شامل وې لهذا په يوه درجه كښې داهم څه د تامل قابل څيز دې. داخبرې ټول خلق هم په خصوصيت باندې محمول كوي خاص كر دَاستخلاف مسئله. اوعموماً د خصوصيت صورت دا بيانولې شي چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه بالكليه د امامت نه اخوا شو هغه امام پاتې نه شو بلكه اوس دَهغوى په ځائې باندې حضورپاك امام جوړشو. حالانكه د حضرت ابوبكر رضي الله عنه هيڅ عذر نه وو پيښ شوې نو ونيلى به شي چه دا د رسول الله صلى الله عليه وسلم خصوصيت وو دَهغوى په موجودګئ كښې سابقه امام كه چرې هغوى غواړي نومعطل كولې شي

[1]) العرف الشذي على حامع الترمذي: ٨۶/١

دغه شان حضرت ابوبكر رضي الله عنه مقتدى جوړيدو سره دمقتديانو په صف كښې رانغلو هم هلته پاتې شو دا هم څه خصوصي وجه وه.
بهرحال په دې امورو كښې خصوصيت زه هم منم ليكن په دې خاني كښې دخصوصيت صورت او معنى سره متعلق زما په ذهن كښې يوه بله خبره راځي. هغه دا چه په دې واقعه دمرض الموت كښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم تشريف راوړلونه پس بيشكه امام جوړشوى وو اوحضرت ابوبكر رضي الله عنه د حضورپاك مقتدى جوړشو. مګر ددې نه باوجود د نورو مقتديانو په اعتبار د ابوبكر رضي الله عنه امامت چه داول نه راروان وو بالكليه غير معتبر او نظر انداز نه كړې شو دهغوى په حق كښې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه امامت هم في الجمله باقي اوساتلې شو.
زه د خپل دې خيال په تائيد كښې يوخاص څيز طرف ته توجه راګرځول غواړم. هغه دا چه د احاديثو نه معلوميږي چه مرض الموت كښې كله رسول الله صلى الله عليه وسلم د جمات تشريف راوړو نه معذوره شو نو حضورپاك حضرت ابوبكر رضي الله عنه د امام جوړولو ډير زيات اهتمام اوكړو. چنانچه په روايتونو كښې راځي چه حضرت عائشه رضي الله عنها اوحضرت حفصه رضي الله عنها په دې كښې (يعنى حضرت ابوبكر رضي الله عنه د امام جوړولو په سلسله كښې) په مزاحمت كولو.(١)
اوحضرت عائشه رضي الله عنها خو څه بهانه هم اوكړه «انه رجل أسيف» (چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه خو ډير نرى زړه او ژړا كونكې دې كه چرې هغه دحضورپاك په ځاني امام جوړكړې شو نود زياتې ژړا د وجې به مونځ ورنه كړې شي) وغيره وغيره مګر حضورپاك به بار بار فرمائيل چه «مروا أبابكر فليصل الناس» تردې چه په آخره كښې حضرت عائشه رضي الله عنها اوحضرت حفصه رضي الله عنها اورټلې چه «أنتن كصواحب يوسف مروا أبابكر فليصل الناس» د ابوداؤد يو روايت (٢) كښې تردې پورې راځي چه حضرت عمر رضي الله عنه (يو) مونځ وركړې وو (٣)
د قرا ت آواز اوريدوسره رسول الله صلى الله عليه وسلم حجرې شريفې نه سر بهركولو سره دخفګان په لهجه كښې اوفرمائيل: «لا، لا، لا ليصل للناس ابن أبي قحافة» او په يوروايت كښې فرمائيلي «أين أبوبكر؟ يأبى الله ذلك والمسلمون» وراندې دى «فبعث إلى أبي بكر، فجاء بعد أن صلى عمر تلك الصلاة، فصلى بالناس» (٤)
دې نه پس ابوبكر رضي الله عنه مونځ وركړو. دظاهرى الفاظونه واضح كيږى چه ددې مونځ (كوم عمر رضي الله عنه وركړې وو) اعاده دحضرت ابوبكر رضي الله عنه په امامت كښې اوكړې شوه (كما فهمه منه أيضاً صاحب البذل) (٥)
حلانكه يوځل پخپله حضورپاك عليه السلام حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه بسې مونځ كړې (٦) دهغې

(١) صحيح البخاري: ٩٣/١ صحيح مسلم: ١٧٨/١.
(٢) ٦٤١/٢ كتاب السنة باب في استخلاف أبي بكر رضي الله عنه.
(٣) يعنى وركول ئى شروع كړى وو.
(٤) اخرجها أيضاً أبوداؤد في سننه: ٦٤١/٢ وأحمد في مسنده: ٣٢٢/٤ والطبراني في المعجم الأوسط: ٤٠/٢ والحاكم في المستدرك: ٦٤١/٣-٦٤٠.
(٥) حيث قال: ولعل عمر رضي الله عنه لما علم أنه صلى الله عليه وسلم نهى عن تقدم غير أبي بكر، لم يتم الصلاة ونقضها في أثناء الصلاة، ثم لما جاء أبوبكر صلى بالناس تماماً. (بذل المجهود في حل أبي داؤد: ١٨٩/١٨.)
(٦) انظر التعليق: رقم: ١٠٢.

باوجود نی اعاده اونه کړه اودلته دحضرت ابوبکر رضی الله عنه امام جوړولودپاره دحضرت عمر رضی الله عنه په شان د شخصیت ورکړې شوې مونځ اعاده اوکړې شوه.
نودا د ابوبکرصدیق رضی الله عنه د امامت دپاره چه دا دومره زور اوشور سره اهتمام کولو دَدې وجه څه وه؟ ددې متعلق ټول محققین اوعلماء کرام دا لیکي دراصل دَدغه مونځ امامت کوم چه امامت صغری دې په هغې کښې حضورپاک له اشاره کول وو د امامت کبری دَ پاره او ټول خبردار کول وو لکه چه څنګه په دې امامت صغری کښې ابوبکرصدیق رضی الله عنه امام جوړولې شی هم دغه شان په امامت کبری کښې به هم دې وړاندې کولې شی بل هیچاته دَدې حق نشته دې.(١)
چنانچه په روایاتوکښې راځی چه حضورپاک (مرض الوفات په واقعه کښې جمات) ته تشریف راوړلوسره حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته خو (په اشاره) سره دا اوفرمائیل چه «مکانَك»
یعنی ته په خپل ځائې باندې اودریږه اوچه کومو دوو کسانو حضورپاک په سهاره ورکولوسره جمات ته راوستلې وو هغوی ته نې اوفرمائیل چه ما د ابوبکر رضی الله عنه یسارکښې کینوئی.(٢)
نولکه چه هم په دې کښې دَهغه امامت کبری متعلق په لطیف انداز کښې اشاره کول وو چه زه خو اوس کیناستم او ابوبکر رضی الله عنه قائم بالامامت والخلافت شو. دې سره دا هم یقین ورکړې شو چه اوس د قوم تعلق اومعامله نیغ په نیغه حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه سره ده اود ابوبکر رضی الله عنه ماسره ده. نوکوم څیز ما راوړلې زه کیناستم هم هغه څیز راختستو سره اوس ابوبکر رضی الله عنه ولاړ دې. دا نه ده چه ابوبکر رضی الله عنه دَامام جوړولونه پس معزول کړې شو بلکه داسې اوګڼړنی چه لکه امامت بارزه خو هم د ابوبکر رضی الله عنه دې او کامن ومستتر امامت په دې ضمن کښې هم د رسول الله صلی الله علیه وسلم دې

**دحضرت مولانا قاسم نانوتوی رحمه الله اودمولانارفیع الدین دیوبندی رحمه الله یوه واقعه** دَدې مناسب د مولانا رفیع الدین دیوبندی رحمه الله مهتمم اول دارالعلوم دیوبند یوه واقعه ده.حضرت مولانا قاسم نانوتوی رحمه الله دَ مدرسې دَ اهتمام دپاره هغه خوښ کړې وو نومولانا رفیع الدین رحمه الله دَمولانا نانوتوی رحمه الله د مرګ نه پس یوه ورځ اوفرمائیل زما رونړو زه به څه اهتمام اوکړم په اصل کښې د مولانا قاسم نانوتوی رحمه الله اراده اوشوه چه پخپله اهتمام اوکړی لیکن ظاهر بهر مهتمم جوړیدل نی نه غوښتل په دې وجه نی زه په مینځ کښې یوه واسطه خوښ کړم نو په ژوند کښې به هم هغوی اهتمام کولو او اوس هم هغه کوی.زه په مینځ کښې د منزله یوه آله جارحه یم. نولکه دَمولانا رفیع الدین رحمه الله اهتمام لکه چه په ظاهره هم دهغه اهتمام وو مګرپه اصل کښې کامن ومستتر اهتمام هم د مولانا نانوتوی رحمه الله وو.

**د اصل بحث طرف ته رجوع** او په واقع کښې دَحضرت ابوبکر رضی الله عنه خلافت داسې وو چه بالکل هوبهو عکس او نقشه وه د نبی پاک علیه السلام دَ حکومت اوهم دَهغې ضمیمه تتمه اوتکمله وه. چنانچه دَ جیش اسامه رضی الله عنه په واقعه کښې یوه ظاهری نمونه هم خودلې شوې وه کومه چه حضورپاک پخپل لاس مبارک

(١) شرح مسلم للنووي: ١٧٨/١عمدة القاري: ٢٨٣/٤كتاب الأذان باب أهل العلم والفضل أحق بالإمامة. فتح الباري: ٣١/٧كتاب فضائل الصحابة رضى الله عنه. باب لوكنت متخذا خليلاً. وبذ المجهود: ١٨٩/١٨كتاب السنة باب فى استخلاف أبي بكر رضى الله عنه. والسيرة النبوية للذهبي: ٤٨٥/٢.

(٢) كماجآء فى رواية موسى بن أبى عائشة عندالبخارى: ٩٥/١عن عبيدالله عن عائشة: ........فخرج بين رجلين أحدهما العباس لصلاة الظهر. وأبوبكر يصلى بالناس.......قال: أجلسانى إلى جنب أبى بكر، فأجلساه إلى جنب أبى بكر. وفى رواية أبى معاوية عندالبخارى أيضاً: ٩٩/١عن الأعمش عن إبراهيم عن الأسود عن عائشة: ........فجآء النبى صلى الله عليه وسلم حتى جلس عن يسار أبى بكر.

باندې قائم کړې وه ابوبکر رضي الله عنه دهغې تنفيذ اوتکميل اوکړو باوجوددې چه نورو صحابه کرامو اختلاف کولو.(۱)

اوداکوم چه په يو روايت کښې حضورپاک فرمانيلي چه ماد ابوبکر رضي الله عنه په يسارکښې کينونئ(۲)نوامام په يسارکښې کوم وخت وي؟کله چه مقتدي صرف يو وي جمع نه وي. دې نه معلوميږي چه حضورپاک صرف دحضرت ابوبکر رضي الله عنه امام وو اود باقي قوم امام حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه وو. په دې وجه نې حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته اوفرمانيل «مکانَك» ګنې هغه له دمقتديانوصف ته راتلل وو. نولکه چه هم هغه وخت دا نقشه اوخودلې شوه چه اوس د قوم امام حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه دې اود ابوبکر رضي الله عنه امام پخپله حضورپرنور ﷺ دې. چنانچه د روايتونو دا الفاظ په ظاهره ددې تصريح کوي. «وکان ابوبکر يصلي وهوقائم بصلاة النبي صلى الله عليه وسلم والناس يصلون بصلاة ابي بکر» (۳)او يوروايت کښې دی «يقتدي أبوبکر بصلاة النبي صلى الله عليه وسلم ويقتدي الناس بصلاة أبي بکر» (۴)

لکه چه د حضورپاک دا آخري مونځ په يوشان دحضورپاک دهغه رومبي مونځ په شان شو کوم چه د پنځومونځونو د فرضيت نه پس کړې شوې، په کوم کښې چه جبرائيل عليه السلام د حضورپاک امام وو او حضورپاک د صحابه کرامو رضي الله عنهم. (۵)

خلقو اګرچه دمرض الموت په دې مونځ کښې تاويلات کړې دي مګر زه وايم چه بالکل په ظاهر باندې دي او په دې کښې هم دا اهم اواعظم مقصود (يعني د حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه دامامت کبریٰ او خلافت عظمیٰ متعلق اشاره کول وو چه داوس نه د قوم د سياست تعلق نيغ په نيغه به حضرت ابوبکر رضي الله عنه سره وي اوخانله دابوبکر رضي الله عنه نيغ په نغه تعلق به حضورپاک سره وي. نوحضورپاک په دې واقعه کښې يوقسم بهترين نقشه اود امامت کبریٰ کيفيت ددغه امامت صغریٰ په ضمن کښې اوخودلو او عجيب اوغريب لطائف سره هوبهو ددغه امامت کبریٰ تصوير د امامت صغریٰ په تختنی باندې رابنکلو يعنی (دائی اوخودل چه) داسې کيدل پکاردي اوهم داسې به کيږي، چنانچه هم هغه شان اوشو.

په دې ټول تقرير کښې دغور کولونه پس داخيز بالکل واضح کيږي چه دعلماؤ اومحققينو د رائې مطابق دلته دحضرت ابوبکر رضي الله عنه امامت اودهغې دپاره د بې حده اهتمام سره چه کوم اهم او اصل مقصود وو يعنی دامامت کبریٰ اود خلافت عظمیٰ طرف ته اشاره کول هم ددغه مقصد په رڼا کښې به دلته دا ونيل بهتر اوموزون نه وي چه دحضورپاک دتشريف راوړلونه پس دابوبکر رضي الله عنه امامت بالکليه معطل اوغيرمعتبر شو او هغه کليةً نظر انداز کړې شو بلکه ددې اهم مقصود ډير زيات مناسب او لائق دا خبره ده کومه چه ما د خصوصيت په تقرير کښې کړې ده چه دابوبکر رضي الله عنه امامت بالکليه غير معتبر اونظر انداز کړې شوې نه وو بلکه دا ونيل پکاردي چه د قوم په حق کښې دهغوی

(۱) صحيح البخاري: ۶۴۱/۲فتح الباري: ۱۵۲/۸کتاب المغازي باب بعث النبي صلى الله عليه وسلم أسامة بن يزد، طبقات ابن سعد: ۳٤۵/۲سيرة ابن هشام: ۲۹۱، ۳۰۱/٤-۲۹۹سيرة الخلفاء الراشدين للذهبي: ص: ۳۲.

(۲) راجع التعليق: رقم: ۱۶٤.

(۳) صحيح مسلم: ۱۷۹/۱.

(۴) صحيح مسلم: ۱۷۹/۱.

(۵) متعلقه روايت سنن النسائي: ۶۰/۱باب آخروقت العصر کښې اوګورئ.

امامت برابر قائم اوساتلې شو اوحضورپاك صرف د ابوبكر رضي الله عنه امام وو ليكن د قوم امام هم هغه شان هم ابوبكر رضي الله عنه پاتې دې اوبالواسطه رسول الله ﷺ هم په هغه وخت د ټولو په حق كښې امام مطلق وو داسې تسليم كولوسره لكه چه دخلافت هوبهو كيفيت اودامامت كبرى صحيح نقشه ددې امامت صغرى د نقشې په ضمن كښې متشكل كيږى او په دې وجه دحديث شريف چه كوم الفاظ دى «يصلى أبوبكر بصلاة النبى صلى الله عله وسلم والناس يصلون بصلاة أبى بكر» اوددې نه هم چه صريح كوم لفظ راغلې دې چه «يقتدي أبوبكر بصلاة النبى صلى الله عليه وسلم، ويقتدي الناس بصلاة أبى بكر» په دې الفاظوكښې د څه قسم تاويل كولو ضرورت باقى نه پاتې كيږى.

**په مذكوره تقريرباندې يوه شبه اودهغې جواب:** كه چرې شك اوكړې شى چه په دې كښې (يعنى دمذكوره تقرير مطابق) د يوې جمع دپاره په يو وخت ددوو امامانو كيدل لازم راځى دابه څنګه صحيح وى؟ مونږ خو به تپوس كوو چه بغيرد څه مبيح عذر نه هغه هم يوغير مقتدى (يعنى حضورپاك د (مونږ دوران كښې دامام) خليفه جوړول څنګه صحيح شو؟ كه اووائى چه دا خصوصيت وو نومونږ به هم وايو چه هغه خصوصيت وو.

بهرحال تاسو ته به هم د خصوصيت قائل كيدل دى اومونږ ته هم. مګر تاسو چه د خصوصيت كوم تقرير اوكړو په هغې سره زمونږ بيان كړې شوې صورت زيات موزون او اليق اوانسب دې. څكه چه په دې كښې د اهم او اصل مقصود پوره نقشه محفوظ پاتې كيږى او په الفاظ دحديث شريف كښې د تاويل كولو ضرورت هم نه پاتې كيږى. اودحضرت ابوبكر رضي الله عنه د مقتدى په صفت كښې نه راتلل اود رسول الله ﷺ د حضرت ابوبكر رضي الله عنه په يساركښې كيناستل اوددې په شان نور امور كوم چه په دغه واقعه كښې مخې ته راغلل د ټولو پرلطف حكمت اوعجيب اوغريب نكته معلوميږى.

**پورته ذكركړې شوى د پوره بحث ثمره:** كله چه د قوم په حق كښې د ابوبكر رضي الله عنه امامت باقى پاتې شو اوهغه نظر انداز نه كړې شو نوبيا قوم (يعنى مقتديانو) د كيناستو هم څه وجه نه وه څكه چه ابوبكرصديق رضي الله عنه خو شروع هم د ولاړې نه كولوسره مونځ شروع كړې وو اواوس هم ولاړ دې.

اوهغه كوم چه د عطاء بن ابى رباح رحمه الله مرسل وو «لواستقبلت من أمري...... إلخ»[1] (كه چرې بالفرض دا صحيح اومنلې شى نو، ددې مطلب هم دلته په بنه شان سره كلكيدې شى. چونكه دهغوى خيال پيدا شو چه يوظاهر كتونكې د ظاهرى صورت دكتلوسره داسې ګڼرلې شى او په دې عمل سره (يعنى دحضورپاك جالس كيدو نه باوجود د صحابه كرامو قياماً اقتداء كولوسره) دا استدلال كولې شى چه كه امام كينى اومونځ وى نومقتديان دې ولاړ وى، نورسول الله ﷺ اوفرمائيل چه كه ماته د اول نه پته وه كوم چه روستومعلوم شو چه زه به مونځ ته حاضريدې شم نوبيا به تاسو هم په ناسته مونځ كولو يعنى زه به د شروع نه راغلې ووم د ابوبكر رضي الله عنه توسط به نه شو ساتلې كوم چه تاسو په ولاړه مونځ كونى مګر د راتلونكې وخت دپاره قانون ياد ساتئى: «إذا صلى الإمام قاعداً، فصلوا قعوداً»، د حضرت مولانا شبيراحمد عثمانى رحمه الله تفصيلى كلام سره دحواشى مكمل شو. ولله الحمد.[2]

**دحديث مبارك نه مستفاد امور.** ددې حديث نه ډيرزيات امور مستفاد كيږى دهغه ټولونه څه دادى:

---

[1]) انظر التعليق: رقم: ١١٩.

[2])فضل البارى كتاب الصلاة باب الصلاة فى السطوح والمنبر والخشب رقم الحديث: مسئلة اقتداء القائم خلف الجالس : ٩٦/٣-٦٧مركزالدعوه السلاميه كبرانى ګنج ډهاكه.

① په چت باندې يا په لرګى باندې مونځ كول صحيح دى. ② د يوشرعى سبب د وجې نه د څه مودې پورې د ښځو نه جدا كيدو قسم كول جائز دى. ③ مياشت هميشه د ديرشو ورځونه وى بلكه كله د يوكم ديرشو ورځو هم كيږى. ④ په مقتدى باندې د امام متابعت واجب دې. ⑤ د مقتدى د پاره د امام نه وړاندې كيدل صحيح نه دى.[1]

هذا آخر ما أردنا إيراده من شرح كتاب الصلاة ويليه إن شاء الله تعالى في المجلد الثاني.
باب إذا أصاب ثوب المصلي امرأته إذا سجد
والحمد لله الذي بنعمته تتم الصالحات، والصلاة والسلام على رسوله محمد أفضل الموجودات، وأكرم المخلوقات، وعلى آله وأصحابه والتابعين لهم بإحسان ما دامت الأرض والسماوات.





[1]) عمدة القاري: ١٥٩/٤ التوضيح لابن الملقن:: ٣٥٧/٥-٣٥٥.

# فہرس مصادرومراجع


① اسلام اور عقلیات، مولانا اشرف علی تھانوی رحمہ اللہ متوفی: ۱۳۶۲ ہجری ادارہ تالیفات اشرفیہ ملتان

② اشرف الجواب حکیم الامت حضرت اشرف علی تھانوی متوفی: ۱۳۶۲ ہجری ادارہ تالیفات اشرفیہ ملتان

③ أحكام القرآن لأبي بكر محمد بن عبدالله المعروف بابن العربي المالكي رحمه الله المتوفى سنة ۵۴۳ هجري در الكتب العلمية بيروت لبنان

④ أحكام القرآن للإمام الحجة الإسلام أبي بكر أحمد بن علي الرازي الجصاص المتوفى: ۳۷۰هجري درا الكتب العلمية، بيروت

⑤ أسد الغابة في معرفة الصحابة للإمام عزالدين أبي الحسين علي بن محمد بن عبدالكريم بن عبدالواحد الشيباني المعروف بابن الأثير الجزري رحمه الله المتوفى سنة ۶۳۰هجري دار الكتب العلمية بيروت

⑥ اسنى المطالب في أحاديث مختلفة المراتب للإمام المحدث أبي عبدالرحمان محمد بن درويش الحوت البيروتي رحمه الله المتوفى: ۱۲۷۶هجري، درا الكتب العلمية، بيروت

⑦ أصول الشاشي للإمام العلامة نظام الدين الشاشي رحمه الله المتوفى: ۳۲۵هجري الطبعة الثانية: ۱۳۹۶هجري مكتبة البشرى كراتشي

⑧ أعلام الحديث في شرح صحيح البخاري للإمام المحدث أبي سليمان حمد بن محمد الخطابي رحمه الله المتوفى سنة ۳۸۸هجري مركز إحياء التراث الإسلامي جامعة أم القرى مكة المكرمة

⑨ أقرب الموارد في فصح العربية والشوارد، للإمام الخوري الشرتوني اللبناني منشورات مكتبة آية الله العظمى المرعشي النجفي إيران

⑩ انوار الباري (اردو شرح) صحيح البخاري افادات الشيخ الكشميري وغيره، انوار التنزيل والسرار التأويل راجع الى تفسير البيضاوى للشيخ السيد احمد رضا البجنوري رحمه الله ادارة تأليفات الاشرفيه ملتان، طبع: ۱۴۲۵هجري

⑪ اوجز المسالك للإمام المحدث محمد زكريا الكاندهلوي المدني رحمه الله المتوفى سنة ۱۴۰۲هجري دار القلم دمشق

⑫ بحر العلوم: (راجع إلى تفسير السمرقندي)

⑬ إتحاف الخيرة المهرة بزوائد المسانيد العشرة للإمام احمد بن ابى بكر بن اسماعيل البوصيري رحمه الله المتوفى: ۸۴۰ هجري درا الكتب العلمية، بيروت

⑭ إرشاد الساري للإمام شهاب الدين أبي العباس أحمد بن محمد الشافعي القسطلاني رحمه الله المتوفى ۹۲۳ هجري دار الكتب العلمية / المطبعة الكبرى الأميرية ببولاق مصر المحمية سنة ۱۳۲۳هجري (الطبعة السابعة)

⑮ إعلاء السنن للمحدث الناقد ظفر أحمد العثماني رحمه الله المتوفى سنة ۱۳۹۴هجري إدارة القرآن والعلوم الإسلامية دار الفكر

⑯ إكمال المعلم بفوائد مسلم للإمام الحافظ أبي الفضل عياض بن موسى بن عياض اليحصبي رحمه الله المتوفى سنة ۵۴۴هجري در الوفاء للطباعة والنشر والتوزيع / دار الكتب العلمية بيروت

⑰ إكمال تهذيب الكمال للعلامة علاء الدين مغلطائي ابن قليج بن عبدالله الحنفي رحمه الله المتوفى سنة ۷۶۲ هجري، الفاروق الحديثية للطباعة والنشر

⑱ إكمال إكمال المعلم شرح صحيح مسلم للإمام أبي عبدالله محمد بن خلفة الوشتاني الأبي المالكي المتوفى سنة ۸۲۷ أو ۸۲۸ هجر

ي دار الكتب العلمية بيروت

١٩ إنسان العيون فی سيرة الامين المأمون: (راجع إلی السيرة الحلبية)

٢٠ الاستذكار، للإمام الحافظ أبی عمر يوسف بن عبدالله بن محمد بن عبدالبر المالكی رحمة الله عليه، المتوفی سنة ٤٦٣ دار إحيا التراث العربی

٢١ الإستيعاب فی أسماء الأصحاب (بهامش الإصابة) للإمام الحافظ أبی عمر أبو يوسف بن عبدالله بن محمد بن عبدالبر المالكی رحمة الله عليه المتوفی سنة ٤٦٣ دار الفكر، بيروت الإبواب والتراجم لصحيح البخاري للشيخ العلام محمد زكريا الكاندهلوی رحمه الله، المتوفی سنة ١٤٠٢، سعيد كراچی

٢٢ الأحاديث المختارة للشيخ الإمام ضياء الدين أبی عبدالله محمد بن عبدالواحد بن أحمد بن الحنبلی المقدسی رحمه الله المتوفی: ٦٤٣ هجري، الطبعة الرابعة: ١٤٢١ هجري، دار خضر بيروت

٢٣ الأسما المبهمة فی الأنباء المحكمة للشيخ الإسلام أبی بكر أحمد بن علی بن ثابت الخطيب البغدادي رحمه الله، المتوفی: ٤٦٣ هجري الطبعة الثالث: ١٤١٧ هجري، مكتبة الخانجی، القاهرة

٢٤ الأعلام الأشهر الرجال والنساء من العرب والمستغربين والمستشرقين لإمام الشيخ خير الدين الزركلی رحمه الله الطباعتة الخامسة عشرة: ٢٠٠٢م دار لعلم للملايين لبنان

٢٥ الإعلام بفوائد عمدة الأحكام للإمام سراج الدين أبی حفص عمر بن علی بن أحمد الأنصاري الشافعی المعروف بابن ملقن رحمه الله المتوفی: ٨٠٤ هجري الطبعة الأولی: ١٤١٧ هجري، دار العاصمة للنشر والتوزيع الرياض

٢٦ الإقناع فی فقه الإمام أحمد بن حنبل للإمام شرف الدين موسی بن أحمد بن موسی أبی النجا الحجازی رحمه الله المتوفی: ٩٦٠ هجري دار المعرفة بيروت

٢٧ الإنصاف فی معرفة الراجع من الخلاف علی مذهب اللإمام أحمد بن حنبل للإمام علاء الدين أبی الحسن علی بن سليمان بن أحمد المرداوي السعدي الحنبلی رحمه الله المتوفی: ٨٨٥ هجري الطبعة الأولی درا الكتب العلمية، بيروت

٢٨ البحر الرائق شرح كنز الدقائق للإمام العلام الشيخ زين الدين بن إبراهيم بن محمد المعروف بابن نجيم المصري الحنفی المتوفی سنة ٩٧٠ هجري دار الكتب العلمية بيروت

٢٩ البحر الزخار المعروف بمسند البزار، للحافظ الإمام أبی بكر بن أحمد بن عمرو بن عبدالخالق العتكی رحمه الله المتوفی: ٢٩٢ هجري الطبعة الأولی: ١٤٠٩ هجري، مؤسسة علوم القرآن بيروت

٣٠ البداية والنهاية للإمام الحافظ أبی الفداء إسماعيل بن كثير بالدمشقی رحمه الله المتوفی سنة ٧٧٤ هجري دار الكتب العلمية بيروت/دار إحيا التراث العربی

٣١ البناية شرح الهداية للإمام المحدث الفقيه محمود بن أحمد بن موسی بن أحمد بن الحسين، المعروف ببدر الدين العينی الحنفی رحمه الله المتوفی سنة ٨٥٥ هجري دار الكتب العلمية

٣٢ التاج والإكليل لمختصر خليل للشيخ العلامة أبی عبدالله محمد بن يوسف بن أبی القاسم العبدري رحمه الله المتوفی سنة ٨٩٧ هجري الطبعة الاولی ١٣٩٨ هجري دار الفكر بيروت

٣٣ التاريخ الكبير للحافظ النقاد شيخ الإسلام أبی عبدالله إسماعيل بن إبراهيم البخاري رحمه الله المتوفی سنة ٢٥٦ هجري در الكتب العلمية بيروت لبنان

٣٤ التبيين الحقائق شرح كنز الدقائق للإمام فخر الدين عثمان بن علی الزيلعی رحمه الله الحنفی المتوفی: ٧٤٣ هجري، الطبعة الأولی [illegible] هجري [illegible] الكتب العلمية، بيروت

٣٥. الترغيب والترهيب للإمام الحافظ عبد العظيم بن عبد القوى المنذرى رحمه الله المتوفى: ٦٥٦ هجري الطبعة الأولى: ١٤٢٢ هجري، مكتبة المعارف للنشر والتوزيع الرياض.

٣٦. التعليق الصبيح على مشكاة المصابيح للشيخ للإمام محمد إدريس الكاندهلوى رحمه الله المتوفى: ١٣٩٤ هجرى الطبعة الأولى المجلس العلمي الإسلامي حيدر آباد دكن/المكتبة الرشيد كوئته

٣٧. التفسير الكبير/مفاتيح الغيب للإمام المفسر الكبير أبي عبد الله بن محمد بن عمر بن الحسن بن الحسين التيمي الرازي الملقب بفخر الدين الرازي رحمه الله المتوفى سنة ٦٠٦ دار الكتب العلمية بيروت

٣٨. التفسير المظهري، للعلامة القاضي محمد ثناء الله بن حبيب الله بن هدايت الله المظهري بأني بتي رحمه الله المتوفى سنة ١٢٢٥ هجري بلوچستان بك ديو پاكستان

٣٩. التلخيص الحبير في تخريج الأحاديث الرافعي الكبير الحافظ أبي الفضل أحمد بن على بن الحجر شهاب الدين العسقلانى الشافعي رحمه الله المتوفى سنة ٨٥٢ الطبعة الأولى: ١٤١٦ هجري مؤسسة قرطبة مصر

٤٠. التمهيد لما في الموطأ من المعاني والإسانيد للإمام الحافظ أبي عمر يوسف بن عبد الله بن محمد بن عبد البر المالكي رحمه الله المتوفى سنة ٤٦٣ هجري الكتبة التجارية مكة المكرمة

٤١. التنبه على ما في التشبه: (راجع إلى تشبه بالكفار للكاندهلوي)

٤٢. التوشيح شرح الجامع الصحيح للإمام الحافظ أبي الفضل جلال الدين عبد الرحمن بن أبي بكر السيوطي رحمه الله المتوفى: ٩١١ هجري، الطبعة الأولى: ١٤١٩ هجري، مكتبة الرشد للنشر والتوزيع الرياض

٤٣. التوضيح لشرح الجامع الصحيح، للإمام سراج الدين أبي حفص عمر بن على بن أحمد الإنصاري الشافعي المعروف بابن ملقن رحمه الله المتوفى سنة ٨٠٤ هجري وزراة الأوقاف والشئون الإسلامية الكويت

٤٤. الجامع الصغير وزوائده والجامع الكبير (راجع إلى جامع الأحاديث للسيوطي)

٤٥. الجامع لأحكام القرآن، للإمام أبي عبد الله محمد بن أحمد الإنصاري القرطبي رحمه الله المتوفى سنة ٦٧١ هجري دار إحياء التراث العربي

٤٦. الجرح والتعديل للإمام الحافظ شيخ الإسلام أبي محمد عبد الرحمن بن أبي حاتم محمد بن إدريس بن المنذر التيمي الحنظلي الرازي رحمه الله المتوفى سنة ٣٢٧ هجري الطبعة الأولى ١٣٧٢ هجري بمطبعة دائرة المعارف العثمانية بحيدر آباد دكن الهند/دار الكتب العلمية

٤٧. الجمع بين الصحيحين للإمام المحدث محمد بن فتوح الحميدي رحمه الله المتوفى: ٤٨٨ هجري دار ابن حزم

٤٨. الجواهر في تفسير القرآن الحكيم (راجع إلى تفسير الطنطاوي)

٤٩. الجوهر النيرة على مختصر القدوري للإمام العلام شيخ الإسلام أبي بكر بن على بن محمد الحداد اليمني رحمه الله المتوفى: ٨٠٠ هجري، قديمي كتب خانه كراتشي

٥٠. الحاوي الكبير (في فقة الإمام الشافعي) للإمام الفقيهة أبي الحسن على بن محمد بن حبيب الماوردي البصري رحمه الله المتوفى سنة ٤٥٠ هجري دار الكتب العلمية بيروت

٥١. الدر المختار للإمام العلام علاء الدين محمد بن على بن محمد الحصكفي رحمه الله المتوفى سنة ١٠٨٨ هجري دار عالم الكتب

٥٢. الدرر واللآلي بشرح صحيح البخاري (راجع إلى الشرح الميسر لصحيح البخاري)

٥٣. الديباج على صحيح مسلم بن الحجاج للعلامة جلال الدين عبد الرحمن بن أبي بكر بن سابق الدين الخضيري السيوطي رحمه المتوفى: ٩١١ هجري الطبعة الاولى: ١٤١٦ دار ابن عفان للنشر والتوزيع السعودية

٥٤. الذخيرة للإمام الشيخ شهاب الدين أحمد بن إدريس القرافي رحمه الله المتوفى: ٦٨٤ هجري الطبعة الأولى ١٩٩٤ م دار الغرب الإسلامي بيروت

٥٥ الروض الأنف في شرح السيرة النبوية لابن هشام للإمام المحدث عبد الرحمن السهيلي رحمه الله المتوفى: ٥٨١ هجري الطبعة الأولى: ١٣٨٧ هجري دار الكتب اسلامية

٥٦ الروض الندي شرح كافي المبتدي في فقه إمام السنة أحمد بن حنبل الشيباني رحمه الله للإمام العامل احمد بن عبدالله بن أحمد البعلي رحمه الله المتوفى: ١١٨٩ هجري منشورات المؤسسة السعيدية الرياض

٥٧ الزهد للإمام أبي عبدالله أحمد بن محمد بن حنبل الشيباني رحمه الله المتوفى: ٢٤١ هجري الطبعة الأولى: ١٤٠٣ هجري دار الكتب العلمية، بيروت

٥٨ السراج الوهاج من كشف مطالب صحيح مسلم بن الحجاج للعلامة أبي الطيب صديق بن حسن خان الحسيني القنوجي البخاري رحمه الله طبع الشئون الدينية قطر

٥٩ السنن الكبري للإمام أبي عبدالرحمن احمد بن شعيب النسائي رحمه الله المتوفى سنة ٣٠٣ هجري إدارة التاليفات الأشرفية ملتان

٦٠ السنن الكبري للإمام أبي بكر أحمد بن الحسين بن علي البيهقي رحمه الله المتوفى سنة ٤٥٨ هجري دار الكتب العلمية بيروت/ مجلس دائرة المعارف الإسلامية بهند

٦١ السيرة الحلبية (إنسان العيون في سيرة الأمين المأمون) للعلامة علي بن برهان الدين الحلبي رحمه الله المتوفى: ١٠٤٤ هجري المكتبة الإسلامية بيروت

٦٢ السيرة النبوية للإمام أبي محمد عبدالملك بن هشام المعافري رحمه الله المتوفى سنة ٢١٣ هجري الكتبة العلمية بيروت لبنان

٦٣ السيرة النبوية للإمام أبي محمد عبدالملك بن هشام المعافري رحمه الله المتوفى سنة ٢١٣ هجري الطبعة الأولى: ١٤١٦ هجري دار الصحابة للتراث

٦٣ الشرح الصغير للإمام أبي البركات أحمد بن محمد العدوي الشهير بالدردير رحمه الله المتوفى سنة ١٢٠١ هجري در الكتب العلمية بيروت

٦٥ الشرح الكبير مع حاشية الدسوقي للإمام أبي البركات أحمد بن محمد العدوي الشهير بالدردير رحمه الله المتوفى سنة ١٢٠١ هجري در الكتب العلمية بيروت

٦٦ الشرح الكبير على هامش المقنع لشمس الدين أبي الفرج عبدالرحمن بن محمد بن احمد بن قدامة المقدسي رحمه الله المتوفى: ٦٨٢ هجري الطبعة الأولى: ١٤١٣ هجري هجر للطباعة والنشر والتوزيع

٦٧ الشرح الميسر لصحيح البخاري (الدر واللالي بشرح صحيح بخاري) للشيخ محمد علي الصابوني الطبعة الأولى: ١٤٢٢ هجري المكتبة العصرية لبنان

٦٨ الشفاء بتعريف حقوق المصطفى العالم العلامة المحقق القاضي أبي الفضل عياض الحصبي رحمه الله المتوفى ٥٤٤ هجري دار الكتب العلمية، بيروت

٦٩ الصحيح لابن خزيمة للعلامة أبي بكر محمد بن اسحاق بن خزيمة السلمي رحمه الله المتوفى: ٣١١ هجري الطبعة ١٤٠٠ المكتب الإسلامي بيروت

٧٠ الطبقات الكبري للإمام محمد بن سعد بن منيع أبي عبدالله البصري الزهري رحمه الله المتوفى ٢٣٠ هجري دار صادر بيروت/مكتبة الخانجي القاهرة

٧١ العرف الشذي للفقيه المحدث الشيخ محمد أنور الكشميري ثم الديوبندي رحمه الله المتوفى ١٣٥٢ هجري دار الكتب العلمية/المكتبة الرشيديه كوئته

٧٢ العزيز شرح الوجيز المعروف بشرح الكبير للإمام أبي القاسم عبدالكريم بن محمد بن عبدالكريم الرافعي القزويني الشافعي رحمه الله المتوفى ٦٢٣ هجري دار الكتب العلمية بيروت لبنان

٧٣ العقود الدرية (تنقيح فتاوي الحامدية) للفقيه العلام محمد أمين بن عمر الشهير بابن عابدين رحمه الله المتوفى سنة ١٢٥٢ هجري

رشيدية كوئته

٧٤ العلل الواردة في الأحاديث النبوية للإمام الحافظ أبي الحسن على ابن عمر ابن أحمد بن مهدي الدارقطني رحمه الله المتوفى: ٣٨٥هجري دار طيبة

٧٥ العلل ومعرفة الرجال للإمام أبي عبدالله أحمد بن محمد بن حنبل الشيباني رحمه الله المتوفى ٢٤١ هجري الطبعة الثانية ١٤٢٢ هجري دار الخاني الرياض

٧٦ الفائق في غريب الحديث والأثر، الإمام اللغة العلامة جار الله محمود بن عمر الزمخشري رحمه الله المتوفى سنة ٥٣٨ هجري دار الفكر

٧٧ الفتاوي الهندية في مذهب الإمام الأعظم أبي حنيفة النعمان (الفتاوي العالمكيرية) للعلامة الهمام الشيخ نظام وجماعة من علماء الهند الأعلام الطبعة الاولى ١٤٢١هجري دار الكتب العلمية رشيديه كوئتة

٧٨ الفقه الإسلامي وأدلته للدكتور وهبة الزحيلي الطبعة الثانية: ١٤٠٥هجري دار الفكر للطباعة والتوزيع والنشر دمشق

٧٩ الفواكه الدواني على رسالة ابن زيد القيرواني للعلامة الشيخ أحمد بن غنيم بن سالم بن مهنا النفراوي الأزهري المالكي رحمه الله المتوفى سنة ١١٢٦هجري دار الكتب العلمية بيروت لبنان

٨٠ الفوائد البهية للشيخ المحقق المحدث أبي الحسنات محمد عبد الحي بن محمد عبد الحليم الأنصاري اللكنوي الهندي رحمه الله المتوفى سنة ١٣٠٤هجري قديمي كتب خانه كراتشي

٨١ القاموس المحيط للعلامة مجد الدين محمد بن يعقوب الفيروز آبادي الشيرازي حمه الله المتوفى: ٨١٧هجري

٨٢ القاموس الوحيد، لمولانا وحيد الزمان قاسمي كيرانوي رحمه الله، إدارة إسلاميات، لاهور

٨٣ الكاشف عن حقائق السنن الشهير بشرح الطيبي للعلامة حسن بن محمد بن الطيبي رحمه الله المتوفى سنة ٧٤٣ هجري إدارة القرآن والعلوم كراتشي

٨٤ الكاشف في معرفة من له الرواية في الكتب الستة، للإمام شمس الدين أبي عبدالله محمد بن الذهبي الدمشقي رحمه الله المتوفى سنة ٧٤٨ هجري دار القبلة للثقافة الإسلامية جدة مؤسسة علوم القران جدة

٨٥ الكامل في ضعفاء الرجال للإمام الحافظ أبي أحمد عبدالله بن عدي الجرجاني رحمه الله المتوفى سنة ٣٦٥ هجري دار الكتب العلمية بيروت

٨٦ المغني في الضعفاء للإمام أبي عبدالله شمس الدين محمد بن أبي أحمد بن عثمان الذهبي رحمه الله المتوفى: ٧٤٨ هجري دار إحياء التراث العربي قطر

٨٧ الكشف والبيان في تفسير القرآن (تفسير الثعلبي) للإمام العلامة أبي اسحاق احمد بن محمد بن ابراهيم الثعلبي رحمه الله المتوفى: ٤٢٧هجري الطبعة الأولى: ١٤٢٥هجري دار الكتب العلمية بيروت

٨٨ الكنز المتواري للشيخ العلام محمد زكريا الكاندهلوي رحمه الله المتوفى سنة ١٤٠٢هجري مؤسسة الخليل الإسلامي فيصل آباد

٨٩ الكواكب الدراري (راجع إلى شرح الكرماني)

٩٠ الكوثر الجاري إلى رياض أحاديث البخاري للإمام الجليل أحمد بن إسماعيل بن عثمان بن محمد الكوراني الشافعي ثم الحنفي رحمه الله المتوفى سنة ٨٩٣هجري الطبعة الاولى ١٤٢٩هجري دار إحياء التراث العربي

٩١ الكوكب الدري للإمام المحدث الشيخ رشيد أحمد الجنجوهي رحمه الله المتوفى سنة ١٣٢٣هجري مطبعة ندوة العلماء لكنؤ

٩٢ اللباب في علوم الكتاب للإمام أبي حفص عمر بن على ابن عادل الدمشقي الحنبلي رحمه الله المتوفى بعد سنة: ٨٨٠ هجري الطبعة الأولى: ١٤١٩هجري دار الكتب العلمية، بيروت

٩٣ المبدع شرح المقنع للإمام أبي اسحاق برهان الدين ابراهيم بن محمد بن عبدالله بن محمد ابن مفلح الحنبلي رحمه الله المتوفى: ٨٨٤هجري الطبعة الأولى: ١٤١٨هجري دار الكتب العلمية، بيروت

٩٤ المجموع شرح المهذب للإمام العلامة الفقية الحافظ أبي زكريا محيي الدين بن شرف النووي رحمه الله المتوفى سنة ٦٧٦ هجري ادارة الطباعة المنيرية

٩٥ المحكم والمحيط الأعظم للإما اللغة أبي الحسن علي بن إسماعيل بن سيدة المرسي المعروف بابن سيدة رحمه الله المتوفى سنة ٤٥٨ هجري دار الكتب العلمية بيروت

٩٦ المحلى بالآثار للإمام المحدث أبي محمد علي بن أحمد بن سعيد بن حزم الأندلسي رحمه الله المتوفى سنة ٤٥٦ هجري دار الكتب العلمية بيروت لبنان

٩٧ المخصص لإمام اللغة أبي الحسن علي بن إسماعيل بن سيدة المرسي المعروف بابن سيدة رحمه الله المتوفى سنة ٤٥٨ هجري دار الكتب العلمية بيروت

٩٨ المدونة الكبرى لإمام دار الهجرة مالك بن أنس الأصبحي رحمه الله المتوفى سنة ١٧٩ هجري دار صادر بيروت /دار الكتب العلمية بيروت

٩٩ المستدرك على الصحيحين للإمام الحافظ أبي عبدالله محمد بن عبدالله الحاكم النيسابوري رحمه الله المتوفى سنة ٤٠٥ هجري دار الكتب العلمية بيروت لبنان

١٠٠ المصنف لابن أبي شيبة للإمام أبي بكر عبدالله بن محمد بن أبي شيبة رحمه الله العبسي الكوفي المتوفى سنة ٢٣٥ الطبعة الثانية ١٤٢٨ هجري شركة دار القبلة/ مؤسسة علوم القرآن/ إدارة القرآن والعلوم الإسلامية باكستان

١٠١ المصنف لعبد الرزاق للإمام المحدث أبي بكر عبد الرزاق بن همام الصنعاني رحمه الله المتوفى سنة ٢١١ هجري البطعة الثانية ١٣٩٢ هجري دار الكتب العلمية/ المكتب الإسلامية بيروت، منشورات المجلس العلمي، هند

١٠٢ المعجم الكبير للإمام الحافظ أبي القاسم سليمان بن أحمد الطبراني رحمه الله المتوفى سنة ٣٦٠ هجري مكتبة العلوم والحكم

١٠٣ المعجم الوسيط، مجمع اللغة العربية، الطبعة السادسة: ١٤٢٦ هجري مؤسسة الصادق للطباعة والنشر، إيران

١٠٤ الوسيط في الضعفاء للإمام أبي عبدالله شمس الدين محمد بن أبي أحمد بن عثمان الذهبي رحمه الله المتوفى: ٧٤٨ هجري دار إحياء التراث العربي قطر

١٠٥ المغني في الفقة الإمام مالك رحمه الله للإمام موفق الدين أبي محمد عبدالله بن احمد بن قدامة رحمه الله المتوفى: ٦٢٠ هجري دالفكر/ دار عالم الكتب الرياض

١٠٦ المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب المسلم للإمام الحافظ إبى العباس أحمد بن عمر بن ابراهيم القرطبي رحمه الله المتوفى: ٦٥٦ هجري الطبعة الأولى: ١٤١٧ هجري، دار ابن كثير، دمشق

١٠٧ المقنع للإمام موفق الدين أبي محمد بن عبدالله بن احمد بن قدامة المقدسي رحمه الله المتوفى: ٦٢٠ هجري الطبعة الأولى: ١٤٢٣ هجري هجر للطباعة والنشر والتوزيع

١٠٨ المنتقى (شرح مؤطا الإمام مالك) للإمام القاضي أبي الوليد سليمان بن خلف بن سعد بن أيوب الباجي رحمه الله المتوفى سنة ٤٧٤ هجري دار الكتب العلمية بيروت لبنان

١٠٩ المنهاج شرح النووي على صحيح الإمام مسلم للإمام العلامة الفقية الحافظ أبي زكريا محيي الدين بن شرف النووي رحمه الله المتوي سنة ٦٧٦ هجري دار المعرفة/ المطبعة المصرية بالأزهر

١١٠ المواهب اللدنية بالمنح المحمدية للعلامة أبي العباس أحمد بن محمد بن أبي بكر القسطلاني رحمه الله المتوفى: ٩٢٣ هجري الطبعة الأولى: ١٤٢٦ هجري المكتبة التوفيقية القاهرة

١١١ الموسوعة الفقهية وزارة الأوقاف والشئون الإسلامية الطبعة الثانية: ١٤٠٣ هجري طباعة ذات السلاسل الكويت

١١٢ المؤطا للإمام مالك بن أنس الأصبحي رحمه الله برواية يحيى بن يحيى الليثي رحمه المتوفى سنة ١٧٩ هجري دار الكتب العلمية بيروت/ دار إحيا التراث العربي

١١٣ المؤطا للإمام الهمام محمد بن الحسن الشيباني رحمه الله المتوفى سنة ١٨٩ هجري الطبعة الاولى ١٤٣١ هجري مكتبة البشري

